# دغنی کلیات

## دپنجرے چغار، پلوشے او پانوس

## ویونکے

خان عبدالغنی خان

خپروونکے

دقومونو او قبایلو وزارت

دنشراتو ریاست

۱۳۶۴ ش/ ۱۹۸۵ ع

# سریزه

عبدالغني خان د پښتنو د ستر اجتماعي، سیاسي شخصیت خان عبدالغفار خان مشر زوی دی. غني د هندوستان د نیمې وچې د خلکو د آزادۍ په غورځنګ کې د ماشوموالي څخه د پاکستان تر را پیدا کیدو پورې مخامخ برخه اخیستې او بیا ښکاره د ضد استعماري او ضد امپریالیستي مبارزې د میدان یو پیاوړی مبارز پاتې شوی دی او په دغه لاره کې یې سختۍ او جیلونه ګاللي دي. د دې سره سره د مستعمره هند تر محدود واک لاندې انتخاب شوې مرکزي قانون جوړوونکې اسمبلۍ کې د هند د آزادۍ غوښتونکي ګوند کانګرس له خوا د پښتنو د صوبې یوازینی منتخب نمائنده پاتې شوی دی.

د هندوستان د ویش په نتیجه کې د پښتنو برخې کیدو غني خان په مرد جرأت او بې تره ګوندي سیاستونو بانډې لې باد ورکړه، د سیاست د چیغو او نارو له کتاره راجلا شو او د شعر تیره تودې د نابیا شور د حقیقتونو او نا دویونکو د کړو نو د بیان او د رسوا کولو لپاره له تیکي راوا ایسته. هر څه یې زړه او الهام ورته ویل، هغه یې د ټکل او په دې توګه یې هغه لوی عقل چې "شعر" نومیږي صیقل کړ او د رعایتونو او قیودو له ننګه او شرم نه یې آزادي ورکړه.

بې له دې چې غني د فلسفي فکر په لحاظ تحلیل کړو او بیا له دې چې دې یو نقاش، مجسمه جوړوونکي او خوار چینیز هنرمند په توګه یې څیړو، دې زمونږ د دوران یو دیر لوی شاعر دی چې د انسان

په ښکلا او لوړې او د هغه په کمزورو ټوټو ترل هم پښتون شاعر ښه پوهیدلی دی . د و د انسان ټکل
غوښتنې او ننګه ګرځیدو د هغه خپلو مذهبي، فلسفي، سیاسي او عرفاني اندیښنو کې څیړلي او
آزمویلې دي. غني د دې لپاره چې د شعر ژبه پاکه وساتي او د دې لپاره چې انسان د ددوکې له
پرخاتن باندې د بادرې کولو په لومه کې ښکیل نه کړي پر ټولو قرار دادي تعدساتو باندې
چینه بړدي او خلکو ته د رپاکار د شیخانو، وطن فروشه اخوندانو کاذبانه لافې او مقدس
د دروغ برښنډ دي .

ای د لوبیانو نیکه لمونځ ښکله مستي ښه ده
حسن جوړ ښکلی ښه دی که حسن پرستي ښه ده

په پاکستان کې د پښتو ژبې د زوالي د بدرغې او د پښتنو د کم سوادۍ له کبله
د عبدالغني خان غني شعر د نیاوال د ده د شعر د بیاوزرګي، سوزنګ او د هغه د رنګینو
عطرو د ورږمولې احساس څخه محروم کړي دي زه باور لرم چې پښتانه، افغانان
او نړیوال به په لنډه مستقبل کې غني د خپلو نه ښاغلو نکو شعرونو په عذاب کې ورځني
او ورته به یې لمانځي .

د غني انتقادي ژبه برښنډه ده . دې دیورو مانتیک ، ریالیست
په توګه د ښکلا او د مینې ستاینګې دی . لیکن په هر څه . هر ځای او هر وخت کې
انسان دا د ځمکې خوځند او هوښیار خاوند نه هیروي . هغه له خپلو ټولو بابیو
او خط وسره د ده د شعر په محراب کې ناست دی او د خپلو ښکلو او بدیو په
منداریو کې د غني د شعر ته د لذت او عذاب په زانګو کې د ژوندانه د دوام
لپاره الهام ورکوي .

سلیمان لایق

# یادونه او منته

د قومونو او قبایلو د وزارت او همدا رنګه د نشراتو او فرهنګي امورو د ریاست له خوا په دغو وروستیو څو کلونو کې ځینې کتابونه او رسالې د مقالو مجموعې او نور ګڼ شمیر فرهنګي، ادبي، تاریخي او علمي کتابونه د مروجو چاپي آفسیټ او ګستتنر له لارې چاپ او خپاره شوي دي چې د دغو کتابونو له جملې څخه پنځه وشپیته علمي، ادبي، تاریخي او کلتوري کتابونه د افغانستان د علومو اکاډیمي علمي غړي معاون سرمحقق زلمي هیوادمل د هیواد له فرهنګ سره د مینې له امله بې حق الزحمې، بې اخیستنې کار کړی او بې له کومه رسمي مکلفیته په وړیا ډول موږ ته چاپ کړي دي، د ځینو کتابونو اډیټ او د مقالو د دوو مجموعو (د الفت یاد - د ننګیالي شاعر غني او اجمل) تدوین یې هم وړیا ترسره کړی دی.

زموږ له کتابونو سره بیا د باچا خان زمانه او ګړندی جد وجهد، او د باچا خان لیکونه هم دوی له کومې مادي ګټې پرته په ښه توګه وړیا چاپ کړي دي. د نشراتو او فرهنګي امورو ریاست د دغه ډول مخورتیا په درنه سترګه ګوري له زړه منه ترې کوي او له الله څخه یې په روغتیا د هیواد په خدمت کې تمکین غواړي، هیوادمل ته په راتلونکې کې هم د یاد ډول فرهنګي او علمي مرستو هیله لري.

په درناوی

عبدالله [illegible]

د نشراتو او فرهنګي امورو رئیس

# فهرست

ستا په نوم زما ربّه

دَ

# پنجرے چغاړ

ګوره بلبل په پنجره کښې جوړ     لوے یو جهان دَ ګلو نوکه
مست شو صحرا او په خوب کښې ئے     ډک لعل جهان دَ سیندو نوکه

دَ غني دَ جیلخانے ماشعرونه

هریپور - ۱۵ اکتوبر - ۱۹۵۰ ع کښې
دا کتاب شروع کوم
غني.

# پیشکش

شاعر دَ خپل ماحول غلام وی، دَ دهٔ مثال دَ یو داسې حیوان دے چې دَ هغه په وجود خرمن نه وی، که پوټے دا زغی ځو که درو پېژے نو په کریکو ځان وژنی۔ او که پوټے آرام ورشی نو دَ خوشحالئ نه بے هوشه کیږی.

او کوره انسان ته چې بادشاه دَ ځناورو دے
دے که ډیر زور وکی وتے نه شی دَ خپل ځانه
دے دَ خپله ځانه دَ جهانه ردکیدے نه شی
کله دَ کعبے نه تاوشی کله دجانانه

بنده دَ خپل احساس او بے حسئ په قلاکښے بند دے، او دغے ته خلق قسمت وائی. خوشبېږ کاله وراندے واقعاتو نه دَ خپلے لوئے قلانه راوښکلم او په ډیرو ورو ورو دَ خښتو قلا کانو کښې بندیوان کړم.

دغه دَ درد، زور او تیرے ماحول کښے ماته دَ لارے روښانه کولو صرف یوه شمع وه، او دا ځما دَ ځوانئے او مستئے کالو نه

چه په دې تور او تاریک باغ کښې شوي دي او ما ترې نه یوه مراوې

ګلدسته جوړه کړې ده هغې فرښتې ته پیش کوم، چا چه دَ خیله آباد دَ نوابې

رستم جنګ محل دَ غنی دَ تالا شوې جونګړې دَ پاره پرېښود. او ماسره

داد غم. دَ درد او بې سروسامانۍ روښې دیرې په خندا

خوشحالۍ او بهادرۍ تیرې کړې. زه چه دَ هغې درد ته ګورم

نو خپل درد رانه ورک شي. زه چه دَ هغې نزتوب وړینم. نو په خپله

بزدلۍ ستومانه شم. زه دَ دیره نزانو نزیم. خو دَ هغې نه نزنه شوم.

نو ځکه دا کتاب زه په ډیر ادب او ډیره مینه دَ خپلو بچو

مور ته پیش کوم.

یو خوب دَ شاعر په جامه انساني

یو ساز دور دراز ښکلې خوږ آسماني

یو ګل دَ جنت په خصلت رحماني

یو جسم ناري یو زړه کې نوراني

شوله داسې پیدا دَ غني دلبرا

په غیرت پښتنه په نهایت ایراني

غني خان

۱۹۵۳ع



# دُعا

سترګو دَ جانان کښې زما ښکلي جهانونه دي
واه دِ خله دنیا زه وږے ستا دَ دنیا نه یم
کوزه دَ فقیر کچکول کښې تاج دَ سکندر دے پروت
زه یم دَ سخیانو دَ شومانو ګدا نه یم

زه نه په غرور درنه دَ مینے په نوم غوارمه
زه ملنګ بے نیازه ستا دَ ویر واویلا نه یم
یو دَ سپوږمۍ ځاځکے درنه ټیک له دَ یار غوارم
زه یم دَ خوبونو دَ لالونو ګدا نه یم
هغه مستي غوارم چه ئے مرګ نشي وژلے
زه دِ دَ غمونو دَ بیګا او سبا نه یم
او تشه دنیا ګټے که دِ بخښنے نواے امیره!
ستا شوه ستا دنیا. زه وږے ستا دَ دنیا نه یم

غني



# ثنا

توره شپه دے کله کله د غمونو انبار راوړي
کله شمع ساقي راشي او خيام او ستار راوړي
کله توره شپه لحد شي مرغه روک کړي په ياره کښې
کله رنګ او خمار راوړي کله شرنګ او دلال راوړي
کله ډوب او بے قراره يو دریاب د اسويلو شي
کله مست د رنګ محل شي بے خودي او خمار راوړي
دا زما بے خودي واړه يو نظر ستا د قرار دے
دا زما دریاب د حسن ستا يو څاڅکے د خمار دے

غني



# ژوند

چه خمار مستي تې وزي — شراب شي ترخې او به وي
چه سرور غرور ئې نه وي — دا ژوندانه ورژند وَ دخه وي

چه دَ مینې زره شي پاتې — لکه گل وي رژېدلې
یا شغله یوه دَ نور وه — یا یو موتې دَ خزلې

چه په ژوند کښې سختنه وي — لکه بې مالگې طعام
چه په خوله کښې خندا نه وي — لکه ډک دَ خاورو جام

چه خوانۍ کښې تکلیف نه وي — لکه پته میان کښې توره
نه ئې پوټ شي نه شرنګ شي — په زنګونو شي زخوړه

چه آرام وي او سمام وي — او یاري په جاید ادا وي
خو بیا نو هم شیرني وي — هر ترو پرو فرهاد وي

چه پې سر په خندا او شي — هله خوږ راز و نیاز شي
چه دَ سپینو تورو جنګ شي — ښکاره هله کښې ایاز شي

ژوند که تش فیرني خښتل شي — داخو سپې هم شي ختلې
که تش نسل زیاتول وي — دا غوټې هم شي ښه کولې

ژوند نه خیته نه مانئی وی — نه ډیرئ د سرو لالونو

نه یاران نه معشوقے دی — نه باغونه د ګلونو

ژوند خو تله دی یو په مخه

غرزیدل او پاشیدل دی

تکے سوز او تکے ساز دے

خه خندل دی خه ژړل دی

څه ډلے په سترګو د عاشق کښے

پلوشه ده د خمار

په صحرا کښے لټول دی

د آشنا د کوځے لار

غنی
حیدرآباد جیل
۱۳۴۹ — ۹ — ۱۱



هری پور ۱۴ مارچ ۱۹۵۰ ع

# ګواه

یو تکی د رنګ ګنبے دریاب رنګا رنګ
یو څاڅکی د ساز ګنبے هم سوز او هم شرنګ
د ژوند یوه لمحه ګنبے سوونه عمرونه
یو چونګ ګنبے دخاورے مستی او غمونه
په لپه ایرو ګنبے منارونه د نور
د هر ګل په شونډو رازونه د طور
خاورینه خرمن ګبن خندا او غرور
تیارے د شهوت او رڼا او سرور
دے بت ګبن د خاورو دا تال د ابد
د څاڅکی په ځنکینے جمال د ابد
ثبوت مانه لوئی ستاد خان کوم دے
ګواه مانه سبه ستا د شان کوم دے

خانپور



خان پور

# ښومره؟

ښومره مینه مستي ده کرم ادب ښومره؟
ښومره تا دلدار جانان کرم رب ښومره

نه زه ستا په حد دښان په حساب پوه شوم
ستا پوهیږي پخپل هنګ او طرب ښومره

تورانۍ په ساز سرود ترکو مې رسي
ګلاب پوه دے دَخایشت (*) په مطلب ښومره

دا سپوږمۍ چه کل جهان حیران حیران کړي
دا پوهیږي دَخپل نور په سبب ښومره

رنګ رنګ دَخپل ښکرپړ خو رونه
دومره خیشت وي چه زماوي طلب ښومره

دا چه شونډې او د سرور روښان کړي
معشوق پوهیږي دَ عاشق په مطلب ښومره

ښامینه ده ادب دَ پنجرے اوزي
وایه ښومره دِ جانان کرم رب ښومره

(*) خایشت ، ښایست .

# بل څه

په نظر کښې مې     د باغونو خيال

په نصيب کښې مې     لاره د غرونو

عجيبه اچار     مې اچولې دے:

د ګلونو     او د غمونو

په غوږونو کښې     شرهار د ساز

د ګنګرو پېنزيب     او خندا آواز

ډوب مې زړلتمئ     بل څه نوے ساز

بل څه نوے سوز     بل څه نوے راز

ځکه خيال کښ مې     د باغونو رنګ

او نصيب کښې لاره     د غرونو

ما د تورو هيرو(*)     جوړ کړيدے

ځان له ښکلے تخت

د خوبونو

مرهب پوه

(*) هيرو : ايرو

# تش جام

هغه څه ساقي وي — چې تش شراب وي جام کښې

نه ورکي خمار د سترګو — رنګ د سرو لبانو

دا د دوزخ اور وي — چې تش سکروي رڼا نه وي

دا هغه کانړ دے — چې خطبې لولي ماښام کښې

دا د ازغو جاړه د ګلاب — خو ګلاب نه لري

دا لوګو د هلې میغ — تیکه او کباب نه لري

زهر زهر زړه مړ دی — شراب چې خمار نه لري

کفر کفر کفر ده — مستي چې قرار نه لري

څه هغه بنده وي — چې جنون او ولولا نه لري

هغه د څه سيند وي — چې غورځنګ او آبشار نه لري

هغه څه مومن وي — چې مستي د کافر نه لري

څه وي هغه سترګې — چې د مينې نظر نه لري

هغه دعا څه وي — چې شرنګار او شنا نه لري

زهر زهر زهر دی — شراب چې خمار نه لري

# غم

پښتنه مې نخميږي، روک که قلم تش دَ سياهئ نه
کوټه کښې يخ او تريخ لوګے باهر(*) نخه به ميلے
دماغ مې پريشانه زړګے پريوتے دَ مستئ نه
خيالات مې روک نوستلي غم وهلي په ړلئ
دُنيا مې دَ اميد دَ رڼا نشه تک ده توره
دَ غم دَ قيصو ډکه ده خندا آوازئ مير
هره لمحه دَ ساه ترخه بے خوندَه او چپه سپوره
محمد دِ خان ليونے که شوخئ بسته ايازئ مير
داغم نه دَ طاقت دَ حکومت، نه دَ شوکت دے
داغم دَ تيريدو دے - بے مطلبه دَ ژوندون
ليلئ محمل صحرامه تيار دى خو افسوس
دَ خان ليونى کولو همت ونکړو مجنون

په پيروول
۱۹۵۰ع

(*) باهر: بهره دباندے.

# هوش

شراب هله شي شراب چه څوګي[1] وڅکي
څاڅکي سيند شي چه چپه شي آبشار شي

ګل چه خوړ کړي په پسا دين دَ رنګ دوړان کاچل
په تيرو کښے جوړ عجب دَ ښيست بازار شي

چه آواز دَ سُرو اوزي بدلے رنګ شي
چه خوږ دَ خوږو اوزي نو خمار شي

چه فولاد دَ مينے مستے اوبه واخلي
نو حيران او پريشان آر دَ ستار شي

سرتوب چه لورا جت شي ليونتوب شي
چه صحرا په رنګ مين شي نو ګلزار شي

چه انسان مالک دَ حُسن او سرور شي
اور او کور ورته ګلونه لاله زار شي

دَ سپوږمۍ حسن روښان شي په شبنم کښے
دَ غانټول[2] اوکښے ولونه دَ ښامار شي

دَ ژوندون مطلب کمال دے دَ اظهار
يوله اوښکے يوله اخ يوله شهکار شي

بلخه نشته ځان او ژوند پوره کول دي
قيمتي غنچه خو بونه چه بهار شي

بس بلا دے که مجنون دے که مدهوش دے
خرخوړنکے اخستونکے ذده هوش دے

که جومات کښے بس الله الله ژ دے
ميخانه کښے يو آواز د نوش بنوش دے

دغه خوند کړي چه يو يار شي يو ربار شي
دغه خيال کله جانان کله بهار شي

تول دَ هوش کفر که مينه که سرود دے
دَ ذرے سرديکے نه شمع ده نه نور دے

---

(۱) څوګي: څوک يے. (۲) غانټول: غاټول

عجیبه واکدار که جوړ رب د جهان | چه د عقل تور کندو ته قانون وائی
دې د حسن بخارۍ ته لیونے وائی | او د خاورو سودا کړو ته قارون وائی
د ژوندون احساس ته خبط او سودا وائی | عاشقۍ ته د بدبختو خرو جنون وائی

د ده هوش د ده د مینے تور ښامار شی
دا عیسیٰ غریب پخپل بستر په دار شی

هوش محل یو د سوځو منارو دے | لوټے وطن د دریابونو د درو دے
ده کښے یخے تارخانے د طور د کټو | دے کښے خوړیو تور دریاب توپ په تیرو دے
دے کښے سپین لوټے محلونه د دنیا کې | دے کښے خور خاموش ارمانو د مقبرو دے
کله کله د مستۍ سره خمار رونه | کله کله تش کچکول د آسرو دے
دا د شکر چه د غم په تور محل کښ | رابنکاره کله یا مینه یا دلدار شی
دا د شکر چه د مرګ په بادشاهۍ کښ | کله کله خاشکے وخاندی آبشار شی
دا نعمت دے چه په لوږه کا نه شوے | خط و خال تالا په سرو شونډو د یار شی

هوش چه ورک شی د خپل هوښه نو مستی شی
چه خوږی د خوږه اوری نو خمار شی

• کوسر •



# حسن

او ه تپوس دَ حسن مکوه — سمندر شی څوک تللے
څوک سپوږمئ شی رانیولے — څوک زهرا شی بنګلولے

حسن پلار دَ مینے او مور دَ عشق
پکښے پټ دی تول سپین او تور دَ عشق
دَ ده خیال نظر همه زور دَ عشق
په سرو شونډو بلې بنګلے اور دَ عشق

دا بابا دَ سُر او سرور دے
دا تعبیر دَ جلال او نور دے
دا مکه دَ سترګو خندا کښے
دا په هر کوڅه کښے طور دے

دَ آدم دَ نوم بس یو دا سبب — دَ بهار سبب دَ رنا سبب
دَ حوا دَ ژوند او ارمان قیصه — دَ سرود دَ رقص او دَ ژړا سبب
دا جواب دَ لکونو سوالونو دے — نشته هیڅ دَ ژوندون بل جواب
دا صوفی ته محراب او منبر خالی — لیونی ته کباب او شراب

دے دَ خیال او رنګ دنیا کښے دا      پلوشه دَ مینے دَ یار ده
دا دَ رحم پیغام او وعدهٔ دَ وصال      رالیږلے غلام له دلدار ده

دا دَ مرګ سبب
دا دَ ژوند ضرور
دا دَ ګناه تعریف
او معنی دَ نور
دا دَ عشق وجود
دا دَ مینے راز
دا دَ سوز خوند
دا مستی دَ ساز

هر نظر ئے شراب دَ مستئ ده      دا دَ روح لیوني میخانه ده
دَ بنده او آقا دَ زړه راز دے      دَ ژوندون او جنت افسانه ده

خان پور
۱۹۵۰ع



# اور کښے

ډول دَ لرے خوږ دے دَ هندکیانو دا متل دے
هره فلسفه دَ لرے ښه او پوره ښکاری

ذره دَ بنده نه دے عجیبه بے چله چل دے
ډوبه په ارمان کښے چواړی ام حوره ښکاری

عقل له دهوکه ورکوی حسن که دلدار دے
خان ته تبنتیدل دی عبادت دے که خمار دے

دا مسته رنګا دا مینه حور دے او مابنام
څه رنګین سراب دے دَ لیدلو پوهیدلو

داچه ورته ګورے بل څه نه وینے نه ګورے
دا عجیبه دام چا دے جوړ کړے دَ لیدلو

دا یوه قصه ده دَ ډک جام دَ توئیدلو
دغه فلسفه ده دَ دریاب دَ بهیدلو

رحم نه انصاف دے یو تدبیر دے دَ دوام
هر څوک ئے پکار دی که خیتو دے که خیام

مشرنګ وي د نږدے نه اوده لګے د لوے لوے
دوا ړه غزې يو شانے اوريدونکے خبرے
ډک د ظلمه زوره د طاقته د باز پرے
جوړے د مهين او رنګين بوی د ګل وزرے

کومه لار چه اخلے خو مقام ئے بس يو دے
دلته زر جو ماته دی امام ئے بس يو دے

خکه ليونے زړے مرورشی ځکه کله
بل خواته ورتاوکړی د اد موش تهتقه شله
پريوزی په پړاو کړی بتخانه کښے ديره بله
خپے سپينے پولئ ځمکے تاقتی د منزله

تاته او ر سرور دے يو ماولے وژنے او رکښے
اے د سپين او تور ما لګه څه مزه ده تور کښے

ولے زما لال وی پروت په خُلے کښے د مبنامار
ولے دے ګلاب له نه او ربل او نه بهار
ولے دے بندی که ځا ځکے تن کښے د ونه وکی
غوا ر سے ترڅپے د سيند سا زونه د ابشار

ماله مرګ او ژوند دے تاله تش د ځنې ول دے
او رکښے دے بل کړے ولے حسن الوول دے

اورته دے نیولے یم فولاد جوړے زمانه
سبه۔ چه زه فولاد شمه نوځه زما جانانه

جسوله فولادو له جوهرو له کمال له
بس خاورے کیده دی روکیږدی کی دنیا ئه

ولے دِ ورا نولوله جوړ کړے سور محل دے
اور کینے دے بل کړے ولے حسن الوول دے

غنی
ډیره اسمعیل خان
۱۹۵۰ع



# حساب

یو خالیو نے دے د تیکرو جام په لاس
غوا ړي د عطار نه روح د ګل خمار د ګل
بلخوا او بنیار شاه د بوے په کته په لباس
پوخ نے که خوراک له هم پیچنی لا هم بلبل
تله په لاس نا ست دے خر خوی مینه خمار
بس د ده ایمان دغه جنت دے نشته بل
بے خماره مینه لکه بے نشے شراب
زمونږ خو ګل حرام حرام دي ته کتل
بے مینے ژوندون دے لکه بے سره ستار
تنګ تر دے نه او منګل د جنت حورو ته کتل
روکه کړه مجنون لیلی محل کښے د ایران
ده ته سر محل شو د غمونو بیابان
تول جهان ته اورو ده ته مینه د جانان
ده د ده خندا پته ژړا کښے د جهان

دہ تہ درد او چغو کښې وناست مستې ژوندون
دہ لہ وے دوہ لارے یو مرگے ، او بو مجنون

ښہ ۔ یو خوا خو دغہ بلخوا بلہ تماشہ دہ
ناست خان لہ ۔ نمرود ۔ دے او دَ بل دَ درد نشہ دہ

دا څہ عجیبہ شانتے انصاف دے دَ فطرت
گل لہ ښکلے بوی دے او دَ ښبرخوار لہ لشہ دہ

دا څہ عجیبہ خیشت پرستی دہ دَ رحمن
مرہ پرتہ بلبلہ دہ او ښنیتے پے بابښہ دہ

څہ وکړی شاباز یا بہ روکیږی یا بہ زور وکړی
څہ وی جرس چہ وی دَ ورتہ لہ چہ شور وکړی

دغہ دَ جہان ، دغہ ئے چل ، دغہ ئے راز دے
دغہ دَ ساقی ، دغہ محمود ، دغہ ایاز دے

دغہ ۔ وائی ۔ دَ غم او دغہ ۔ وخ ۔ دَ ہمہ ساز دے
دغہ دَ ۔ خیام ۔ او دَ ۔ بلال ۔ دَ خُلے آواز دے

خان مستول مینہ او خمار زیاتول
دے دَ ژوند تنور کښے سور انگار زیاتول

یو دیار دَ خُلے وړے او بل ئے دَ دولت
یو دَ ۔ خان ۔ پہ ستړکو روک او بل ئے پہ شوکت

یو ئے مست په شرنګ او په خندا او په سرور
بل ئے په غضب دَ غورزنګونو دَ شهوت
یو ئے په تیرو دَ غم په لړو دَ ماښام
بل ئے په سیلئ او په باران او په قوت
یو ئے په پښتو پښتو سوالونو دارمان
بل ئے په باهوا او په جلال او په شوکت
یوله تیز نیلے، ستر کے سرے سره تورے په لاس
بل له تنهائی، رنګین ملکونه د حیرت
یوله دَ الماسو محل، سپین او رون او پاک

دوی سره حساب خولو، ګران شان دے
ستا په هر جنت کښے لو، عذاب شان دے

غنی

دیره اسمعیل خان



# غزل

هله یار وته نژدې شوم ‏ ‏ ‏ ‏ چه دَیاره شومه لرې

هلې (*) پوئې شوم بېخبره ‏ ‏ ‏ ‏ چه ئې نا ورمه خبرې

چه ملنګ شومه جانانه ‏ ‏ ‏ ‏ خزانه م وموندله

په زړګي کښې م پرتې وې ‏ ‏ ‏ ‏ ښکلې ښکلې ملغلرې

چه م کل بُستان قربان که ‏ ‏ ‏ ‏ نو د کل بُستان مالک شوم

چل م هله دَ پَر زده که ‏ ‏ ‏ ‏ چه م وسوې وزرې

چه په جام کښې دَ ساقي م ‏ ‏ ‏ ‏ دَ ځوانئې وینه کړه ګډه

هله پوره شو محفل کښې ‏ ‏ ‏ ‏ د خمار خمار بڅرې

چه په شوق او مستې م ‏ ‏ ‏ ‏ دواړه سترګې ورلوګې کړې

هله هله راته او کړې ‏ ‏ ‏ ‏ دَ ساقي سترګو خبرې

چه پرې مستې ځوانۍ داوګړې ‏ ‏ ‏ ‏ چه پرې ښکلې سرې ګړې خادرې

د غني دې لیونیه!

دَ جانان شونډې شکرې

غني

حیدرآباد جیل

(*) هلې = هله یې.

# قسمت

چه څوک سوال د پلاؤ وو کړي ورکړے دال

اکثر خور کړي په ښکاري د ښکاري جال

چاته جام کښے د سرو خاورے ښکے واچئے (۱)

چاله ورکړے د ايرو په ډېر (*) کښے لال

يو وبال چه څوک په صبر صبر تير کړي

ورله راولے د مغز لوئے وبال

څومره بار چه څوک وړي دومره وراچے

د زمري خطرے نه تيري ئے شغال

چه کوم کال خلق زاري د باران وکړي

په باران پسے (۲) زانده وکړے هغه کال

ليونی نه خفه شے ده قربان شم

اکثرو داغے د خره په ځائے کلال

غني

حيدر آباد جيل

---

(۱) واچلے، واچوے. (۲) پسے، پسے بے.

(*) ډهير: انبار، ډلۍ

# دَ فریدون دَ مور خط

څه دَ واده په دولسم کال په ۱۵ ار تاریخ دجون
دمیاشتې ۱۹۵۱ع څاصرف یو او یوازے زوے فریدون
ـ رستم جنګ ـ پیدا شو. دغه مور دَ پېښور په هسپتال
کښې وه، او زه لرے په مزاره کښې ناجوړه پروت وم. مرحوم بخت
به م دَ کوټې دَ دروازے په څنګښې یو تور بلا رنګه توپک
او سنګین په لاس پولیس ولاړ وو. ټول جهان
تور او تاریک وو، دَ وجود دَ ناجوړتیا سره م روح هم
دَ مایوسۍ آخری مقام ته رسیدلے وو چه ناګهانه
خبر راغے چه زوے دِ وشو، ما وے ښه ده غنی
روک خوئے خو میرات خو نه ئے.

دَ دغې ورځې دَ درد او دخوشحالۍ بیان زه
نشم کولے. خو درد او خوشحالي دواړه انسان
ډیر ستومانه کوي، او چه آخر م ستر کے دَ هوش
دنیا ته پټې کړے، نو څه وینم چه دفریدون مور راغله

اوماته ئې يوخط په لاس کښې کېښود

داهغه خط دے:

ماڅ دوولېو خاورے تاله ژوندا دجهان جوړ که
خپلې مينې داسے يو ړم بل م تاله جانان جوړ که
دا چه زه د وفا د که د جنون جهان له لا ړم
دام لال هغه لته وموښت(*) د همه لالونو ښکلے
دا زما د غرورنخښه د مغو کيلو جواب دے
چه به تا به مابنا می کښې ماته کوله غلے غلے
داثبوت زما د مينې د ايمان او د وفا دے
دا زما روح چه روښان شو د ده ستړنے کړے کي ړ ړلے
دا تصوير زما د ژوند دے خه خندله خه ژړاده
د شهباز د وزر شغ دے پوست سرو د بلبلے
داثبوت د شاه د مينې ، دا زاری ده د غلام
دا انعام د ترلو ښکلے د هما و ښکين جام
دا تعبير ستا د خوبونو او زما خ د ارمان دے
ماجوړ کړے د خپل ځانه ښکلے عکس ستان د ځاندے
په صحرا م وو خور کړے سور ځاده د ګلستان دے
هره ساه کښې م ليکلے نوم د مينې د جانان دے

---

(*) وموت : وموند .

داچه زه ستا د خوبونو د جنون تالاش کښې لاړم

ستا لخانئې لهٔ م جوړ کړے ستا نه سبه غونډ يو خان کړے

داچه ما ستا و زړونو کښې ارمان د عقاب وليد

داعقاب م ستا نه جوړ که، م عقاب م نهٔ ارمان دے

دا سرے سرے د ساقی شونډے خه مستی او خيام

دا په سوز کښې رنګ د ساز دے د ممبر د پاسه جام

دا د نيشت، په شاملات کښې ما اجل ته کيبود خلے

داخو ما د صبا طمع کړے پرون سره بدلے

داچه زه يو رنګين خوب شم د تالاش او د آرمان

ستا په تور تاريک محل کښې سپينې شمعې شولے بلے

ما د درولپو خاور تاله ژوند او جهان جوړ که

خپلې مينې دا سے يو رم بل م تاله جانان جوړ که

ماکه داؤ په يو آرمان ستا خپل ژوندون تمام تمام

ما خپل هوش کلال له ورکړه چه تر تاله جوړ کړي جام

چه ته قول مجنون مجنون شې. زه همه ليلی ليلی شوم

چه ته رنګ شې او خيام شې، زه شراب زه ګل اندام

چه ته طور شې او موسی شې. زه د نور برق او رڼا شوم

چه ته شور شې او ارمان شې زه د وصل ګل سمام

ته چه شوې دَ اورېځې زه هم سره لمبه د اور شوم
چه مستا زړه په تالاش سره شو، زه شوم لاړه. زړه مام

دا چه مستا سوندې شوې تږې دَ مستۍ دَ سرو شرابو
دا خو ځکه زه جانانه هم شراب شومه هم جام

تا چه سوال دَ رڼا وُکه، دَ بهار صبح صادق شوم
ته مېين چه په تياره شوې، زه دَ ژمي شوم ماښام

چه تا نوم دَ غرا (۱)، واغست (۲) ما کړه مرګ ته ډېوه مله
چه تا نيت دَ طواف اوکه، نو ما وتړو احرام

ما دَ دوو لپو خاورې، تا له نور او ګلستان جوړ که
خپلې مينې دا سې يووم، بل م تا له جانان جوړ که

بهګنوتر
۱۹۵۰ع



(۱) غرا ذمکې. دَ عربو د جنګ بت خدا ئې وو، دَ اسلام نه اول. (۲) وا خيست

# « اول سترګې ستا د ليدو خورا »

زه خو ساز او سرور او خمار پېژنم — يا ليلى پېژنم يا اياز
زه خو غم او اور او دلدار پېژنم — يا رقيب پېژنم يا غماز
دې نسکور شمکور (*) ته د نور قيصې د جنت قيصې د جلال قيصې
منږ کوړي (+) ته د زهر قيصې د ماښام قيصې د ملال قيصې

زه خو ګل او چمن او شراب پېژنم — او بهار پېژنم او خزان
نه خو شړنګ او رنګ او کباب پېژنم — نه ګناه پېژنم نه شيطان
د ملا هوش بې هوشه د خو طمع ته به ظلم ديرته زهر دے
د ګيګر ته ستا د مال تو طمع او ګيګر غريب له اور دے
د شنګري ته ستا د ليدو طمع، دے نسکور ته تا ته د تلو طمع
اول سترګې ستا د ليدو خورا، بيا کره د مُيند و طمع

---

زه خو ساز او سرور او خمار پېژنم هغه خرم ته به چې څکلې شم
زه خو شړنګ او غورزنګ او ستار پېژنم او جانا هغه چې ليدلې شم
زه خو ناز او مکيز مسخره پېژنم ښکلې خط پېژنم ښکلې خال
زه خو شونډې پستې او خله سره پېژنم، او رنګينه خندا د وصال

---

(*) شب کور — مشو کور. (+) ممنز کوړي، د موږک چرچې.

زه خو ستړګے خوږې په ارمان پېژنم. او نړئ تر مګځے[1] ملنبام

زه خوست او منت دَ جانان پېژنم، د ساقي په سرو ګتو کښې جام

دَ ملهوش بے هوش نه دَ نور قيصے دَ جنت قيصے دَ جلال قيصے

دا ګو نکتې نه دَ باتور قيصے، دَ پرواز دَ خيشت[2] او کمال قيصے

* * *

چه پتنګ دَ نمر رڼا نه شي ليدلے

ګناګار[5] شو چه په شمع شو شيدا

زره کښې چونګ لپه هيله دَ خادرځائ شي

چرته خاے کرم پکښې دا دَ نور دريا

څنګه څنګه په يو کوټ کښې دا جهان او آسمان واچوم؟

دَ شبنم څاڅکي کښې څنګه دَ سيندونو دوران واچوم؟

او بيا لا. دا. ددے دَ پاسه به حساب او کتاب هم وي!

دَ رندو ستړګو بادشاد له به سزا او عذاب هم وي!

دغه شونډے ستا دي جوړے ماله ولے شو عذاب

چه خوارۀ پرے باندے لګي دَ شکرونه شراب

دغه سترګے چا کړے جوړے خيشت تيږ وګے او حيرانه

په کلونو کښې چا خورکه دا خاښت دَ. لامکانه،

چا که جوړ ځان له مکان خپل روک[3] زما دَ کل امکانه

زه به څاڅکي کښې ډوبيږم. سمندر بے پايانه

---

(۱) ترمګځے، تروږمۍ تيلو. (۲) خيشت، خاښت، بنايست. (۳) روک: وړوک. (۵) ګناګار، ګنهګار.

زه یو نور د تیرې سورې، ته د زمکې آسمان نور (۱)

بې کناره دریاب د رنګ ته زه یو څاڅکې د سرور

ته ژوندون د کل ژوندون ئې زه د مرګ لمحه ناکام

سمندر ته د مستئ ئې زه یو مات او سوری جام

ستا په رحم دیر نیازبین خکه یم ورته ګویا نه

د غلام کیله هم واوره د سپوږمۍ اوستوري خاته

زه خوساز او سرور او خمار پیژنم، هغه خودم ره په ګیلۍ شم

زه خوشرنګ او غږ زنګ او ستارې پیژنم او جانان هغه ته لیلی شم

زه خوناز او مکیز مسخره پیژنم ښکلې خط پیژنم ښکلې خال

زه خوشونډې بستې او خُله سره پیژنم او نګینه خندا د وصال

زه خوستړکې خوبې په ارمان پیژنم او نوی ترمکئ د ما بنام

زه خوست او منت د جانان پیژنم د ساقي په سره کوتو ګبز جام

کې شکوه نه ستا د لیدو طمع، دې نسکوره ته تا ته د تلو طمع

اول سترګې ستا د لیدو خوړا، بیا کوه د مینې د طمع



---

(۱) اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ․

# توقه

ما به شمع کوله
تا که جوړ رانه پتنګ
تا مې ښکار له د کبوره
تا وره پېښ کړم په غمنګ
ما د قصتې وملنګ يم
تا رښتيا کړمه ملنګ
ما پېښې کړې، د تورو زنو
تا مې کوله راوړو جنګ
زه خو غرض کولے نه شم
په کيلو ته خفه کيږې
خو حقه داده لويه خدايه
ته په توقو نه پوهيږې

غني

حيدرآباد جيل

# ډن کښې

ګوره بلبل په پنجره کښې جوړ
لوئے يو جهان د ګلونو که
مست شو صحرا او په خوب کښې ئے
دک که تول جهان دَ سيند وتو

دا روحاني کارخانه زما — زور او ستم نه خمار جوړي
دا ليونے شان څيګر زما — او ښه پېسئ تر نه هار جوړي
دا مصور په خپل رنګ مسرور — تول جهان مست او سرشار وينې
ډن کښې چپے او خند ادَ سيند — څا څکي کښې غم دَ آبشار وينې

ګوره بلبل پنجره کښې جوړ
لوئے يو جهان دَ ګلونو که
مست شو صحرا او په خوب کښې ئے
دک کل جهان دَ سيند ونوکه

* * *

وړه سپرے او ځواني شو مخکښې — ليونئ روح او رنګين ما بنام
خوا کښې ګلاب ئے په مستئ تير شو — شونډه وکښې رنګ او کوتو کښې جام

وړه چینه شوه چرته روان — ډزوند او مرګ ئې شروع کړ ساز

ژوندون ژوندیے شو عشق راز زغونه شو — خیشت پټ کړه شال کښې د مینې راز

بیا خزان راغے ګلونه لاړل — مستانه شو غلي او شراب کم

ځوانی رخصت شوه خندا نایابه — دعا اوږده شوه او رباب کم

زړه خپل تخت وکړه سر او سودا له — تخت شو بادشاه او ژوندون شو مړیے

مستئے جنګ بیله توره ئے کینبوه — سرور غلام شو جنون مړے شو

واړه رنګونه تیرے کښې ډوب شو — سبا رخصت شو او ماښام راغے

او میخانه شوه د جرا ډکه — ساقی رخصت شو او امام راغے

خو ناکهانه وړه لولکه — په خوب ورده شو او خوب ئې ولید

نورے سپرو او سره ګلونه — د عشق ایمان او نن توبه ئې ولید

د خپلې مینې جواب ئې ولید — نورے لولکے نورے ګلونه

روښنائی ولید یو نوی رنګ کښې — خپل ارمانونه، خپل امیدونه

مصور په خپل رنګ مسرور — تول جهان مست او سرشار ولید

ډن کښې(۱) چپے او خندا د سیند — ښائسته ئې کښې مخ د آبشار ولید

ګوره بلبل په پنجره کښې حور — لوے یو جهان د ګلونو که

مست شو صحرا او په خوب کښې ئې

د یو تول جهان د سیند و نو که

تهذیب بانی حبل



(۱) ډن = ډنډ

# جنّت (۱)

ستا دَ رحمت څه حد هم شته دے ؟ اے بے حسابه ابے پایانه
ستا خیشت او مینه څوک شی تللے . دَ دے ستر کو پته روک دَ ارمانه

د ملا ستر کے دَ تهوړ دَ کے راته قیصے کوی دَ دوږ دا وزور
دَ جانان شونډے دَ کوکو دے دی[2] راشه او کوره جنت کښے اور

مرګ بلے ستر کے او خوږ پښے راته خوزی[3] لحد . نیست او عدم
شیطان، ملا . دواړه په یو آواز وی . ستا ګناه ډیره ده او رحمت کم

مشک وار مسا په لاس . قبا په وُلی دستار په سر
لاړو وزرے د بلبل اینبے ، ښائی شهباز نه دَ الم سر

ښا پیرک مشرے دکاروان . دَ دنیا خیشت او سنګار لتی
سارې ژاړي دَ زړه ټبت کښے ژوندون مستی او خمار لتی

---

(۱) په جنت ما نورهم دوه دری اور دوه او دوه نظمونه لیکلی دی ، ځکه چه د لته د انسان په دماغ کښے د جنت تصور ډیر عجیبه او لطیف دے . خو عام انسانانو دَ یو تصور دپاره هم دوه درے دهدنه درے هضم کړے شی چه دَ جنت دَ پاره . (غنی)
(۲) وی : وائی . (۳) خوزی : خوځوی .

کو نکت د سوتو په ډيرې پورته ، زيړے لاکے ته د نوبيان کئ
چينجے د خاورے په ممبر بره ، قيصے د حورو او د آسمان کئ

څکه په چغوزه د جماته لار م په لورې     د ميخانے
دے خپلو سترګو دوب کړم ډله کړم هم شرابي کړم هم ليونے

خو چه په بلدو او بد رنګو خپل لکه د سکورلو کے اداو ر شمه
چه سُر او تال م تيار شو فنا کړي د بے وسئے فرياد ژړا او شور شمه

نو ځان ته دايم تاته وادرودم     دا د مجبورۍ زړګی بهانه
ستا خيشت او مينه څوک شی تللے دا بے حسابه ابے پايانه

غني

خانپور جيل



# سپرلے

بیا سپرلے راغے بیائے پیغام راوړه
د رنګونو. ګلونو. او. رڼا
شو ساقي مسکے دک نے جام راوړه
د مستئے. خوا نئے او خندا

یو سبا راغے. یوه شپه لاړه
د تیرو. یریدو. او ارمان
یو زیرے ګل م مابنام ولیده
سلامونه ئے کول د جانان

دا دماغ زما چرے نه منی
چه د ګل خالق په سقر کړی جوړ
خنک خوږے به پے زما کړیکے لګی
چا چه ماله نرګس او دلبر کړه جوړ

دا شینکے چمن. دا ګلونه سره
دا مست مست نئے شامستا نه مابنام

دا ثبوت دَ ساقي دَ مينې دے

دا دَ سرو شرابو بر پوره جام

د ساقي چه ستر ګے خمارے دي

دا خمار ئې ماته جوړ کړے دے

د جانان چه شونډے دلدارے دے

دا سينګارے ماته جوړ کړے دے

دا سپوږمۍ او ستوري او مست ماښام

مشغولا (۱) زما دغمونو ده

دا په ما مئين دے مالک زما

ځکه دکه دنيا د ښکلونو ده

سپرلے ځکه دجانان مست شوے

هره ساه او زره کښے ئې خپل نور خور

په ګلونو کښے خپله رڼا خوره

په نسيم کښے رنګونه دَ طلوع خوره

چه ترڅو يوه نظاره دَ رنګ

دَ غرزنګ دَ مستۍ په انسان کښے وی

ترهغے به دا زه وُ نه منم

چه اوروونه به هغے جهان کښے وی

---

(۱) مشغولا ـ مشغول.

زه جور کړے نه یم سزا له یار
زه ئے جور کړے یارانے له یم
مانه مینه - خندا او مستی غواړی
که جمات که بتخانے کښے یم

بیا سپرلے راغے بیائے پیغام راوړو
د رنګونو، ګلونو، او رڼا
بیا ساقی راغے ډک ئے جام راوړو
د مستئ - خولئ او خندا

بیائے سرو ګوتو کښے ونیوه
لیونی نه جام دغمونو ډک
د ژوندونه ډک، د فراق نه ډک
د وصال د رنګونو خوبونو ډک

فروری
۱۹۵۰ع



# ژوندون

لکه کال کښې سپرلے او خزان | لکه روح کښې سبا او ماښام
لکه سېند کښې چپې او غلې شپې | لکه ژوند د مرګی دے غلام
لکه تله، خلاصېدل د مستئ شته | نښېدل، ماتېدل، د هر جام
ژوندون څه دے یو سیند دے روان | اول لوے لوے موجونه کښتونه
بیا تش شي، چپې نے ورے شي | غلې لګي شي ډېر شي ډبونه
اول هر یو غورځنګ کښې ورانے کي | ورانوي غورزوي کور لوے غرونه
اول هر څوک روکي یو (*) بي خان | بیا د بل شي روان کړي نهرونه
دریابونه لوټ لوټ کړي فنا کړي | غورځنګونه لښتي کړي تالا کړي
یانے هر څوک د خپلواند دل دي | یا مرګي شي خدمت د هر چا کړي
خان کړي روک څو کلابه او نرګس کښې | په زرګونو سېندونه پیدا کړي
ژوندون څه دے یو باغ دے لوېږي * * * | رو کېدل دي د خیشت (1) زیاتیدو له
خپل ژوندون خپل سنګار ورکول دي | سوزېدل دي ژوندون خورېدو له
د انګور په شان روک فنا شه | چه خمار شې د چا سترګو سره له
د منصور په شان او خیږه دار ته | څه بهانه لټوه رسېدو له

(1) خیشت: بنایست. (*) روکي: وړکوي.

ټوندون څه دي چې خوب دي لېدلي شي | دخندا او ژړا واک د بل دې
---|---
یو دوران د صحرا او مابنام دې | د مابنام او سبا واک د بل دې
یو رنګين شان محل د هوا دې | د محل کوټ د هوا واک د بل دې
باغ د بل په ګلونو زه پرېیم | غم زما د خندا واک د بل دې

***

ژوندون څه دې یو ساز دې عجيبې

کله پوست، کله زیر، کله بم

کله اور سوزيده شور غوغا شي

کله غلې، قلار، شومه دم

کله شرنګ د ګنګروشي خار شي

کله یخ اسویلي او ماتم

کله تال مستانه د خيام شي

کله سپور ما بنا مونه د غم

که دي ترخ، که وي خوږ تېر به شي

ژوندون څه دي چې خوب دي لېدې شي

غني

دارالامان

په پېزول



# بله لار

رحم فقیر له روا ، بادشاه له حرام دے

شاعر له کوټ دَ زمزم دَ میو جام دے

ببل دِ مینے کمال خون دَ انصاف دے

سخاوت شان دَ خان مرګ دَ صراف دے

رقیب له شور او ماتم یار له وصال دے

یو له دَ وینے څاڅکے او بل له لال دے

مال له دَ ګند ګندا ۔ لا له ته بام دے

یو له دَ مرګ پیغام بل ته دوام دے

دَ عجیبه ژوندون عجیب کاروان دے

دے کوږ دوکان کښے کته کښ زیان دے

یو ناست محل کښے غمګین حیران دے

بل ته ایرو کښے وِیر پروت ایران دے

دا روک کاروان کوم خوا روان دے

روند نے نظر دے اوچ نے ایمان دے

ظالم ـ جابر ته ـ سجده ـ دُعا ده
هیرے دَ عُمره رحیم رحمٰن کړ
دَ زوراو یَرے(1) بت ته نه سکو ـ بنه
روک ترے دَ مینے ـ د نور مکان دے
دَ بل دَ وینو ئے لاس ګنبے جام دے
تنګ ئے جمات دے رونړے مام دے
خوږ ته خه وکړم چه وینم په تهرو* ګنبے رنګ دَ یار
دګلو نور ژید و ګنبے امسد و نه دَ بهار
دَ تاوان قلا ګنبے پته د جنون ناوے مستانه
رنګ محل ته نه شم تلے دَ مصرانه دَ جانانه
ماله غم ماتم دَ یاره دَ غم دَ غم تعویذ دے
ماله بل کل ته کتنه بے شی ډ شوق دَ بیزدے
هغه غم چه مستول کړی دَ ناصبا(2) تونه لذیذ دے
زلیخا ته تور خُنکل دے سو محل که دَ عزیز دے
ماله بله لاره نشته دَ جنون او دَ جانانه
کنی خو سبه م خندده ، دیره دیره دَ ژړانه

غني
دغر سر
دیره اسمعیل خان

(1) یرے : ویرے . (2) ناصبات : نبات .

# قسمت

زه نو مه خته یم لاس د کولال کښې

یا به د میو جام شم او یا کوزه د جمات

یا د یوګکے د زیارت د میخانے فانوس

یا د ویران تیکرے سرے او مات

څوانی مستی شونډو د بل د لاسه دی

څانه وس شته او نه ہم واک

شیخ په باغ کښې د یار د کوره

کوم ګل پلیت کړمه او کوم پاک

څنګه ملامته زه په ګناه شم — چه وس قسمت او تدبیر د بل دے

څنګه ستوماښه زه په خندا شم — خوب دے د بل او تعبیر د بل دے

!ہم ګناه د ده مین په عمل یم

نه زه د عمل آقا نه د نظر

نه ہم د واک دی خماری سترګے

نه اوږے شونډے ما ښوس

مانه دې ایښې د یار نظر کښې — سپرلي ګلونه او سور خمار

ما د چل نور مې نه دې جوړ کړې — شړنګ او غورځنګ او رنګ د بار

ما د سبا په پسته رڼا کښې — نه دے خوږ کړے د جادو ساز

چا شیرینۍ وو فرهاد ته خولې — چل جوړ به محمود کړه خان د ایاز

زه نه پوهیږم چه چا روښانه
د زهرا نور که په مخ د لال کښې
زه تصویر یم د بل د کوټو
بے جبانه (٭) خټه لاس د کولال کښې

یا به قسمت وي یا به دوزخ وي
او که وي دواړه نو ته رحمن نې ؟
نه شم زغملې . نه شم منلې
چه ته جلا دې او هم جانان نې

غني . خانپور



(٭) جبانه : ژبانه

# قارغان مارغان

تر اوسه پورې موږ د ژوند د مړینې مسئلې وارو داوار ولې. د ګوړې ورځې نه چې آدم له قیامت هوش ور کړې دی. دا سوالونه د مغزو ورځې رار وادی. هر سړي ولې د خپل طاقت او پوهې په مناسبت جوابونه کړي. انسانانو د مرګ سوال جواب ښتنه ولې د مرګ جواب نه لري. د جهان اکثرې فلسفې او قول منده مبنی د عزرائیل د شاهنشاهیت برخلاف بغاوت دی. قول ددغو تورو ګنډې نه تبنتي. خوک یو ګز خوک یو میل او خوک زر میله تګ د خوږغه چغه وي. الکه ماچه په ځوانۍ کښې یو ورځ ویلي وه.

## خاورې

چغې وي اَجل مُلا ته اورې که نه اورې
تشه خاوره نه دې غني خټکه به شي خاورې



او یا بله ورځ چې د لحد په تورو رزم د مستې سره شال

وېر کړې ده.

(ها دي . ره)

# مرګ

مرګ دِ راشي    چه کله ئې وس وي
ګل به م لاس کښې وي    او یا به آس وي
یا به ټوپک وي    یا به قلم وي
ووب به خندا کښې    د دنیا غم وي
په ښه موبخت وي    دوَمره به بس وي
مرګ دِ راشي    چه کله ئې وس وي
ولې آخر سړے ستړے شي ، او دا ارمنې چه ،
چه جام کښې ګوټ ګوټ    شراب څمیږي
سپرلے خلاصیږي    ګلاب کمیږي
دنیا دَ شمع کښې    دَ سحر نور راغے
چُور دَ بلبلو ته    نوے دَ باتور راغے
ستار کښې شرنګ هغه    دَ ماښام نشته دے
سرور په سترګو کښې    دَ خیام نشته دے
دَ ښکلے نه ښکلے، دَ مست نه مست، دَ سوز نه سوز ګل آخر خپلے حبرانے

او غمجنې سترګې دَ غزان يخو او بې رحمو بادونو پورته کړې او دخپل ژوند دَ شروع او خلاصيدو تپوس ترې وکړي او دغې ته وايو مونږ فلسفه .

زه مرګ يوه ورځ په مخه کړم . او دَ خپلې مور دَ سينې نه ئې دَ خاورو هغه ډيرئ له بوتلم ، کوم ځاے چه په يو دشت او بيابان کښې دَ هغې هډوکي پراته وو ، ما چار چاپيره او کتل . ستغ دربب ، سره خاوره او شنه کاڼي وو . دلته نه دَ ګلونو چمن وو ، نه دَ بلبلو باغ ، دَ دَ بدرنګئ په سمندر کښې دَ حُسن يوه قطره هم نه وه . زه دَ خاورې دَ يو ډيرئ څوا کښې اودريدم يوه ماته شنه خازه وه مثل ديرش کاڼي ښکته پراته وو . نورې مونږ او چې ترې وړې خاورې وې . مرګ هم را ورسيد او شاته م دَ آسمانه اوچت ولاړ وو . خوما سر اوچت که او دَ مرګ خالق ته مې او وے .

زه دَ هغې لال زه دَ هغې دسترګو تور رُمه

زه به دَ هغې په سينه تل ګُډه نسکوره مه

او س ئې ښکته ښکته دَ مزار کاڼو ته ګورمه

خاورو کښې هغه ده چه نه زه د زړه هلال ومه
هغه لال شو خاورے چه نه زه وړوکے لال ومه

لا رمه آسمان ته ماوراے د جهان موړ سپوږمۍ
زور د مرګی زیات دے که دے زیات د مینے نوړ سپوږمۍ
او ړی په لحد کښې څوک د سوی زړګی شو سپوږمۍ

موتے خاورے ښکله پټ د حُسن یو جهان کړی
یو پوکے د باد دا چمن ښکله بیابان کړی

خول مِ نه جوړیږی چه ظالم وو ایم رحمن ته
خو مرګ چه د جهان بادشاه کړم څه وو ایم خان ته
ولے د ډ وازه د علم لګ(۱)، نه شو ه انسان ته
سیال نه د خان ولے کړم چه نن د خاورو سیال ومه
هغه لال مِ څه شو چه زه وړوکے لال ومه



خودرو نِد خایشت داد ے چه تول عمر انسان سره د دے د خلاصید و فکر نه وی ، کله کله نه دا تو لے غټے هیرے شی ، او په خپل ماحول کښے دو ړه ورو غیزونو په تماشه شی او د ډیرو وړو شمعو په تالاش کښے ځان د هغے لوئے تاریکۍ نه او تښتوی .

(۱) لو - لوی - پرانتی

دَ حیدر آباد سنده په جیل کښې زما دَ تو تې تو ستې

مستقبل نه علاوه دېر نور خه هم وو . دجیلې دَ دروازے په خوا کښې

د میږو جالے وے ، کله نا کله به زهوږ د احاطې په کیکر کښې کمترے[1]

کیناستے ، کله به مو نیمه شپه کښې دَ تارو چرچق وا وریل

کله به تور قارغه لکه دَ یو جمهوریت وزیر اعظم دَ شور او

چل نه ډک په دیوال کیناست . دَ بمبے خواله به ما بنام کښې

چینلخه راغله . دَ دیوال دَ پاسه به دَ اوبس برېږ راغے

او په دغه ورځو کښې زه ډیرو ړندے تړے او یوازے وُم ، نو ما

دے تولو سره خبرے کولے . میږوته به م خپل دَ تیلو

پوخ ساګ[2] غورزوُ ، او کمترو ته به م خپله دَ باجرے دوډۍ

چوری[3] کوله . دا روان شعرونه ما دَ ځغوی په مجلس

کښې لیکلی دی که زه دَ ځغوئ په طبیعت نه یم پوئے شوے

نو معانی غوارم زه دَ انسان هلو وکی لرم . او دَ چینلخ

په خرمن نه شم ننوتے .



---

(۱) کمترے : کوترے . (۲) ساګ : صابه . (۳) چوری : مالیده .

# چینلخ

غ دِ دَ شیخنو په شان نه خاندی او بنیار دے
بنګلے دِ آواز لکه دَ ژرندے دَ غــرار دے

سترګے بتے بتے ، بغے بغے تشے تشے
چغه دوه منے غــریبه ، توره دوه اوربشے
خُله کــږه وږه لويه اوبږده او وازه ویسته
زرد دِ زړه کے خوږشی دنګا چه کړے راپلیته
خیته دِ چیتهٔ ، لويه او پلنه دَ لاله په شان
لنهے دِ پاپے ، ارتے سپینبږمے دَ متولا په شان
توپ ومے تُل نه کے خه بد رنګه دِ رفتار دے
بنګلے دِ آواز لکه دَ ژرندے دَ غــرار دے

او سے په اوبو کښے دَ تیخ او دَ ملنۍ په شان
کښ دِ دَ سری مسے کاته د مار ګمی په شان
ګرزے په پټو کښے دَ نولی او دَ لومبړ مسے
توپ دِ د ملخ په شان ، غټے دباګو کړ مسے

څه اوبه څه خاوره شوے څه مړ څه کبوړے
کله دِ په سترګو کښې چپې وې کله دوړے
رنګ دِ بې نمکه دَ خزان نه دَ بهار دے
ښکلے دِ آواز لکه دَ ژرندے دغړار دے

شپه کله ښانک کښې کله شپه دَ لښتي غاړه کښې
ځې ماښے چه پېښ شي خیل خانه ورله ریجاړ کړے
خوب کوے په خاورو خومستي یاري اوبو کښې کړے
اوسیے په تیراه (۱) کښې خوږې راوړه پیبو (۲) کښې کړے
پښې دِ دَ بتے او لینګی دَ چرګوټې په شان
چیت او لنډ او پلن، راغونډ وجود دَ مړهتي پښان

ممغ دِ دَ دله دے رنګ روغن دِ دَ ښامار دے
ښکلے دِ آواز لکه دَ ژرندے دَغرار دے



---

(۱) تیراه دافریدو وطن.

(۲) دَ پښاور خوا کښې کلے دے پکښې مشهور زیارت دے.

# مږه

اوسے په کندو کښې یاره غل نه پلار دِ غل دی
مور دِ غلچکۍ ده ، ستا نیکه دَ بدو مل دی

قوم دِ حرام خور دے قبیله دِ حرام خوره ده
مړ شوے په غورو پسے لګیے توره دِ سپوره ده

سترګے دِ کاسیرے دی ، چلباز دی بے شرمے دی
کلک دِ دی غاښونه او پښئ دِ نرمے نرمے دی

خیټه دِ کوهئ ده دعدو پاد شاني مے
سر دِ دَ نولی او بریتوکی دَ تُره باز مے

غلا کے دَ غریبه غلا دَ خانه ، دَ بنهیا نه کړې(٢)
سید او مُلا نه پیژنے ، بوته دَ هر چا نه کړې

ستا د اړوکے(١) خیټه دے همه جهان مړه نه کړه
ستا کاسیره تنده دَ عمرونو غلا سړه نه کړه

ذات دِ خُناور دے خوخوراک کے(٣) دَ انسان مے
اوسے په سخسوری کښې نیولی خښتے دَ خان مے

(١) پړوکے = دړوکے . دړه (٢) کی : کوی . (٣) کے : کوټ .

زړه دِ دَ یزید دے طبیعت دِ دَ شیطان غوندے
چین دِ دَ منت دے خومت دِ پهلوان غوندے
خو ورشے چه پیشوله نو بولاؤ پیتی دِ هیره شی
پش به خیته مور شی به تاکیاره باره تیره شی
غل تر هغے غل وی چه ترے بره غل پیدا نه دی
چل تر هغے چل وی چه ترے بره چل پیدا نه دی
دوه دانے ترے او خورے دوه دری خاورے ایرے کړے
اوبه ئے خوله دِ خاورے شه انبار ذرے ذرے کړے
خوئے دِ دَ خنزیر دے او فطرت دِ دَ ښامار دے
خوله کښے دِ آفت دے او په شونډو کښے آزار دے
خوغوته چه شی سخته آخر سینه ئے چاره شی
ته شے په جوارو پیشو ګان به تماره شی
او سے چه کوم کور کښے حرام خوره هغه کور لوټے
دا سے حرامی ئے خپل بابا او خپله مور لوټے
خو ورشے چه پیشوله نو بولاؤ پیتی دِ هیره شی
پش به خیته مور شی به تاکیاره باره تیره شی



# بازیګر کمتر

چاله لوبه چاله تماشه | چاله نور چاله نظر
څوک بندګي دَ خپل ګناه کړي | څوک غلام دَ خپل ځیګر

یو جوړ کړی د سقر نه | سره کلونه ماریګر
بل دَ حورو دَ غلمانو | نه جوړ کړے دے سقر

په نیکۍ پسے ژاړي | یو خوا ناست په تخت قارون
بل خوا زړه رنګه وصال دے | او لکه قسمه بیلتون

چرته سپی ته خپله لوبه | هم لیلی شي هم مجنون
کله خر ته خپل خرتوب شي | مست جادو رنګین افسون

دلته رنګ بله رنګي دوله | دَ احساس کنټرول یو جام دے
زما سترګو پیدا کړے | سپین ساقي او تور الهام دے

شپه او ورځ زما نظر دے | رونډ له نمر او ماښام نشته
زه عاشق ځکه د ربّ یم | چه انسان له دوام نشته

رَبّهٔ دے مرحَمه ، او هغه چې زما هوش پے نه پوهيږي

رَبّهٔ زما دَ روکيدونه بګړه ، لوړے ، سپين مقام

رَبّهٔ زما دَ هوش صحرا له يو محل دے دَ کمال

رَبّهٔ زما دے مترې سرله دَ مستۍ بوپړه جام

دا دَ روکو په وطن کښې يو ارمان دے دَ دوام

دا په تورو تورو شپه کښې محبوبا ماه تمام

چه اميد دَ هوش ياغي شو

چه مدهوشه شو نظر

خپل طاقت ورته سرهو شو

په سيل ووت بازيګر



# کوچے

"کوچے" زمایو ډیر زبردست سپین سپے
ما قسم قسم سپی ساتلی دی۔ انګریزی
جرمنی، لغړ او ببر، ولے د کوچے
په شان بهادر، خیشته
او او ښیار سپے
نه پیدا شوے
دے او نه به پیدا
شی، زما د بند په دوران
کښے مړ شو.

| | |
|---|---|
| زما کوچیه! زما کوچیه | ته خو سپے نه وے زما آشنا وے |
| په تنه نروے ترا زمریه | قصه د مینے نوم د وفا وے |
| چه زه اوچت وم د کل جهانه | په لکها سړی م داسی بره |
| ستا سترګے زر زر د مینے ډکے | تیرے د ژوند د غمان او سره |
| چه زه آسمان نه خاوره له راغلم | تاج م راکوز کړ اختیار م را خست |

شال او دستار او خلعت مې ورکه　　کنډم په سر که او جول مې وخست

ما ته زه هغه شان د ملک بادشاه م　　هم هغه سترګې هم هغه مینه

چې تول جهان غېل دا اړل ګړل　　تا اَر قوله لکې مهینه

ته خو آشنا وې زما د سترګو

نه مې د زور وې او نه د زر وې

د تقدیر تول که ډلاوه که سپک شو

ستا بس یو تول وا او یو نظر و

ته زما یار وې د بد وو رځو　　د بد وو رځو یار نه هیرېږې

چې تول جهان یو تور صحرا شي　　د سرو ګلو نو خار نه هیرېږې

هائې چې د زړونو په دنیا کې

سترګې روښانه ستا د وفا وې

زما کوچیه! زما کوچیه!

ته خو سپې نه وې زما آشنا وې

(تمندیانی)



# تورانۍ

دا مې تکي په پښتو ژبه کښې نښته
تورانۍ چه پرې زه دوایم ثنا ستا

دې دَ خاورو جوړو شوندې کښې خندا کړم
خوشحالي، مستي، خواني او خندا ستا

دَ غوټو خنک په ټولو کښې ښکاره کړم
خنکه کېږه کړم ما ښپونۍ دَ دام کښې

خنکه و نسیم په کوتو کښې سرود ستا
خنکه وا چوم دَ نور دریاب په جام کښې

خنکه خوب دَ خوانۍ کړم بندي دَ خاوره
په غم او تلم رنګونه دَ وصال

خنکه نور دَ یار دَ سترګو لاس کښې واخلم
خرنګ او ترم پله وکړي کښې هلال

نا دیده غلام دربار کښې دَ سلطان
دا مې زه و لاړ ستا حسن ته حیران

داده بس چه مجبوري م خپله او منو
تورانۍ نه شم کولې ستایان

خو چه ستا پیغام دَ نوي صبا وا ورم
لکه ګل چه دَ سپرلي وا وري پیغام

تیاره هیره کړم په طمع دَ رڼا شم
په لحد کښې او څکم دَ مستۍ جام

امید وي یې ښي ژوندته بل خیشته مشال کړي
دَ مرګي دَ غنه تا و دَ ژوند ون شال کړي

# مُلا چرګ

زیږ دِ قمیص دے — خرړ دِ خنبتک دے
شمله دِ نیغه ده — او کوټ دِ برګ دے
توله ورځ ګنے ګنے — په خان مینه
چا خوار چینجی پیے — کنده، کوینه
نمایشی شان نے — کړے د غرور الوته
د مشرو تو نه دک — ستا قدمونه، کاته
بخے بخے د سترګے — دی د "پښتو"(۱) په شان
په دریغه دریغه تله — دے د تتو په شان
د سلیمانُ د لالی! — نوم او صانه د امام؟
یو خوا قبا او تسپے! — بل خوا پیاله او خیام!
یو خوا سپین روږے ملک — مرینے د رسم او قانونُ؟
بل خوا د مینے دلال — بندی د رسم او افسون!

(۱) "پښتو" زما معزز او محترم دوست مهر دل خان د صوابی-
خان خیل ته نے ورور کے دے، خو دماغ نے ډیر اوچت دے.
او موږ ورته د قهر او محبته "پښتو" وئیل.

یو خوا تنګی تاریکی   دَ بل د خیال سودا

دَ هال او بېچ سودا   دَ خان او مال سودا

بل خوا دَ بل په سینه   ځان او ناموس وړکول

پټ شاباسی لهٔ دَ زړهٔ   دَ خار جلوس وړکول

یو خوا دَ بل سترګو کښې   د دړنیدو تالاش

بل خوا دَ ماتو ځانګو   دَ الوتو تالاش

زیرک او معقول پښتنیه   پکښه په سر مُلا

تا کښې ښکارېږی ماته   د ژوند عجیبه قصه

چه ځکله ته والوزې   • ملکه سبا • ووینم

او سلیمان ته خاړې   تو له دنیا ووینم

د بحر و بر بادشاه   وړې شان جوړې ته

قربانوی خوشحالی   دَ غم میرمنې ته

د ګل خندا ووینم   دَ لولکۍ پرواز

دَ محمود اوږې سترګې   معصومه ځله دَ ایاز

نهٔ دَ آدم دَ جوړښت   په وجه راز پوی شم

په خپل انجام پوی شم   په خپل آغاز پوی شم



# بورا

توره بورا توره — نه ممند نې که ختیکې (*)
نه کېنې د ګو نګت — دا ارمانونه دلوکې
مور دې ګل اندامهٔ — بابا دې ښرابان (۱)
رنګ دې د شاخیل — او طبیعت د شاهجهان
بنګ دې د ډمبر دے — فلسفه دې د خیام ده
تورګونګټه تاګوره خانې — ښکلې خوا د جام ده
تا د رنګ او حُسن ساز — د چا په ستار واوریدا
تا د چا د ښکلې داستان — د مینې او یار واوریده

اے توره دیچکیه تاګبنې د شیرازولے
اے خپه ما بنام: تاګبنې نوره او ګلانه وې

خوږیاره تاګبنې م! — یو صفت بَدی شي
ستا ګوخه د بشانِ! — م عادت بَدی شي
اے مرجائی عاشق — د یو ګل یار نه ے

---

(۱) ښرابان هغه دیو وه چه په ګل اندامه بنا پېرۍ مین وه.
(*) ختیکې: ختک یې.

دَ مینې نوم دِ سپک کړ | دَ یو دلدار نه ئې
هره لمحه لحظه کښې | نوې خمار لټه ئې
او په مذهب دَ مینې ئې ته بې وفا | پروان دَ بل وې اوس نه ما ئې

په رنګ او بوئ مینه | جانان دِ هیر دے
خوانی مستی ټکلوے | خزان دِ هیر دے
دَ فراق تور غمونه | ژړا افسوس او ماتم
هیر دِ دی اوچ سیلنډونه | زړه خوانی، نوے غم
دَ زیړو ګلو شان کښې | مرګ دروکیږ دِ دی هیر
دَ نن په شوق مسته | سبا راتله دِ دی هیر
داسې بې توله ته ئې | څنګ بې پایان چه نه یم
ته دَ صفه ئې بورا | دَ چا اِنسان چه نه یم

تاکښې رڼا او تیاره
سپین ښته او تور ښته
چه ته ښکاره شې نه ویم
زما هم رور ښته



# تارو

ډکوړ یو ونځے تور تارو په سجده پریوته
وے کړله رب ته عجیبه غوندے دعا

وے تور و لے تنده ے ډے اوخړو لے زانه ؟
وے یو ۔ باتور ۔ یوه ګنځے ۔ یوه هما !
زه به تل حسینؓ یم او ښکاري به تل یزیدي ؟
لاس کښې عله دام ۔ کله توپک ۔ کله لینده ؟

پرده بورا یوسي تور بورا د ګلو مینځ له
پرو ري ګنځے غریبه بوی له او ډیران له
پروري لو لکه ، لکه باد د ګلو پا ے نے
پروري پتنګ د ناله ، سوزله ، او تاوان له

پروري مینه ے د تورانئي ښار و منبو کے له
پروري کرکوره د شهباز او ښکري نو کے له

پَرقارغه په کند، پتنګ وروا چوي په اور
پَرعقاب لاغر او تپوس لاشي پېغور

پَرتیو په باغچه کښې د صحرا د درې لیواله کړي
بل له جام دَ ژوند شي، جام دَ زهرو دَمنګوي

پردعقاب لوئي شوزتبه وي دَ تنزرو!
ولې هر مارغه کښې نشته تله دَ توتکرو

ولې هغه ملک دې دَشهباز دَ شکرې کور که
کوم ځاې چه درانه ګوزي سیلونه دَکمترو

یو تنزرې بس دو ستا کمال ښکاره کوله
ښکلې دَ طاوسه خوش زبانه دَ کمترو

بس چه یو مارغه وې، یو ئې پروې او یو ته وې
بس چه تل باجره وې، خاوره دونې دَوا ښه وې

بس چه تل سپرلې وې، زیړ ګلونه وې، سباوې
بس چه بس یو ته وې، یو ارمان وې، او یو ته وې

* * *

تول جهان خاموش، شو دَخپل زړه آوازې واوریده
زیړ لکه غلام، د بادشاهانو رازئې واوریده

تول جهان خاموش و، یو آدم وو چه ګویا نه شو
مینې دا سې یو ړو بې خبره دَخپل ځانه شو

وے، زړلکها سوالونه ژوند جواب یم زه ئتولو

زه یوه قصه نه یم، خو باب یمه د ټولو

زه کله مراد، کله ارمان، کله غرور یمه

زه تنګ او تکوریم، زه شراب یمه د ټولو

زه یمه مخلوق خو د خالق در ننګه ډک یمه

زه کامل کمال، زه سُر رباب یمه دَ ټولو

زه یم تورے پنجے د باز سترګے دَ تنزرو

ما کے پټ ارمان دَ حُسن۔ زور دِ دَ وزرو

پهارپور



# کور کوره

خومره ښکلې تصویر دے ستا — خومره ښکلې دے آواز دے
ستا په نظر کښې مستي ږدې پټه — ستا په پاپو کښې ایمان دے

مخ دې نازک دماشوم په شان
خوئي دَ خیشته نازنین مسے
خیال مستانه دَ خیام په شان
ملَه دمخمور ماجبین مسے

مینه لوبې، سترګې دے — ناز او نخرے دَ دلدار کوے
ته دَ ګلاب او نرګس په شان — ماته قیصے دګلزار کوے

ښکلې ثبوت دَ خالق دَ خیشت
ماله قصه دَ جنت ئې ته
ماته داستان دکرم کوے
ماله دلیل دَ رحمت ئې ته

ستا دَ ګوګو، خیشته آواز — ماله اذان دَ بلال دے
ستا دَ خنا! دنیا وجود — ماله پیغام دَ وصال دے

# مچ

شغ شي چاۓ کښې راغوته شي — دا د څه خر بیښې رنځ دے
پکښې داسې چورلک او وے(۱) — ته به وے د بنگړے(۲) منځ دے

اوږدې ژبه دِ شه خاوړے
نه دِ خوب شته نه قرار
په ترو سوتو مینه
والے(۳) ئے د چا آزار

د هر چا کره میلمه ئے — نا بللے بے عزته !
نه په شرپ بانده جاروزے — نه په سوک او نه په لته

توږ دوغ بے شرمه سترگے
تیار خور ئے مردار خور ئے
بد خوئي سخا دِ دود ئ دُ
پهر شي د پاسه سوږ ئے

که بنورواوي ته پرسے مرئے — که غوري دي ستا پکار وي
ستا پرے بے صبره غوتے وي — که خاشنه وي که انار وي

(۱) اووے: ورمے. (۲) بنگړے: انې تکیا. (۳) والے: وهلے.

بې غیرته خوځې دومره

د مړو رور وینه څښتې

اې شهیده د کعبې بو

اې غازي د پراتې

که پښتون خیلوان د مړ شي — ته د خپله خوریه ناوړې

رې داسر د خیتې زار شه — شرې شي زیړې خیته داوړې

بلا ې بلا ې د پاپې دي

د لینګو پورې لړې

خله دي زیړو په لاوڼ ده

چې پروان دي وو خوړلې

سخا میوه لیقرې با بوریه — ستا پولاؤ فیرني حلوا ده

ستا دې خیته کښې دوزخ دې — ستا د شونړو کښې بلا ده

قوله روحې چپه چپه — ستا دا خله اوزمکا نه شي

د دنیا کښې ونخلاص شي — ستا قلمه تلاړه نه شو

خیر دې ژمې دا روان دې — تور اوږ بوز به دي چپېړ شي

چینکه خله بې چرته پرووت ځې — دا قلمه به دي پاپړ شي

زه به خورمه په قلاړه

تو د شربت او خوږې ګړې

دا بوډۍ نیا به دومړه دي

توره مچه ته بم[1] مرې (رحیم آباد جیل)

(۱) بم = به مم.

# شپږ زمری

په ۱۹۲۹ع کال کښې زه په دویم خل د هرې پېښور جېل ته
راورسېدم. دا زما د بندېدو دویم کال وو. په دې دوو کالو کښې
ما د پېښاور او حیدرآباد سنده جېلونو کښې ډېرې بدې
ورځې تېرې کړې وې. مونږ ته اِل یاران. د هستان جېل
خپلوان د پاکستان په ټولو صوبو کښې خوارۀ بنا وو. خو د هغې
جېل ماته د کور په شان ښکارېده. ځکه چه دې کښې زما بابا
ډېر کلونه تېر کړي وو. د هغه د لاس ډېرې ونې دلته کښې
ښنې ولاړې وې. زه د حیدرآباد د جهنم نه دلته په کال پس
راغلم او په ډېره موده پس م یو وړوکے د زړو کلونو نه ډک
بوټے ولید. هر سحر چه زه به پاڅېدم نو د هغه سلام له
به لاړم. زه په انګلستان، یورپ او امریکه کښې ډېر ګرزېدلے یم
او ډېر لوی لوی باغونه م لیدلي دي. وے دومره خایشت
او ښا په یو بوټي کښې هم نه ده. خومره چه دغې غریب او
ارزان ګل له د خوا د او سپېنې تو ھے پنجرې او چاپېره

تور ماحول ور کړے وه. د دے پنجره کښے ماسره نور هم شپږ ملګری وو:

۱- پیر شاکر الله د کوجړ کړئ.

۲- خانخیل مهر دل خان د صوتی د نواب هوتی ورارهٔ.

۳- جهان زیب خان د رزړو. زما د تره ورزوی.

۴- فردوس د مانیرئ چه مونږ ورته د میتے نه ګوګوایو.

۵- زرین خان د میاسے د پارلیمنټ ممبر.

۶- یوسف خان بابوخیل.

یو ما بنام م ِ دماغ او تنبستید، دا د تورقتو شعر م ِ اولیکه او د دودئ نه پس م ِ واورروو:

دلته کښے پنجره ده په کښے شپږ دی ازمری
خوګ غت، خوګ اوږده دی، خوګ خاړه ی د خوګ نری
رو ره پاکستان عجب جوړ کړے چړیا ګړ[1] دے
بند پکښے، دیوان، پیریان، ازوزی بنا پیری

(۱) ورته محاظ دره پنجره ده د کو کو
مخ ئے اوچ یو بند سے دے په مثل د ماکو

(۱) چړیا ګهر: باغ وحش.



A.S.K.B

رنګ ئې د نېرنګ دے خوږي زړه دِ د پښتون

تن ئې د بلبلې خو همت د هــلا کــو

دئ اوکنه، اوکنه، هن کنه هن هن کنه

یاره که رب زه کرم د دے تولو تولوا کــو

زه به دا خاربه ښتونه کرم یو ځل نرے

دلته کښې پنجــره ده پکښې شپېږ دی ازمری

(۲)

اَخوا ئې زرین دے دَ وطن نوم ئې میا سه

هرما نام او با سې دَ خـــبرونو خلاصه

غابن دَ غریب نشته کښې خوښ ئې دی چرګان

هره ورځ کډ وخورےــ ډېرے خوار له دلاسه

تن ئې د چېنجــي دے خو عقل دَ لقمان

خیال کښې انتشار دی او زړګې کښې تلوسه

حرص دَ دنیا ته لګېږي دننګ کوري

دلته کښې پنجـــره ده پکښې شپېږ دی ازمری

(۳)

بل سر کښې یوسف (۱) دے هاضمه دَ غریب ورانه ده

هره ختې قصه دَ اد رقو ، پو کــو . روانه ده

دال ئې هوا بند کړي . الوکان ئې اپنه سپېږي

غور ئې زړه له بد دی مسالې په ګړه دو ګرانه ده

(۱) یوسف خان آخر معافي او غوښته او کلي ته لاړ . إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ .

مالکه ئې سترګې زیږې کړی بنوروی اشونګې اوچې کړی
دې جیل ته حیران دې، جیلخانه ده ته حیرانه ده
چائې چه دیره اوخکی لګی اِنګی پرې نزی
دلته ګنبې پنجره ده پګنبې شپېږ دی ازمری

(۴)
خواګنبې ئې دې پیر شاکرالله زموږ خان
مرچاته رسی، تمبیر، او ګُرګره، الوګان
دې خواته سپی ګل، اخواغوری، اخواصابون
تله په لاس ناست وی زچلونوکئی بیان
خان دَلوبې مرګری خواشناله دالې ولیږی
کاش چه وې دَده په شان تول زموږ پیران
مالګرُوه راکړی. یارله ولیږی سترې
دلته ګنبې پنجره ده پګنبې شپږ دی ازمری

(۵)
دیخوا ترې مهردل دې دې زموږ درو کے ډور
چرته چه دې ناری هلته وی خندا او شور
یوموتی وجود ګنبې ئې یوغږ دَنرتوب پروت دې
سل مرګه به واخلی وابه نخلی یو پیغور
تل به بل سورلی کړی په فطرت پیدا اخان دې
ګُرسې جور کړې دې غرورګنبې خان له کور

خیال ئې دموسیٰ او خاندان دسامري
دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دي ازمري
خو اکښې ئې لالی (۱) دې زمونږ کښته زما وروور
(۶) قیل لې که په دې چه د دې زړي زما د ترور
دې په زړه باتوږ وو خکه کوږ له دغم راغے
ښته خلمي، خلمي، زماد خپلو بچي نور
دا ورو کے زړه ښنک دوطن سینې تالاکه
دا خو دې له جوړ وو چه کړي خاور دعشق اور
دا رو کے زړه ښنګه دهوکه نه که سامري
دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دي ازمري

چه دا شعر م واورو. نو ټول ملګري م چپ شو. یوسف خان خوراسره خبر بند کړے. زرین کاکا مهردل خان ته خپل زړه سپک کے. مهردل خان م خفه شو. ډیر بار ئې راته اووے. زه ډیر خفه خپلے چکنے ته روان شوم. ناګهانه م هغه ورځ د زیره کلو نو بوټے ولید. و سپره م خوا کښې کیناستم. هغه دے وخان: بنن خو ډیر خفه "ماوے. ټول ستاډ دان م خفه کړي ی د خکه خفه یم. ماخو ټوته کوله خو هغو ترے بوته جوړه کړه ". بیا وے "خان: دا خپله خوله دم تلاده م بلا " د تکلی دکلې. بل شعر ولیکه ". نو په دغه مابنام ما د خپل ژوند اوله قصیده ولیکله او د تجربے په طور م خپلو ملګروته را وروله او هو، هغه مابنام زه په ټوله دنیا بنه دوست او لوئے شاعر شوم او کوم شعر چه رما ټول مرور دوستان زما مینه ناک یاران کړه. هغه لیکم.

---

(۱) جهان زیب ته مونږ لالی وایو.

# اوه کلونه

یو وړه غونډ پنجره کښے — په یو کوټ کښے دَ دې جیل

دَ اوو کلو جوړ کړے — آزادي له چا امیل

(۱) اول کال نے زرین خان دے — چه په مات او کوړ وجود

دَ الله الله سوړے وی(*) — په تنور کښے دَ نمرود

(**) پوئ په سود او پوئ په زیان — په دماغ لکه لقمان

دیو خیال او خوب دَ پاره — په خندا خوشبوی زیان

که روند پریوزی سوړ انګار ته — همت نه دے حماقت دے

چه هم سوزی هم روان وی — دا مردی دا شجاعت دے

د رستم نه بهادر دے د میاسی روکے نانا

دَ ترخو چا یو پیالو کښے نے کړه ډوبه جیلخانه

(۲) ورپور دے فردوس خان(۱) — په مخ سپین په زړه نازک

د پښتو په نوم او ننګ کښے — دَ فولاد دَ ګټے کلک

لا ورور کے شان هلک وو چه پرے وشو امتحان

دَ لیلے په عبادت کښے دَ رقیب شو بندیوان

---

(۱) فردوس خان دَ ۱۳ کالو په عمر اول جیلخانے ته راغلے وو.

(*) وی = وهی. (**) پوئ = پوه.

دَ دنیا په وارو سرمو — په پښتو په خوږو پوهیږي
چه پښتون په تیرو سرشي — دنیئے لا سر کښے او غوږونږي

خپله گټه خاني پریږدي، کند را داخلي دَ ملنگ
خان په ننگ خاورے ایرے کړي چه پښتون ته واخلي ننگ

رتب دِ بوزي مانیږے ته — چه کني[1] بیا دَ ادے سیل
دَ ارو کلو جوړ کړے — آزادي له چا امیل

(۳)

ور پسے زما چکني ډ، چه لړ بسم یمه دیوران
په میراث کښے م زبرګی ډ، خو په فکر کښے شیطان

یم پیدا دَ مشتنگره — خو په فکرا تمان خیل
یو عزه ورانه، وبچاره — غوندے زانه دَ دے سیل

قسمت جوړ به نکه خوږکی دَ ما او بنگلي پلاله
نصیب شپول دَ ازغو وکړه د پښتو کلو گلزاراله

خو دَ بخته تیښته نښته — زه پرے تنگ یم دَ هر چا نه
ما ته دے دَ غم او تکلیف کښے — دی دَ ژوند تیر ول گرانه

ولے خه او کوم وړکیږم، که حبا اخمه دَ سیل
دَ ارو کلو جوړ کړے، آزادي له چا امیل

(۴)

راپسے روکے لالي دے — پاکستان ترے نه بیږي
چه تاریخ انگریزي وائي — نو جناح[2] صاحب قاریږي

---

(۱) کني : کوی . (۲) محمد علی جناح (۱۸۷۶ - ۱۹۴۸ ع)

دَ کالج نه نے راوښکه، دَ ځوانانو تورے کوڅے ته
او دَ مکتب دَ کوډرے راوست دَ ژوندونو مسلے ته

دلته هغه تعلیم مومي ! چه په کال جهان کښے نشته
جیل چه ښیي هغه ښوونه دَ تعلیم امکان کښے نشته

دردونه او غم هغه استاذان دي، چه لقمان او افلاطون
ارسطو، سقراط، بقراط نے په مخ کښے دَ زړه بون

دے بندي دَ انصاف نه دے دے بندي دَ چا دَ زیل
داوو حکلو جوړ کړے آزاد دے له چا امیل

ورپورے چکی کښے پروت، زمایار دَ هوتي خان
(۵)
په وجود یو موټے غوښه، په خیکر لوئے پهلوان

که عیشونه که خندا وي که وي حورے که غلمان
هیڅ نے تینګ نکړي چه جوړے شي دَ مستۍ تورے میدان

کاش چه دَ خانانو راوړے، یو ځو دا ننګے خانان
خو افسوس دا سے بانشته په هوتي او په مردان

څه باغیرت عقل کښے خاندي یو مثال یو رهنا کړے
چه همرد الکه کوے پورے تول عقل شي چراغان

دوره کال او دیرسه نهه دے په دے کال کښے دَ رامیل
داوو کالو جوړ کړے آزادي له چا امیل

ورپسے شاکر الله دے        دَ همّاونه او بسیار

(۶) په خندا خندا یو کړی        د مرچا د کور بیګار

دا پیر دے چا لیدلے چه خان او سی مرید نه

په خندا د حسین سترسه سایه یوسی یزید نه

که دَ عقل په حساب شي        وی دَ زرو خزانے

دے به وُ یا سکندر        یا دارا دَ زمانے

خو افسوس چه لاس نه شته د زړګی په پیمانه

خکه تش وندڅه وائی دَ ګلونو افسانه

په نشه شمو ځنداره کړی        یار دَ عطرو دَ پلیل

دَ اوو ګلو جوړ کړے        آزاد دے له چا امیل

آخری دَ یوسف خان        دَ غنی نه مرور

(۷) هم یے مال په شمله داوشه        هم تالا یے شو ځیګر

پلاز یے غرو و دُ سدم ننګیالے او تروه باز

پوزی په ننګ او پښتو وو دَ جنو ښیشته راز

لکه باغ په ګل ښیشته وی        داسے وو په دُ و سدم

ژوندانه کاو د پښتون زړه نے        دَ ژوندو ستر ګو په نم

نے ښیشته په مه بنګاری تو خانان د بابو خیل

ذ اوو ګلو جوړ کړے آزاد نی له چا امیل

دې څلور مونوکران دي　　پښتانه دي څوک هندکيان

يو چاچا، يو مير قدم دے　　اسرافي او اکرم خان

اکرم خان د نغرو دے، کړي کدو بنه د پلاؤ

دي ملام باندې کړے، تود او تريخ شالاو

چاچا بنه پوره بيره دے　　ميز کرسئ لګوي چُسته

خورو ژو غريب خراب که　　نوکري ئے شوله سُسته

اسرافي او مير قدم پښتانه دي په نسب

خواران کئ زمونږ خدمت، ښه په چغه ښه په درب

داماليان دي او به او ځي په شنو بوټو د رامبيل

داوو کلو جوړ کړے آزاد ئے له چا اميل

هري پور

۱۹۳۹ء



# پلوشه

که سترګے ښکلے نشته ښکلے یاد خوږے شته

که تخت دَ بادشاهۍ لرے دے جلا د خوږے شته

اوږدے شپے د فراق شوے په جانان یادولو تیرے

که وصل نشته شکر دے فریاد خوږے شته

داغم دَ مینے غم دَ خوشحالۍ په شان خوږ دے

دَ غم مالک هم خان دے جایداد خوږے شته

دا زه چه مُسکے شونډے دے تیاره شپه کښے ولاړ یم

دَ یار مرورتیا که نه وی خو امید اد خوږے شته

خُما دَ لالی راج هم بادشاهی دَ پاکستان ده!

آباد، ئے که یو نه وی. دیر برباد خوږے شته

چه اَخلے لیونے ربه، په مینه کښے نے ډوب کړے

دا یو داسے مرګ دے چه څه مراد خوږے شته

غني

مرک پورخیل

# خیال او رنګ

دا سوز او ساز، دا شان او شرنګ
یو سوري د وخت او خیال او رنګ

دا اوښ کاروان، دا سحر ماښام
دا کوتې او شونډې، او مې او جام
دا شپې د خزان او خوب د بهار
نشه د مجنون او پیاله د خیام
دا ګل، دا ساز، دا شان او شرنګ
یو سوري د وخت، د خیال او رنګ

دا زور، دا زړه، دا تورې خیشته
دعا، او جزا، او حورې خیشته
دا ستر ګې، لیوالې د ژوندا، او نور
د شونډې، مستانې مغرورې خیشته
دا تله راتله، دا خیال او رنګ
او رنګ، د رنګ، سپارې تنګ

دا ښکلې ځاته، په نیاز کاته
دا روڼ (٭) نازک، په انداز کاته
دا لړو کښې تا، د سپوږمۍ د مخ
نرګس کښې نیاز بین د ایاز کاته

دا مینه، رنګینه، دا شان او شرنګ
یو سوړ سے د وخت، د خیال او رنګ

سپړ دل د ګلاب او خندا د یار
کابږه کاته، په رضا د یار
انداز د مستۍ، او تهول د غم
سرے سترګے او شونډے نه ما دیار

دا مست ماښام کښې د ژوند غوړنګ
یو سوړ سے د وخت د خیال او رنګ

محفل د غمونو او جهان د غم
یو شمع وړه، دنیا تورتم
یو عجب خموش کښې یو کوړنګ د ساز
په راج د مرګ کښې د ژوند آواز

دے تور سمندر کښې رڼا او رنګ
دا مینه، رنګینه، دا شان او شرنګ

غني

خانپور



(٭) روڼ : وړو.

# کاروان

ړوند او قلار، اوږد او لوبه دی، نه به یو ځا شي نه یو ځا کیږي

تیاره او نور یو د بل جوړ دی دا که به تیر وشي دا چه تیریږي

لکه د سیند د ژوند هم لار نه ده. کله په ژړا کښې کله میلانګ کښې

بنده عجب عجب پیلاوې کوړې، پښخلو رو کښې ځکې آسمانکښې

جانانه مانه کړه راپورته، د آبکوړ که دا ستر ګې تورې

د ماښام لړې تیرې کړه میرې، د لوړه دلبره ادس نورې قیصې

وګوره دا سینه صبر چې روښانه دا مونږ تمخانه دا مونږ وانی

و وی ساعت ځوانی ده دا عاشقانو کوې هغه چې ځوانی کښې خالی

جام مونږه ډک کړی ژړونه مستانه

کاروان روان دے جرس غږیږی

شونډو له شونډه د مینې پوښتي

مبارکلو نګے دے مجلس خوریږی



غني

حیدرآباد جیل

# بې وفا

حُسن حُسن لټومه | که په غرونو که په سمه
زه په مینه مینه پالم | بې د مینې مرمه مرمه
بې وفا که د جانان یم | بې وفا نه یمه د مینې
چې زه رنګ رنګ خالونه ټولوم | چې پې ستړی کړم رنګینې
چې خُم د مینې تش شي | تش پیاله مې شي بې خونده
بیا به کړې میخانې له | سینه یوسمه مجروحه
تش کوزې ښکلې نه شم | چې خونا نه وي د ګلابو
زه مین په پیاله نه یم | زه مین یم په شرابو
پتنګ نه یمه مین یم | چې د شمعې رڼا نه وي
تورانۍ نه وي سندرې | چې مستي د سبا نه وي
بې وفا که د یو یار یم | وفادار د مینې یمه

حُسن حُسن لټومه
که په غرونو که په سمه

(۱) دي: دوائي.

غني
حیدرآباد جیل

# بند

ما چه خوړه بند کړی حرص او هوا بند

سبا غواړی د مغے نه سودا بند

د ټبو ټالا کښے مینه نه کیږی
خټک به بند، کاند سیلاب د هوا بند

تول غموبو اظهر د نیاز یو دل
لکه واچوی نیازته رڼا بند

دے له نے نه خکم چه نشه لیونے شمه

جام کښے کوره پیووت د نوم د آشنا بند

په دمولو تمویا ونو نه جوړیږی
چه یو خل زړه کړی د مینے بلا بند

د فولاد روز خیبر نه دے چه یوسے کوم
کړم جانان په نازکیز په خنا بند

په جنات کښے دا وچے شو یم ناستم

لکه وی په بتخانه کښے ملا بند

د دنیا آزادی وار م قربان کړے
چه کړم زړه د خبر یا په تلا بند

د دے بند د تو بند وته نشته
چه تیخوری د وجود او د سا بند

لیونے وا او یا په دا سے شو د مکانو

په پنجره کښے که په شان د مینا بند

غنی - حیدرآبادجیل

# مدرسه

څه سبق راته ښئ (۵) زبه !
زړه دے غم په مدرسه کینې

فکرکوم خواته روان ځے ؟
په کوڅے د وسوسه کینې

ته خبر نه ئے د خپل زوره
زما ماتے شوے پښتنی

په پوا او چه م زده نه شوے
زده کوم نے په پښتنی

وامنم ته بے پروا ئے
هر څه کے (۱) زما د پاره

خوکاش چه دے نازکوچنو ته
تا دے ښوله لار هموارہ

داتقدیرم سخت استاذ دے
یا ئے د ب تریخ نے آواز دے

د لولئے نازک وزرته
گران د غرو د سر پرواز دے

ژوندون نه دے جوشند ودہ
په کښینے سل قسمه خوند و نه

نه هم خوږ شو نه سم تریخ شو
هم صحرا او هم سیند و نه

هیڅ په پته د پوی نه شو
چه دا د وجود (۲) کوم رنځ لره

ولے ولے د کور دره نه
ماوږے د دریاب مینځ لره

زه په غاره یم خوشحاله
زه باتوږ لا مبوزن نه یم

زه د مینے توریانے یم
د جنگ نو توزن نه یم

غنی مړ په شمکو (۳) شو
وږکه سپینه پتا سه

چوتی اوکه تانی اوده
ښیه بنا که مدرسه

(۱) کے : کړے

(۲) [illegible]



# صنوبر

لاس مې بند، ژبه مې بنده
دلته ناست یمه دیګر
لکه ناست وي وزر ماتې
په ماښام کښې بازیګر

چې په خوله او تېتې سترګې     د کال خیا کښې کوږنګے ناست دے
دخپل غم په ننداره کښې     ډوب مشغول دے صنوبر
د برهم دریاب په غاړه     تشنه لبه اوچې شونډے
لیونے د تندے مر شو     ژمستے ئے تش شو سر

دخوانئ د غم ماښام
د پیرنے سار (۵) د اختر
نه دی چا برابر کړی
نه به ئے څوک کړی برابر

---

(۵) سار = سحر.

راته ښکاري چه بوډا شوې — رقص او شرنګ دِ نښتي خیال کښې
ګله نه کوي نظر ستا — غوږ زنګ نه لوري په چال کښې
دَ زوال استازې ناست وي — تل په څوکه د کمال کښې
وخت اوړوند، هغه ښکاریاندي — چه هما هم نیسي جال کښې

په ویښتو کښې دِ ښکاره شو
دَ مرګ استازي سپین
قسمت لیک دَ ابد وکه
ستا د سترګو په جبین

نشته کیږي ډک دَ لوبو کندو — دَ مستۍ جهان مهین
دَ خزان جامې اغوستې — دي نرګس او نسترین (*)
د سبا رڼا پیکه کړه — ډک دَ شمعو د رنګین
اوس دِ خوږ په ژبه لګي — دَ شرابو نه کبین!

هغه سرو ګلو نه څه شو؟
چه ټوکول به دِ محفل کښې
هغه لوئې ځا څه شوې!
په تیاره نه به چه هوا کښې

هغه مست سرود دِ څه شو — چه به ښکه دِ هر ساز کښې
هغه سپین مشال څاپیره — چه لګو به دې بیدیا کښې

(*) سټرين ـ نسترن

دا تور تور سوري د ځپاړې     چې روان دي دې په خوا کښې

بوسیده دي روخوزده کړل     تیتیدل دي دې په شا کښې

لاس د بند زنه دې بنده

ناست یوازې او دیګر

لکه ناست وي وزر ماتې

په ماښام کښې بازیګر

چې خوله او پښې ستړې

د کال خوا کښې او نک ناست دې

د خپل غم په ننداره کښې

ډوب مشغول دې سنوبر

غني

هري پور جیل



# تماوزه

اے د مینې فرښتې!

اے د نور او رنګ قیصے

ښایسته ته چا بندي کړې

د غمونو د کوڅې!

چا ورو لولکه ږېره کړه ۔۔۔ تور تم سیا باران کښې

چا تصویر د صحرا جوړ که ۔۔۔ دے د سره ګلوبستان کښې

په مینې چې شي مینه

یارانه نه ده بیو یار دے

چې په غم ارمان بلا کړي

دغه مینه دغه یار دے

که مجنون په لیلی زوک وو ۔۔۔ په مجنون دوکه لیلی وه

چې فرهاد مسکے او مستانه ۔۔۔ شیرینې هم په خندا وه

دا نه مینه نه وفا ده

خوشحالي مستي کتل وو

په ځنځي کښې وزرونه
دَ لولکې توکېدل دي

دا دَ سود ګټې قيصې دي — بندګي قرباني نه ده
د مجنون دَ زړه مستۍ له — دَ ليلىٰ څوک ثاني نه ده

---

خوږې دَ حسن فرښتې:

اے د نور او رنګ قيصې
تا مستي بې خودي ورکړه
په ژړا او وسوسې

اے محبوبې بت پرستې — زه يو بحر دَ تېرو يم
اے دَ سپينو ګلو لښتې — عکس ستا دَ لولو يم

---

اے دَ غرور ډکې خو واورې
ستا د ښائستګونو ډنډو کې
زما بحر دَ مستۍ دے
ستا نيازبين زړه ورو کې

ته نې حوره د فردوس — خندا دې زړه د جهان
ته ژوندون رڼا او شمع — زه تیاره، غم او طوفان
ته تسکين دَ مسلمان يې
زه يم مينه د کافر

ته په مینه تالا زړه ئې

زه په حُسن تالا سر

ته بنیاد او روح د سیند ئې     زه موجونه سرېږي

ته سرود، طور، او موسیقي ئې     زه ارمان د ساحوري

اے د حُسن فرښتې

ته ئې حوره د رضوان

زه بادشاه یم د دوزخ

په لمبو د اور روښان

زه یخ باد یم د خزان     تورے لړے د ماښام

زه مین د بُت په سترګو     په ساقي یم او په جام

ستا خیشته مینې وفا!

په معنی د مینې پوی کړم

ستا غمګین روښنان نظر زه

هم بناو کړم هم سپېځلے کړم

اے د حُسن فرښتې     ستا غم نه دے سوځار دے

د خزانه تاجوړ کړے     یو رنګین غونډ بهار دے

تا کړه بیرو د سپوږمۍ نه

دا خندا کوکۍ قصه

تا په ستر ګو د آذر کښې

عکس جوړ که د موسیٰ

تا پتنګ له مستي راوړه      د نورونو د زهرا

تا د سرو ګلو باغ جوړ که      په خیګړ کښې د صحرا

تا د ژوند ترخو اوبو له

د شرابو سرور ورکه

او زړه ستر ګو د کونګټ له

د لولګې غرور ورکه

تا خناه او رکړه خوب او ارمان کښې      وینو د مینې شو د غم جهان کښې

تا دیار شونډو کښې خوب د الله ننه لیدل      تا د فراق په مخ تصویر د یار ولیدل

تا د تیر نګه د رڼا بنار که جوړ

تا د ورو کي رڼا په سینه کړه د آبشار که جوړ

تا د شبنم څاڅکي کښې کړه تصویر د نمر

که د امید دریاب او د مستۍ سمندر

تا د فراق د لمبو      رنګ د وصال جوړ که

زما د تولو تیرو      د زړه نه خال جوړ که

---

اې د حسن فرشتې

سپینې حورې د رضوان

بس تا د ځکړه لیونی له      امیدونه او ارمان

غني. خانپور خیل



# صحرا

که په شکو کښې ژوندون دی — رته بوم خه صحرا له

که سودا کښې ناز او شهنګ دی — ما مزینې ورکړه سودا له

که په ساکښې مستي نه دي — رته مرګ را وله ساله

که هلال پیغام د نور — د خندا د رڼا نه وي

مانه غوره توره شپه ده — ډیره غوره د هلاله

کله ژوند مطلب بل نشته — بس ژوند دی سوزیدل دی

د اخپل جوش په بیرته واله — د اخپل هوش په بیرته واله

زه پتنګ ستا په رڼا یم — مین ستا په تورونه یم

که کافر که مسلمان یم — یمه ستا د نورونه یم

زما واړه کمزوري د جوړې ستا، ستا کماله — تیاره ځکه شوله توره چه شوه روکه د هلاله

چه تاروک کړمه حیوان شم — چه تا ووینم انسان شم

ته دریاب د شنو چینو نې — زه پیتې د لوږو تندو

چه تاروک کړم بیابان شم — چه تا ښکل کړمه بستان شم

داکه زه ملا ړنده وم، چه زه چغې شم جانانه شم
دا خو ستا د خیشت قصې زه د چه زه غم شم بیا انسان شم

یا خو اک د بادشاه راکه
او یا صبر د فقیر را

ډېر ښه دي د رنګین خوب له
یو خیشته شانې تصویر را

چه ستا حسن پرې بند کړمه
داسې لاس دا زنځیر را

که دا او بنګې ستا شراب وي
که دا چغې ستا رباب وي

که زما ژړا د عمر
یو لمحه ستا د شباب وي

که زما مستي دا
یو حباب ستا د سرور وي

زه خوشحاله یم په هر څه، چه کوي ما پېښانه ته
عجیبه زما جانانه، عجیبه زما ارمان ته

هله زه د ځان مالک شم
چه څپل ځان درکمه تا له

هله مست خو بوره راشي
چه کوټ وکړم ستا د خیاله

اې د کل جهان مالکه
جواب راستا د جماله

ولې جور صحرا کښې باغ کړې
قصاب جوړ کړې د کلاله

ولې ولې ربه ولې؟
د دې ولې جواب څه دې

ښکلې ښکله اې جانانه!
از غږ څه دې مضراب څه دې

اې د لوړې تندې ربه
د ګ جام څه دې کباب څه دې

اې د مرګ او ژوند مالکه
مرګې څه دې شباب څه دې

ای دَ ژوند آخر جانانه ـــ ژوندون څه دَ حساب څه دے
ای دَ تورو تیرو خانه ـــ څه معنیٰ ستا درنها ده
ای دَ مرګ اوکور خاونده
څه رنګینه ستا خنداده



# څه وُو چه هیڅ نه وُو

څه وُو چه هیڅ نه وُو ـــ نه سبا وُو نه ماښام وُو
نه رَبّ دَ چا رَبّ وُو ـــ نه بنده دَ چا غلام وُو
بس یو بے پایانه عاشق ـــ ورک په خپل خمار کښے
خوب دَ خپل وصال و
په ښیښتَه شوندو دَ یار کښے



# جزا

خلق وی(٭) راته چه شته دے — زړهٔ م هم وائی چه ئے!
خوجهان دِ داسے ښکاری — لکه بے مالکه کور
ستا دَ خپلے خُلے دښمن له — خوشحالی، مینه، آرام دے
ستا آشنا له تنهائی ده — تهمتونه او پیغور!

که دِ زړهٔ کښے هم ځوک یاد کړی . دی په ده خاورے پسے شی
ستا دښمن خانان دَ خانانو . ستا آشنا زیر و زبر شی

---

ستا ربنتیا، ستا ښهٔ، او مینه — په همه ځکښے تاوان دے
ستا تلاش یو لیونتوب دے — ستا یاری دَ غم طوفان دے
امتحان خومره سنگین دے — دیر کمزورے ستا انسان دے
دَ لوګی په بنیادونو — جوړ دَ شنو گنتو مکان دے

ستا خلیل دَ خپوړ لاندِ . دَ نمرود دَ غلام وینم
دَ خیام لاس کښے کچکول دے . دَ دله لاس کښے جام وینم

---

خانه مه م جنګوه نور — هسے نه چه بنګیلی شم
چه خمار او سرور ورکړم — دَ اسرے لمحے مرنے شم

---

(٭) وی : وائی .

ستا ملا وائي په چغو، چې تش سخاوت(۱) او زکوت غواړي
خوښ دې غټ غټ خیراتونه، پوخ او سپین شان جات غواړي

وې قانون دې د منات وي — ته تش نوم د منات غواړې
وائي نه غواړې جنون ته — تش رکوع او آیات غواړې

خو ستا جهان بل نڅې نڅائي، ستا د پټو سترګو خیال
عجیبه دې جرم ایښې — په خونونو د وصال

لَن تَنالُوا البِرَّ حَتّیٰ تُنفِقُوا مِمّا تُحِبُّونَ ۚ

ته په دیګ م رضا نه کړې — نوم، ارمان، او عزت غواړې
د مالي نه زیږ کلونه — د قارون نه دولت غواړې
د مېږي نه توله مینه — د مغرورو نه غرور غواړې
او د رندانو نه بنا نڅکې نه — د مستۍ او سرور غواړې
د غني نه هشتنګرینې — او چت غږ نه د طور غواړې
د کلاوزي نه خیال خانه — د هر تولو(۲) تنور غواړې
ستا وکیل وائي په چغو — چه خیرات او زکوة غواړې
زړې مینې د پنجاب — او نن د روژې(۳) سوغات غواړې
سپینه ګړه د ښاګډ نه — تمباکو د سوات غواړې
او مسر بدګرز ښت ببوله — بنګله ښغ نه نو غواړې

---

(۱) سخاوت: سخاوه [illegible] (۲) [illegible] (۳) [illegible]

سان، صابون، ګړه طالب له — او مُلا له روپۍ سپینې

په بدل کښې مسحلونه — معشوقې نرمې مَټې سپینې

دک جامونه دَ شرابو — په عوض کښې ګي پیینې

دَ یزیلخونی پالنګ کښې — د کے لیچې نرې سپینې

لیونی ته بس ارمان کښې — شی رنګے سترګے مینې

خومره ګران سړی د جوړ کړو — دعوید ار له ستاد مینې

ستا قسمت دے داسوزول کړی
لکه بې مطلبه اور

ستا جهان دے دا ورانیږی
لکه بې مالکه کور

غني
غرسر
ډیره اسمعیل خان



# شهوت

ما د وینزے خپو کښې شهزاده په ژړا ولیده
ما د مرګی بُت ته ژوندون تیت په دعا ولید!

دوه نیانې بینې سترګې د مستې د خندا ډکې
او چه ترے مستي شوه شوګې د بسې د سترګو کلکې

لاس د سنګدلې م غزولے په سوال ولید
پروت د منات خپو کښې م په ذکر بلال ولید

ما د وینزے خپو کښې شهزاده په ژړ او لیده
داستانه زړه م د چا سپې په سودا ولیده

# خندا

ځان تخنومه ډیر خو ډیر افسوس دے دَ خندا نه راځي
دے غریب ګنې کړه سایه دهمانه راځي

ده ته مبنا پیرے ده پری هله چه لیدے نه شي
غوَرَ په سپي حرام، دَ خره ډیران له ګیا نه راځي

خدا نیکو که مجنون دَ څه مجنون وُچه صحرا له لاړ
پوئے شو چه په دے چه په محل کښې لیلے نه راځي

لاړ و لیونے تو ورک شو چه حکم ورکړلو
چه کوڅه دَ رنګونو به څو کاله رښا نه راځي

نن دَ سامري سره تعیکه دَ جانونو ده
خکه لیونی له غره پیټکے او قبا نه راځي

خکه خو غنی لمز په کیله شان نصیب ته وائی
مه وایه نامرده چه نن تیر شو سبا نه راځي

ستا عجب جهان څه بے انداز څه بے امکا نه دے
یو دخنا امر شو لوا و بل له خندا نه راځي

یو خوا دِ تیرو دَ منا پیرک ځله مړه نکړله
بل خوا دِ چرګ مړی په دې ارمان چې سبا نه راځي

یو سېلۍ اوچت که دَ دریاب په مینځ ئې وریشته
دېخوا بل تږې ږي چې یو کوټ دَ هوا نه راځي

لا رمه، بو دا شوم ژوند یو تېګه نه کښم
خان تخنومه ډیر، خو ډیر افسوس دې خندا نه راځي

غني
پهار پور

# رباعي

زړه م لګیا دے سرته م ګپ لګي
ورله دهوکه ورکئ په اکړ بکو

وائي پاسته کلونه دي را روانَ
پروا ئې مه کوه که ازغي کلک وو

غني
خانپور

# سِیپَئ

هغه ژوندون وایه  چه وي یو نور او رڼا
دک د خوبونو خندا  خندا او شرنګ شرنګ
هغه سرور وایه  چه وي د وخت بې پروا
خواره په سر د فقیر  شالونه رنګ رنګ

هغه بهار وایا!
چه نې مستي او سخا!
په زیړ و کلو باندې
مالیار کړي تنګ تنګ

خو دا نه شو پیدا او نه به وشي  چه دوزخ نوم او خیشتر به بنه شي
جنت به نوم شي یو بې مطلبه  شي به پکه خوابږ او وریک تراخه شي
سرور به ډوب شي او خندا ورکه  ځکه چه غم او ژړا به نه وي
رنګ به لوګي شي او خواني خاورې  واره به سود وي، سودا به نه وي

چه خیګر مور شي نو ارمان ورک شي
چه ارمان ورک شي، نو ژوندون ورک شي

چه صحرا نه وي په سترګو ړپ کښې

لیلی فنا شي، او مجنون ورک شي

په شپه او ورځ کښې - وخت او نظر دے

واره ولیده د بنده - هم سپین هم تور

د ده تیاره کښې جرګه د نور دي

شته ځکه ته نګ او شرنګ چه شته د شوره

یاره دا ژوند سبه دے یکښې خندا او ژړا

توره تیاره او رڼا - ګلونه رنګ رنګ

خوبیام زړه غواړمه — ژوند د ځوانئ او رڼا؟

ډک د خوبونو خندا — خندا او شرنګ شرنګ؟

ولے دا نه شي کولے — د خیشت او نوره آتا؟

چه دے سینے کښې کیږدي — لالونه رنګ رنګ؟

غني

پهاړپور





# کټ مالہ

‹ یو خط روښن ته ›

لاس به مې ورکړی وی ، او خپې به مې ورکړې وی
خو مینه ، مینه ، مینه ، ما درې عمر کې بس یو تا له ده

دے باز به په ډیرو غرورونو کنډو پرواز کړے وی
خو جوړه بس ستا سترگو کښې دَ ده خمار جاله ده

مسل خلکه ورک شی ستا دَ کوڅې ورکیدے نه شی
واړه رنگینی دَ ده چه جوړه ستا دَ خیال له ده

د وړکه میخانه ده جام ساقی دے که خمار دے
دا واړه مستی خو تر څو وسلونه دَ مشاله ده

سرے شوندې او تورے تورې شپې کښې دواړې تورې شی
خیشت دَ شال په دے چه لیلٰی خیشته دَ شاله ده

ته که لاړے رنگ سره او ځوانی به واړه خاورې شی
جام کښې دا مستی واړه دَ مینې دَ کرلاله ده

چونک خاوره کوزه شی یا د یوه شی او یا جام شی
روګے (*) غونډے سر کله قارون کله خیام شی
شوم نصیب کړی جوړ توره پنجره د رنګ محله
مینه او غرور کله ساقی کله امام شی
حُسن او وصال یو ته نخمل شی او کاونه شی
یو ته سر د دار، بل ته را نښکلے دُل د دام شی

ستړے شونډے خاورے، خاوره لرے د کماله
مینه مینه مینه ماده کړے بس یو تاله ده
ماخو ستا په خپو کښے خپل لالونه خواره کړے دی
ماخو نقیری قبوله کړے ستا د سیاله ده
ما خپلے مستی ستا په غمونو قربان کړی دی
ما رنا د شمع قربان کړے د هلاله ده

خپے او لاس مِ خه دی دا خو خاوره د ویران دے
دا ستا غنی نه دے دا د خلقو غنی خان دے
دا ستا د ګلونو باغ مستی د بهار نه ده
دا شارے شود یارے سور سا دین او ج بیابان دے
دا ترخه سایه ده د غضب ده، د نفرت ده
دلته مره شوندون د مره امید او مره ارمان دے

(*) روګے : ویروګے .

هغه خاموشي ده دا، چه ورکه دَ بلاله ده

مینه مینه مینه ما دړ کړے بس یوتا له ده

ماکعبه دغولے ستا دَ مینے او جماله ده

حوره زما ناسته، پته اخوا ستا دَ شاله ده

ستا شراب دَ خاررو دَ کنډوله جوړ کړی جام

ستا سترگے کړی جوړے دَ خرچو کی نه خیام

تا دَ خاررو کمتونه سینا او حرم جوړ که

مینه ده دا مینه دَ خنزیرنه ئے آدم جوړ که

ستا کټ ماله جوړه دَ غنی دَ کُل کماله ده

مینه مینه مینه، ما دړ کړے بس یوتا له ده

غنی

پهار پور



# مُسافِر

دَ ژوند مقصد دې يو کمال دَ مينې    دعقل خوږ جمال يو خال دَ مينې
دا تورې لړې ما بنام کلال دَ مينې    دا ارمانونه تالاش يو جال دَ مينې
دا سره مستي دَ کفر چينه دَ خاندمو    وږغ(*) کينې دَ بحر نفرت دالال دَ مينې
اوه په ارمان کينې دې کمال دَ مينې    کل د انسان جمال جمال دَ مينې

مينه خوب دَ ديوې زره کينې    دَ دنيا او سوزيدو دې
خوب دَ ژوند کره ما بنام کينې    دَ سبا دنيا راتلو دې
دَ خزان په مايوسۍ کينې    خوب دَ گل دَ تو کيدو دې

دَ مرگي په تور وطن کينې
ساز دَ نمر دَ ختيدو دې

ما دَ ستر گو تپوس او که    حُسن څه دې مينه څه ده
ما دَ زړه تپوس او که    عکس څه دې اينه څه ده
ما دَ کو تو نه تپوس    دَ نر مې دَ تالاش او که
ما دې آخاري ستر گو    دا خندا رنگينه څه ده
ما واې زهرا رنگينې    دَ خپل نور نه بې خبرې

---

(*) وغ : بغ

ستا مستی حسینه څه ده

ستا خندا مهینه څه ده

هغې بې پایانه حُسن

ماته دا په ارمان ورکړے

ژوندون څه دے د ځان سوځل دي
ژوندانه څه دے وُرکیدل دي

ژوندون څه دے یو تلاش دے
د ارمان پوره کولو

د ارمان بې تابي وارو
په ارمان قربانول دي

ژوندون خوب دے یو بې توانه

د تیرے او د رنا

بنده هغه مسافر دے

کور نے باغ لار نے صحرا

غنی

بهګنوتر



# بې غیرته پښتون

تور ښامار منجیله پروت دے دَ خار په خزانو
د پرون غلام، بادشاه دے، د سبا د لیونو
هر پښتون دَ یرے (*) زړے، ورک شو نوم دَ پښتنو
دَ سړو سترګو غیرت اوچ شو
همت ړوک شو دَ سینو

اے پښتونه ما کتلے دَ انسان دَ شان کمال
ستا بے سړه سرکښې نور وو، ستا په توره کښې هلال
ستا په مست حیوانیت کښې دَ دریاب د چپو زور وو
ستا په مهر کښې زمزم وُ
ستا په قهر کښې جلال

ما به وے دَ زمرې ظلم، ظلم نه دے دَ ښاهباز شان دے
ما به وے عقاب په ښکته دَ څه باز ښکار ارمان دے

ما به وے چه کله کله، خکه ته بے حجه اورشے

(*) یرے = زړے.

چې روان ستا پښېکر کښې

سوړ د ننګ غرور طوفان دے

اے پښتونه ستا مې بد، له ما ګناه نه جوړه کړه ښکلې

که ته تور، د اور صحرا شوے. ما کتے ډېرې بلبلې

ما ستا سر اوچت غوښتلو، دا مې نه کوو تپوس

چې دا سر په څه اوچت وو

څنګه څنګه، ولې ولې؟

دا پنځه کاله مې تېر کړه جهنم، زندان، اور کښې

ما سر اوچت سبا ته ستا سر ښکته په پېغور کښې

شل ښېر مونږ دړنه تاو دی، پکښې ته داسې خاموشه

لکه پرېوتې چې دله مړې وې

راغونډ غونډ په ګوړ کښې

یره یره په خېکر کښې د ښځې د سکندر،

په پنجره کښې رپې رپې د عقاب اوږد دوه وزر

لاندې ناست دی سر په بازونه، اوږدې سترګې او تش سر،

او د پاسه پې ګنجنی ده. د هما تاج نے په سر

اے جنونه د شراب، ابا د لېونو

دامغز په سر مې تېت که، بې غیرته پښتنو

غني . خانپور

---

# دامکان او لامکان

چه آدم تنګ دَ قسمت شی | په خپل لاس کښې ستار واخلی
چه لږ نور هم لیونے شی | نو شمشیر او آبشار واخلی
چه حوا دَ مرګ دیرے | دَ سبا په تلاش وځی

دَ ګلو نوږنګ راغونډ کړی

دَ سهر نو شرنګار واخلی

همه رنګ دے دَ آدم | دَ آدم دَ زور امکان
څه دے کور، او لامکان | ګل غلام، بادشاه خزان
که جانان، که بت که رَبّ دے | خما سده، او ایمان
دامکان او لامکان | دواړه جوړ زما دخان

سره ګلونه، سپین امام

ابتدا او اختتام

ګل بچے دے دَ دیران

په سپرلی کښې پت خزان

تېښته يره او شکست                    دَ دله دغه آواز دے

نو غازي له شکست نشته                    هميش فتح تل پرواز دے

ګل چه خاورې سځي هم ګل دي                    ګل چه سوروي هم ګلاب دي

يو مهتاب او ذرو ويځے

بيا هم سپين خندان مهتاب دي

او دَ مينے په مېدان کښے                    سر بېلل(٥) جانان ته تلل دي

دا منصور هغې دَ ليونو ده                    مقول بېلل هم غځه کتل دي

دلته ډوب په روګي(١) جام کښے                    دَ کعبے او چت منار !

دلته سا بېلل خمار                    دلته خان مونتل(٢) خمار

دا مکان او لا مکان

دواړه جوړ نهادَ خان

دا جانان او بت او رب

زما تنده او ايمان

غني

خانپور

١٩٥٢ع



(٥) بېلل = بايلل . (١) روګي = ورړوکي . (٢) مونتل = موندل .

# قانون

زه خو نه وایم چه نشته — زه خو وایمه چه شته دے
خو دنیائے ده عجبه — او قانون ئے عجیبه دے
ښکلي باغ د ګډ خوبونو د ګلونو د نور رونو — د رواږے کاله داروی کله دار کله صلیب
او جنت بره پنا دے یو غلام د دغمونو — چاله د چنګیزو کړے او خوبونه د غریب

کله سپی له غله کښې ورکړے د شاهین شنه وزرونه
کله ګلهکے په ډیران کښې د نرګس مهین خوبونه
یو ته سرو شوند وکښې پټ شے — یو ته پټ شے په صحرا
چاته خود چاته بے خوده — چاته مرګ شے چاته ساه
کله سترګے د کمترے په سرو سترګو کښې د باز
کله سور ظالم عقاب شے . په باز راولے شاه باز

زه خو نه وایم چه نشته
زه خو چغے وهم(۱) چه شته دے
خو دنیائے ده عجبه
او قانون ئے عجیبه دے

غني
خانپور - هزاره

(۱) وهم .

# آسره

بنده خه دے، بے هوښه خناور دے
بنده خه کئی، آرام خان له گوری
دے تالاش د ده - د ساقی خندا
د کعبے مناره - ښکلی ستوری

کل منطق د ده، فلسفه د ده    یو امید یو ارمان یو اسره د ده
د دے لوئی دریاب نه چا پیره دی    کناره د ده - کناره د ده

که ئے سر د عرش پورے ولگی
خپے ئے روبے وی د غبار په مخ
دا خو دے دی - د تخانه ورک شویدے
د جانان په مخ - د دلدار په مخ

کل مذهب د ده - کل ایمان د دے    دا - دے رنگ او خندا او جانان د ده
دا مکان د ده - لامکان د ده    دا خه ورکه - خه توره قصه ده

د سبا تالاش د پرون ارمان
یو امید - یو ارمان - یو اسره ده

غنی
خانپور - هزاره

# دَ بوډئ تال

تیاره، تنده، روکیده دی زه لټوم دَ بوډئ تال

دَ امید نه جوړ وم، زه کله رنګ کله وصال

زه دَ خان کل مرضونه خپل حکیم یم دَ کمال

اے زما مغروره یاره زه خالق ستا دَ جمال

داچه زه په تالاش لا یم

پوست پراو مقام یم ومنت (٭)

داچه زه، تږے دَ نور شومه

سپین ساقي او جام یم ومنت

دایم زه چه کله کل شم کله نور کله وصال

کله اوږ ستا دَ سر وښتانه کله ستا دَ زنے خال

اے زهادَ مینے جوړے ستا کمال زما کمال

دَ منطق په تور جهان کښے روک جنون او تور هلال

تیاره، تنده، روکیدلی

نه بوډئ شته نه ئے تال غني

خانپور – هزاره
١٩٥٢ع

---

(٭) ومنت : وموند .

# دره په دره

دره په دره خاورے په سر۔ پهاړ پور او بهګنوتر
خمه خمه په سفر۔ کله شګے کله غر

کله تاو، کله تیاره دی کله سوز کله سقر
کهرم تیر خان له یوازے، د چورۍ په ښان تر

چه امید له دهوکه ورکړم۔ وییم سبا به وی بل ښان
هر سبا چه راښکاره شی، ستړے، ستومانه زیګر

میاں بابانه تپوس اوکړم۔ دَ عمل او دَ جزا
دَ الله دَ مینے رحم په مجبورو دَ حوا

که فطرت دَ رب قانون وی، رحم نشته په فطرت کښے
دَ شهباز، زمری وحشت دے د جسن کړیږی دغشت کښے

پښتونولۍ کښے دکمال راز، زور دے، ظلم دے، طاقت دے
دا زمونږ رنګین خوبونه څه غرور څه حماقت دے

دا مونږ خان له جهان کوړو د دے خاورے بهر
خکه خکه دره په دره، کله شګے کله غر

دړد او غم که نور او سازوي، نو چېم ایرجمن شته دے
خو بے تول څه اروے، او انصاف نه عجیبه دے

دخزان په شا ولاړ دے، د عملونو نه خفه دے
د منصور نه بره ناست دے، پاس په تخت باندې شمر

رندے سترگے د بُت بنے دي، خاپیل ستړے کے نظر
ستا د حُسن لیونی له، نه شبقله، نه اختر

ستا د نور ورپے جهان کښې، نه سپوږمۍ شته او نه نمر
ستا عاشق په دړد لړلے، دَ ازغو تاج ئے په سر

پهار پور (۱) او بهکنوتر (۲)۔ دړ په دړ خاورے په سر
کله تاو کله تیاره ده، کله سوز، کله سقر



---

(۱)۔(۲)۔ دا خاد بند یهد او نظر بند نے دوه کلي دو، نور په دے خاینو کښې بندي پاتے شوے یم:۔ پنیاد ړ جیل، مرسپو ړ جیل، حیدر آباد سنگ جیل خانپور۔ مرسپو ړ جیل کلب، غر بسر، تهند باے۔

# ګوډاګی!

زما ویره جنت او جنات زما — زما هوش سر، سرور مناجات زما

منار د کرجې (۱) کښې زما پستي — دا دَ مرګ نه ځم زه ژوندون هستي

او د شرابو جام، د زمزم چشمه

دا د خان دَ نیولو یو دام زما

دا جنون جانان، دا مرشد کعبه

دَ خپل هوش نشه کولو یو جام زما

ګوډاګی ما جوړ کړې خپل ځان له دې — سره لبان دَ یار، عبادت، سرور

ما بندونه اچولي طوفان ته دي — دَ امید ګلزار او قلا د نور

ما دَ مرګ "فاتح" دَ "زوال" آقا

دَ شکست له ویرې شان مو تښتلے دے

ما غلام له سره زړه تخت او تاج

مالوګی له مکان مو تښتلے دے

دے زما جنون دا خایشت او یار — دا سرور زما دَ ے تلو غبار

دا جنت زما دَ ارمان تصویر — او دوزخ زما دَ دردونو خار

زما سترګو کښے رب او ایمان دے

زما د زړه کښے وصال دَ جانان دے

غني
خانپور

(۱) کرجه = کلیسا.

# مرګ

ساز داسې آواز دے ښکاره پټ کړي پټ ښکاره کړي
تورے ختے واخلي ترېنه جوړه مناره کړي

قبر باندے شال يو د اطلس د مخمل واچوي
لا مړ کښے د انسان لمحے لمرګ او اجل واچوي

خو مرګ د پرده پوش کړي د آدم زوال د هوښه ورک
مرګ هغه خزان دے چه ګل کړي د ګل فروشه ورک

مرګ ګواه د رب د مينے رحم د انسان سره
مرګ يوه وعده د سپرلي شوے د خزان سره

ژوند يو شاخکے مينه ده، د مينے ننداره کړي
تورے ختے واخلي ترے نه جوړه مناره کړي

ساز د ځوانئے خشئے دے د مرګ سره د جنګ قصه
دا ده د انسان د زغرے تورے او تفنګ قصه

دا ده د غلام د فخر، صبر او د ننګ قصه
شمع پتنګ نه دے، دا د ستورې او پتنګ قصه

ژوند د آدم څه دے ، مینه مینه ده د خان سره
خاورې دے آدم خاورې جنون سره جانان سره

مرګ لوېه نیکي ده چه تا او کړه د انسان سره
مرګ ستا کوړه یوړه کنې ؤ به تل د خان سره

مرګ هغه نیته چه جانان کینبوه د جانان سره
مرګ پته نکاح ده د مکان د لامکان سره

مرګ کښې د ژوندون د دریاب پته کنار وه د
مرګ مجبور خان له د خپل حُسن ننداره ده

مرګ بس یو کواه ز ماد ژوند ستا د جلال
اے عجیبه خانه د تیرے او د هلال!

غني
خانپور



# مینه

مینه حُسن جوړ کړی بیا پې شی مینه مینه

مینه لیونۍ ده، لیونۍ ده مینه، مینه

چرې مې دا خیال وُ چه ښائست، ځوانی نیاز

پټ دې بس په دوی کښې دَ شوق، عشق او طلب راز

ما وې وُ ایاز ښیسته، محمود وُ دَ ښیست وږے

ځکه داستان جوړ شو د محمود او دَ ایاز

اوس په دې شوم پوی چه شهباز دَ سترګو ننګ دے دا

بل خان ته کمتره کړی او خان ورته شهباز

لویه لویه ده، دَ خان سر ولو خوب دے عشق

دا دے دَ آدم او دَ حوا د سترګو راز

مینه ځُمات جوړ کړی په تیږو کښې دَ خپل غمه

مینه په مستئ، ښائست کړی جوړ دَ خپل صنمه

بیا په سجده ټیټه شی، د ړنه په ګلو ونه

مینه حُسن جوړ کړی بیا پې شی مینه مینه

غني
خانپور

# جنّت

ډوډۍ غړپ مُلا ، جنتي مُلا

حلوا تېر مُلا ، ولايتي مُلا

په پېسو قربان او سستي مُلا

د پولاؤ په شوق خوړې پېتي مُلا

دا بې عشقه ، بې جوشه او مړ آذان
دا چلي دماغ او لرزان ضمير

د دې سپين دستار دِ توهين ئې نه
په دې کور د خدای کښې د بت سفير

ما ته وائي چې څه جنت ته څو

ستا جنت ستا د لوړې ارمان دے

ستا جنت د خوراک او د ښځو ډک

ستا جنت نيم پېرس نيم طهران دے

ستا جنت کښې درياب د شوروا روان
پيمانې د ونړتې نه بر پورې دي

ستا جنت کښې جنون او ټالاش نشته
ستا جنت کښې خټې خرې حورې دي

ستا جنت کښې نه سوز نه ارمان شته دے

غټې خېټې ، لمدې ، سپورې شونډې دي

ستا جنت کښې غوښتل اې بلبل نشته

واړه حورې ، رضا او برېښنا دې دي

ستا جنت د مجنون بې خبره ژوند ستا جنت یو او بنیاښان تصویر د خان

ستا جنت د شهوت او د تندې ډک ستا جنت ستا د لوړې د تاو امکان

دو دي غرب ملا ، جنتي ملا؟

په پیسو قربان ، او ستي ملا

راشه وا وره ته چه جنت څه دے

د غنې جنت ، د غنې ملا

ته په جنت کښې مزې د دنیا لټې د حورو ستر کو کښې د موخندا لټې

ته په آسمان کښې وسپه د دیوان لټې او په تیږو کښې سپوږمۍ امکان لټې

لیونۍ نه شوې ته خمار او مستي نه پیژنې

مستانه نه شوې دلربا پرستي نه پیژنې

تا د دنیا د پاره مینه د جانان ورکړه مجنون په بیعه بیخودي د جانان ورکړه

لاس دې کړې او د بادشاه لاره فقیر شوې یا زما خان وریاد لنډ رنګه پیر شوې

ته له خیټه خیټه شوې مستي او جانان نه پیژنې

ته له زیږه زیږه شوې مردي او میدان نه پیژنې

زما امیده ، تا لي څټه او تکړې خوږ شوې زما

زما سهاره ، ته مړې و نغیه خوږ شوې زما

قسم په هغه رب چه ته نے د محبت دعوګیر

چه تے د حورو د غلمانو، د جنت دعوګیر

توره راواخله توره پورته که میدان ته څه
لوګے لمبه شه په مستئے کوږ جانان ته څه

کنې ډوبیږے په پستئ او په حلوا کښے مُلا
جنت د بانګو د تیپو په سپوره کښے مُلا

د موسیٰ ګرز اوده د لوږے نه اے موړه مُلا

تپه هره شپه د دهر مړے شے اے زوړه ملا

د سامری د زور ښکه فقیری د موسیٰ

د زر پرست نه یار پرست بنده نا جوړه مُلا

---

قسم د حورو په مستئ او په خندا د یار

قسم په شرنګ او په نسیم او مشغولا د یار

قسم په سترګو، په ښایست او په خوا د دلبر

قسم په ساز او په سرود او په ثنا د یار

ته سجدے زرو ته کړے ما نوم د یار اخلے
شعر کا نه کړے په بد کښے کلمانا اخلے

راځه چه زه درته جنون او مستی اوښایم
راځه چه زه درته محبوب پرستی اوښایم

سرداری نه کیږی د توره مستے نه بغیر

الله لیدلے نه شی د حسن پرستئ نه بغیر

مسکینی قلندری دواړه سرونه غواړی
دواړه مستی او خرانمړی خندا غرور غواړی

ته خو جنت کښې مزې د دنیا غواړې

بورېنا به حورې او تر سګو نه حلوا کوې

| | |
|---|---|
| نهر د شاتو او کنار ول د شرابو ډک | غماین غلمان او ښاپېرۍ د کبابو ډک |
| ملا چه شو نا ڼې (۱) نو خوربه په ځه شکلوم | چه قلبه (۲) خاره شي نو کړې به په ځه مضموم |

---

جنت یو خیال دې د عشق د مستۍ یو رنګ

جنت یو شړنګ د ګنګرو د خوا ښتي غوږ رنګ

جنت نازکړې د ګل د ارمان مسے

جنت خیشته دې د زړه د جانان مسے

جنت دریاب یو د مینې او شان دے

هر د قطرو نے سپوږمۍ مړ خاڅکے جهان دے

غني

خانپور



---

(۱) ڼې: ښوی. (۲) قلبه: کولبه.

# شمع

محفل له شو رڼا شمعې له سوز ورکړل شو
او چا له ئې تحمل کښې پټې سترګې رڼا بدل شو

شو یو له د ښکارۍ مستي د لټ د چل دوام — او بل د زړه زوي نصیب ئې دام کښې ګیر کړل شو
شو یو له سر کلونه، مابنامئ او جامونه — او بل ته غم د وار او لوږه تنده ورپیدل شو

او کوره انسانه چه بادشاه د خدا ورور دے
دے که ډیر زور ورکړي وئ نه شي د خپل ځانه
دے د خپل وجود د فطرته لوئیدے نه شي
سل ځله که جمع کړي ګلونه د ایرانه

دے د خپله ځانه د جهانه ورکیدے نه شي — کله د منبر تاوشي کله د جانانه
څه وکړي غریب دا په لاهاو قلا کانو بند — دے که ډیر زور ورکړي وئ نه شي د خپل ځانه

دا خو نه ستا حساب دے ته تلے په کومه تله
د رڼا نه د رنګ تحمل او د ګل تپوس د شمله
دا څه شو رڼا سپرلي. ګل له مرګ ورپیدا شو
محفل له شو رڼا. شمع له سوز ورکړل شو

غني
پهار پور

# جانان زما

نه په تا څه احسان م دَ مینې شته
نه په تا څه احسان دَ وفا لرم
او بادشاه دَ خندا او ژړا ته نې؛
خو دا ژیم چه خندا او ژړا لرم

ستا دَ سترګو خاشت دې ارمان زما — ستا دَ رُوح ملک، دَ حُسن جهان زما
دا ستا شونډې چه ښکلې او نزدې دي — دا دَ مینې کمال او امکان زما
دا چه زه ستا دَ حُوتو تصویر یمه — دا ستا ګوتې جوړې ما ته ځان زما
دا چه ستا مرګرتیا[1] ته متاره[2] یم — پټ دِ دې کښې رحیم او رحمن زما

زه به پټ ستا دَ مینې د جاله شم
څه بهر دَ دې جاله تیاره طوفان

زه به پټ دَ خپل سوز دَ کماله شم — خو بهر دِ دې کور ژړا ارمان
بې پروا دَ جنون د وصاله شم — خو مستي چه نې نو وي څه انسان

څه خلاص ستا دَ زلفو دَ جاله شم
چه م کور صحرا دې یا کندر طوفان

که رقیب د تیاره رو کیدو دې — ما به تاله رقیب کښلې وُ
که بنا مار م علاج وې دَ رنځ زما — ما بنا مار به طبیب نیولې وُ

---

(۱) مرګرتیا = ملګرتیا. (۲) متاره = محتاج.

که بلبل کښې پیغام دَبهار وے دا  دَ ازغو ډک به هم ماکړلے وُ

ماله بس ستا نظر کښې آرام دے

ماته پروت ستا تلاش کښې دوام دے

نه په تمام احسان خه دَ مینې شته  نه په تا خه احسان دَ وفا لرم

ستا دَ ژوند او هوس معجزه ده دا  چه ځواني او مستي او خندا لرم

دا دَ دیر بے پایانه احسان دَ ربّ دے

دَ ګوګل به پنجره کښې هم لرم

بادشاهي ددے لویه به کمه وي

چه ارمان دَ خپل ځان مینه ستا لرم

ستا دَ حسن جهان ګل جهان زما  ستا ارمان کښې خندا اکرم شان زما

تا نه تخم بشم، پانه شم، ګل شمه  نه پتے، نه بهار، نه خزان زما

کله شے محبوبا دَ خیام دَ رنګ

کله سوے شان هنګ د منصور دَ چنګ

کله ښیشت او آرام، د صبا امید

کله توره شے تیغ شے غم او جنګ

کله مینه شے، رحم، بښنه شے  کله زور او زیاتے او غرور او ننګ

ستا هر رنګ یو بے خوده جهان زما

نه پتے، نه بهار، نه خزان زما

غني

بهګنوتر



# قیدی

څوک د زړه غلو لو نشته
خان له زړه غلوم په خپله
خان له ناست یمه خپل غم ته
د خپل غم وایم بدله

چرته لوے تیر محفل له
د مستۍ او خندا خمه
چرته مړه شمعه را اخلم
خپل مشال پے لګومه

دے تور تم غم او افسوس کښے
زه په یاد د مینے پایم
سوے زړه ته قیصے تیرے
خوږ وائے رنګینے وایم



غنی
حیدرآباد جیل

# غیرتي

لا لا مې افلاطون دے دَ تقریر او د تکرار

لا لا مې پاس په مستوج کړې دَ نهرې په شان غرار

چه وخت او بخت خپل وی مې نېخپل وی تعابیدار

بیا بس دَ ده یلغار دے مې په ښار هم په نوښار

خو چه وخت دَ غلبلے شي لالا مې راوی کړې غوږونه

قُرقُرے ملام شیرې په خوار وُلګی(*) دَ ستونه

مړزدے بې غیرته بیت په بله منه چغیږی

کُتړے دَ کشمیرې دے په کوته پاس منه غیږی

وزیر چه کلیوال وی دده خپل حکم چلیږی

چه پوره شي ممبرته دَ نوچنی هسے کدیږی

چه غم شي او تکلیف شي لالا نخی دے بې ترخ له

وای راشه محمد سنه اوس تیله وی کوه دَخ له

سر پټ کړې دے بې دَلمن لاندې په ژړا شي

وَی الله دَ ښیر غوښه؛ راروان دی اوس به راشي

بي بي راني خاوند ته . که داسته بلا زما شي

دالاس دِ وړلے زَبي . په سلګو دِ وړلے ماشي

---

(*) ولګی = ولګری .

دا زیږدې په لینګو باندے دي ښکته څه روان
پروان دِ خواره ډیر وُو جوړ خوړ لی شا تو تان

لاله وائی بی بی ته دَ دے نوی وزیر تره
خو ستا دَ مور، دَ خور، دَ زوی تربور دے دَ نیکه

ورځم چه راله وکړی دَ وزیر سره کتانه
زمانه خوز ویرګی(۱) ډیر زیات دَ یرے وُواته

ورځم چه دَ وزیر سره اقرار او زبان وکړم
او ځان له دَ دے شرنه دَ تو څه سامان او کړم

لاله غریب روان شی مراوے خټ مراوی غوږونه
وزیر ته ډیر په مینه تعظیم وکړی سلامونه
بیا وُخوری لس طلاقه دوه دیرے سوه قسمونه
وَئی جناب ماته معلوم شو هیله ستا سو صفتونه

زمانوم هم کړه لیک دَ تابعدارو رجسټر کښې
دا سرم شو قربان ستا دَ ملګرو په لښکر کښې

وزیر وته مسکے شی وئی ښه وُ لیکه بیان
چه اوسه پورے سپے ومه، خو اوس شومه انسان
لاله غریب په بلهٔ دُوُئی(۲) دین غیرت ایمان
زر لاس په نامه کیږدی، وَئی قربان شمه قربان

بیان؟ یو بیان څه دے لس به وکړم بیانونه
جناب ستا په صفت به او کړم نګومه آسمانونه

---

(۱) زوبرګی = زګیروی. (۲) دوی = ورځی.

ما بنام ریا یو ووانی چه یو باغریب د وړس شو
یو بل د شهباز زوی د جنګه و تښتید تهوس شو
یو بل ګلزار ایرے شو . ورک شو خاوره شو بوس شو
یو بل پښتون شو سپک ډوب نے د پلار ننګه ناموس شو

یو ښکلے سر شو تیت یو ننګیالے پښیمان په ننګ شو
عجبه نا کړده شوه چه پښتون په پښتو تنګ شو
نامرده لاله واوره یو خبره د غني نه

پښتو غیرت او توره ، په پښتو او غیرت مینه
دا میڅوک بیا له نه کړي ، دا هر څوک خان له کوینه
دا ژوند دے د روح ژوندے . لکه ژوند د وجود وینه
دا هغه فلسفه ده چه خلیل ته نے اوړکه نور
دا هغه مست شراب دی چه خشکلی و منصور

ارمان دے غیرتی چه عجیبه دے سودا وکړه
د خپلے حیا غل شوے د خپل کور دے غلا وکړه
چه شپه شوه د معراج تا د تیزونو دعا وکړه
چه وخت د خندا راغے تا شروع په ژړا وکړه
یا خیال د بادشاهئ یا دے شروع کړے بنګړي وا تے
لاله کني زه مړ شي ، خوزاري نے شي تل پاتے

غني
حیدرآباد جیل






# تسلئ (۱)

د تهمت نه به جهان کښې څوک خلاص نشي | چه آسمان وي کله کله وريځې

چه ګلم صلووي په ميخ مې نه څپليږي | چاغلي دي شړنو شکو نه مزې

د قالين برابري به کله وکا | که هزار ئې رنګه شي نګين او بروزې

که د مچو به ږيرې کښې تيولوند ئې | کمان مکو چه تمبه او نه سوځې

د مړدانو کار د پلک خواب په سوک کي | هغه چه کړې ژړا لکه د ښځې

چه وخت راشي منبه زړه آتش کړه غني خانه

خود قهر به لړمو کښې پټ پټ سوځې

آبي جهاز - نلهيرا

جلائي - ۱۹۲۹ ع



---

(۱) دا زما اولني شعر دی چه د څوارلس کلنۍ په عمر کښې ليکل شوی دی.

# سوال

نه مِ ستا د انزرې شونډې دي پکار — نه دا زلفې د وَل وَل لکه ښامار
نه د ښېتې په شان دنګه غاړې غواړم — نرګسي سترګې نه د کې د خمار
نه غاښونه دي لعلونه د عدن — نه ننګې د نے غټې سپينې لکه انار
نه پسته نه سربنده په شان خبرې — نه وجود لکه د سرو وضعدار
خوږوشي راته وبښه دلبره! — د لاله په شان زړګے غواړم داغدار

يو دوه او ښکې چه د غم او محبت وي
په پلکونو به لعلونه ترے کړم زار

آبي جهاز . خليج . جولائي ۱۹۲۹ء

# خانان

عجيبه دے د خانانی عجيبه دے په دا خواني — اې پښتنو! پوه د نه شوم په ورانۍ په ودانۍ
دا د دلالو صنف دے، چه خپل ناموس وروري بے مغني — پېرنګي ته خوشحالېږي نه چه کړلي پېژواني

چه ټکي ئې پرې وي، په جرګه کښې زمري دي
ناست د ماڅوړو په ختو، د خانانو ښي ثاني
واني پلار مې بهادر او نيکه مې سکندر و — چه خانان پوس ترورکړے په هسې زړي اماني

په غريب همسايه نړوي، يا په منځه زور وروي
د جنګ په وخت کښې پټ کونړه ست وي، خو د جنګ ګي ارماني

غني: نه دروی دوا شته، نه طبيب ورله ورتلې شي
د خدای قهر پرې لګيا دې، چې زر زر ئې کړي فاني

## افسوس

زما ستا سره ياري !　　وه د مار سره خواري
ګلابي ننګي ستا جانه　　وې سکروټې انګاري
سوزېدمه زړېدمه　　د ښتيا زه وم آزاري
په زړه دا ما خندولې　　ستا سرو سترګې خماري

آخر ګل م خزان يووړو
عبث ما وکړه خواري

## راګ

په تکليف کښې د يو دوست ګنګوړ آواز　　دې د تالو خوږه دمه ښکلي ساز
سوې زړه مې يوځل آسمان اوته وکړو　　فرښتو ترې نه چل زده کړو پرواز
ګوره ګوره دا شراب زما د اوښکو　　هر پيالې ئې لري سره هم لوي بيان

بې پروا زما د عشق په خندا
آ د خاوره کمله: نه په څه کړې ناز

# که خیروی

ستا کولئ دی پیږنګیه: زمونږه سینې
زمونږ وار به یو وخت د وینې وینې

دا ستا حال د کمال به زوال شي زوال
د هر به کړو د غیرت د جرأت نمونې

دا زمونږه څخه چه نن هر زاري نن
د دې اوښکو په ځای به څي ستا سو د وینې

او به رور روشي د ب بیا لاهو کړي وطن
دا سیلاب به یو وخت لاهو کړي ستا چمنې

د قسمت د غونډ لاندې نن نه سبلته
نن زمونږه جګر سبا ستا سو سینې

# حال زما

خدایه زه یم بد نصیبه، که جهان کښې وفا نشته
غم م تا و ده نه ما غریبه، یو ذره کښې سا نشته

دک جهان را ته صحرا شو، آباد ملک را ته بیدیا شو
خدایه دا کوم رنځ زما شو، زه مجنون او لیلا نشته

چه جوړې جوړې یاران، ما بنام سیل له شي روان
زما مل دی بس ارمان، بې دد څوک زما نشته

نه معشوق څوک زه د لرمه، نه معشوق زه د چا یمه
هر یو دم یم بې همده، زما زړه کښې خندا نشته

پرینبوم زه نوی دوستانو، هیر کوم زه زړو یارانو

زه زخمی کوم ظالمانو، دے پر هر له دوا نشته

خدایه: تا ته کوم سوال، تا ته وایم د زړه حال

روغ مِ کړے زړه کی جلیل، بے د دے مِ دوا نشته

# که

که مِ سر د زړه صلاح وی او دلیلی
زه به ناست وُم په پیرس امریکن نه!

که زما خیل پیدا یښ کښے څه اختیار وے
زه به وُم آزاد چرے، خان پښتون نه!

...، که قول الله ماته سپاره (۱) کړل
زه به ځاے کړے د دوزخ خپل وطن نه!

د غنی د زړه که یو رک مِ ژوندے
ده به کړل ویرونه شعر او سخن نه!

# د وصال مزه

د وصال مزه که ما نه وے څکلے
په فراق به ترا ز له وم خوشحاله

اول ړوند وم تا بینا کړم بیا دِ ړوند کړم
خکه نه رکوی ژوند مزه اوس ماله

چه په شا تو باندے وپانی عمرونه
شمکی به مزه ورکاندی بیا چاله

شه نخولا د خدای دپاره زما کله!
خو د زړکی مِ ددائی راوړے تاله

(۱) یعنی ماته د سپارل.

گلستان د خوشحالۍ کښې تل تل خاندې — نه خبرېږې د غريب بورا د حاله
يار مې واخيست رقيبانو، ليونى شوم — عبث خلک را ولې طبيبان ماله
دا مرض نه ماله زړه کله وېنکې شي — ما به ديسو دے لوے کړي څو څو کاله
دا تل دي چه داور علاج به او رشي — نه جوړېږم نه جوړېږم بے وصاله
چه آخر به ژړا خوار غني رخصت شي
ورله وښلوئ کفن ديار د شاله

## ثنا

چا ته غم کړے او دي چا ته پوله کړے غم — هر زړه تا ته معلوم هر راز تا ته ظاهر
د کافر ته آقا ، د مومن ته مولا — ته جيزس برهما، ته يزدان ته الله
لارے ستا د محل نه خو اوړېږې د خوک ورے — مسافر ستا دي، هر امت هر سړے
هر هوائي لار نه ما نيغه، ستا ده خطا — څوک دے لږ څوک دے ډېر خو د جمه بنتيا
که انسان دے پيدا، بيا پادشاه د دنيا
مرحبا، مرحبا، مرحبا، مرحبا

## مورے

چه غم نه مې د زړه نه شي چا پېره — او د خلکو بدخونې د حده تېره
ستا موسکې سترګې مې تل وي مدد کارے — ستا لياد د ياد د مهربانۍ دکړي ما نه هېره

# بانبېړې

بیا شروع شوله په ما د غم چپې — بیا خوبه بې آرامه م شوې شپې

یو خوا رند یو خوا ساقي یو خوا شراب — بل خوا کوټ کښې زاهد اړوي تسپې

په لوګي د هغه اور واره تودیږي — چه عالم ئې کړ جلیا تپې تپې

غني: خوږه د ارمان په لمبو سوځې — خوږه وي دا د فراق سره تپې

دځوانۍ اختر دې لا نه کړې څه کړې

منبه به وي چه په دیوال ئې وتپې

# بهار

کړ شروع بلبل چغار — او، بوډا فقیر ستار

وي(*) غزلې مړ یو تار — شو موسم د نوبهار

ښکلې ښکلې سبزه زار

شو موسم د نوبهار

غوټۍ ګلې کړې خندا — عاشقان کړې مشغولا

بې خبره د دنیا — ځنګ په ځنګ سره دیار

شو موسم د نوبهار

ګل چمن نه نار زار

(*) دي: وائي.

معشوقې شولې مغروره سترګې د کتل د نوره

داشنا سره مخموره په مستۍ کوي رفتار

ګل چمن ترې نه زار زار

شو موسم د نوبهار

شو بدل جهان د رنګ رنګ شو تول جهان په رنګ

پښې دیار نې چنګ په چنګ زړه زما د ګلزار

ښکلې ښکلې سبزه زار

شو موسم د نوبهار

سره ګلونه شین آسمان پاک ښیسته(*) ښین آسمان

لړ شلنتې رنګین آسمان یا سپوږمۍ یا مخ دیار

ګل چمن ترې نه زار زار

تول وطن ترېنه زار زار

کوږه سترګې وهي ستوري یاره! راشه په دې لوري

واره غلې ګوري شو موسم د نوبهار

ښکلې ښکلې سبزه زار

ګل چمن نه زار زار

سپوږمۍ تول وهي ګډېږي او دستورو لاس پر قیږي

اوس ښکاره شي اوس پټېږي دوړ بیغو په ګلزار

---

(*) ښیسته : ښایسته

ښکلې ښکلې سبزه زار

شو موسم د نوبهار

غنۍ ناست د سینه په غار کې — د غمونو ترې تاو چاپېره

څه به کړي سپوږمۍ واره — څه فقیر څه نې ستار

ښکلې ښکلې سبزه زار

ګل چمن نه زار زار

## اې د مه پاره دلبره

مخ دې تابانه ستا — ستر ګې د روښانه ستا

حسن بې شانه ستا — زړه دې دلګیر کړمه

ما ښام د سینه په غاره — چېره دنیا ویجاړه

ته و سنبیسته ولاړه — ګل دې په دیر کړمه

***

اې د مه پاره دلبره! — اې بې وفا دلبره!

شه بس زما دلبره! — ظلم کول وران دي

هسې نږدې مه لرې — ستا سترګې کړې خبرې

خوږه ښیسته بشرې — تا ته کتل ګران دي

***

ګوانې زړونه دې ویر شو — د زړه مارغه ګیر شو

لاړه بهار تیر شو — عبث فریاد کومه

د نورو یار شوے ته | په بله لار شوے ته
ښکار د دیبار شوے ته | خو به دے یاد کومه

* * *

زړه دے صفا د غني | قصه رښتیا د غني
مینه بل ماد (۱) دغی | جانه! اتبار وکړه
راشه جانان شه دده | ورو کے خان شه دده
یو ورځ میزبان شه دده | دیرے مدارا وکړه

## غزا

مسلمان په تن غازی ؤ | که هندو باندے غزا ؤ
وئ (۲) ګټے ته تښتینګ نه یم | خو مولے تیپر ته واده

## خان

خان راخیستی دی ملا پسے خوباړے | خپل کور هسم که هغه پردی غونه ژاړے
بل ته وائی د حرص وباسه غاښونه | او خپله سوال په لاس تیروی دارے
مل وطن خپله وران کړے بل بدنام کړے | ملایان دے د کړله قامونه خوار خراړے
چه خپله په بیه قام خرخوے ته | بیا په کوم مخ په ملا کوے پیشارے
چه خپله د مخ کال کښے نۍ (۳) وینځلی | بل ته صه وایه زړه کیه! چه پوارے

---

(۱) دیره. (۲) وائی. (۳) نه دی.

ته اول د صاحب پرېږده سلامونه    بیا په ده سره سایه پرېږده ده په ولاړے

د غني نصیحت واوره اوس ځان سم کړه

خولے لنډه راځي بیا بیا توکلي لاړے

## اتفاق

ملا واني مغربي تهذیب کړي کړے    وکیلاني مونږه غواړو اصلاحات

دهقانان واني هاي افسوس بازارن لا مو کړه    سرکاري واني چه لږ ټیکس به کړو مونږ زیات

بوډا پلار واني فیشن د نجونو کار دے    کالجي زوي واني په کار دے مساوات

دنیا واني علم لاړ د ترقي ده    ملنګ واني د ستا و پلار نه وو بقراط

باچاهان واني آزاد داخپل وطن کړئ    ملکان واني اول ورله کړه حوالات

غني وئے که ما د زړه خبرے وے

پښتانه به مې په سر لرګي کړي مات

## انسان او فطرت

زما زړه د خوشحالي تازه چمنو    چار چاپېره ترے باغچه د یاسمنو

دلته زړګے هلته سوي بوراګان وو    یو خوا کوټ کښې په خندا شینکي طوطیان وو

ؤ په منځ کښې فوارے د امیدونو    دیارانو د دوستانو ښیسته جنو

څوک به ترے ترے تر لاړه د تیزۍ نه    څوک به پورته قدله شو د خپل ځانے

عزت دا چه طرف ته خوشحالي وه — خوشحالي که خوشحالي ؤ د مالي(*) وه

څه خبر وم چه خزان به م برباد کړي — دا زما هميش خندان ازره به ناښاد کړي

اې ظالمه اې کمبخته اې بې داده! — اې زمانه د خوشحالي د سر جلاده!

دا ښايسته ښايسته گلونه لا غوټۍ دي — په دوي مه خاورې کوه دنيا اباده

خدايه د پاره خدائ د پاره رحم وکړه

دا ښايسته بنگلې وړه باغچه زماده

## غم

که زه نه يم خوشحالي به چيرته وي — که خزان نه وي مالي به چيرته نه وي

که بله نه لا اخوښه نه بواړ وکړ شي — کنه کړي نه وي کالي به چيرته نه وي

دا الله هم په قدرت د حکمت ډک دے

دا انسان عقل لا نه پوهيږي هلک دے

لندن

## داروش دے د دنيا

چه ترمخ شي د چالړے — شي د زړه نه هم فنا

گيله مه کوه د چا نه — داروش دے د دنيا

د دوي لاندې م دي ياد ے — ما ښام تيريشوا وس سبا

بس ما نور غولولے نه شي — د زاغانو مشغولا

(*) مالي = ماليار، باغوان.

وروره: کلک ختک شوم چه راپورې داتک شوم

دقسمت په تمال تالئ خورم کله څه کله راځه:

هم پښتون یم په نسب بدل اخلم د مرد ب

چه زرې (۱) میړشوم زه بې میړکړم

دا روش دې د دنیا

لندن

# ازبیاته

زما میړبه نه شي ستالبان ښیسته نه دسې زړه په شان زلفان ښیسته

نه خندا ستا غلي غلي زما خوا کښې ستا شنو ستړکو به کړه تول جهان ښیسته

ښیښته به وړدو بڅې، د شپې حوره چه دیدله به دې جوړ مرغان ښیسته

هغه لاس په لاس زمونږ د باغ سیلونه هغه شپین د ستورو د آسمان ښیسته

دا مل دې چڅه تیرشي هغه میړشي خو میړ نه کړې شو ستالبان ښیسته

خدایه! بوڅې دا خزان چه بهار راشي

بیا زمونږه د مینې شي جهان ښیسته

لندن

# زوراور

اوه دغه م شوسپین دستر کو تور وسوم خادرشوې ایر شوم لکه سکور

---

(۱) زه ئې.

اے بلبلہ! کہ ژړا کړے مالہ را شہ — گنے خہ کہ خاندے وخندوہ نور

سوے لوے لوغړن پتنګ وے خلکہ! — واشی ذ کوری زہ نیم سوے پہ اور

لا لمبو شہید شو سړے نے کړے منکتہ — بورا ولیدہ راپریوا تہ نسکور

غنچے سترکے دنرګس او بنکولاهو کړے

پہ لمبو شو د مو ر دو مر شوے اور

لندن

## د تودے فریاد

چا کړو خړ خپل دین ایمان پہ جینکو — چا پہ مال چلاش پہ تمہ د رو پو

چا بدل کړ پہ هلک چا پہ شرابو — خوک ناے د دموا خلی پہ تسپو

مونږ عاشقانہ کړل پہ نومونو لقبو نو — د صاحب د پښو پہ خاے مو وتپو

او س نو مونږ شو خوړے نہ بنکولے

تش شپیلۍ تہ لګو واو د[1] لکہ د سپو

## جته

بے تعلیمہ بنځہ غوا دہ — سخو کتو لہ بے بها دہ

نہ ورانیږی نہ سمیږی — بس پوشی یوه بلا دہ

خولہ ئے ژرندہ نہ دریږی — د چر چنو شغو لا دہ

---

(1) وهو.

زوی ئې وران لوړ ئې نا وړے — خود غواړي خه پروا ده

پروا ده د خدای رحمت دی — پو طاعون دی پو وبا ده

په کالو نه ښکلے کیږي — دا بد خویه دلبر باده

په کیلو نه ستړے کیږي — تل ویروونه دی غوغا ده

فلانے دا سے فلانے دا سے — دائے کار دائے سودا ده

وائی غني مین په غوا

چه دروغ دے که رښتیا

## خر مستي

هسې ام ستو لیده ماته نیمه لاره کښې شوم پاتے — خو زه ام ستو لیده مراد او د بیو پاره پرے شوم پاتے

یلما په خندو جونې ښکلے سره بلبلے — بیا د اشنا خیل ستو دیم(*) شلیگي تنبل ته غزے

ستار شو تار په تار ردو لوړ دے دربار پرے شوم پاتے — هسې ام ستو لیده ما تیمه لاره کښې شوم پاتے

وه لویه ام سینځ ام اینه سکر که چلبانے

اوس ستړي مسافر په لوی سفر خپه یوازے

ستي شه دا مستي کړ دکاره پرے شوم پاتے — هسې ام ستو لیده ما تیمه لاره کښې شوم پاتے

یا الله الو ته په قید مه اور دوم اور

سپیره پا ایرے شوم په زړه سوے په یخ تور

شه ورک دا بود اتو دیغ دپاره پرے شوم پاتے — هسې ام ستو لیده ما تیمه لاره کښې شوم پاتے

(*) دیم : دوام

# ترانه

کرم به خپل وطن د ټول جهان د ښند رورو      ملک به کرم آزاد

نه جوړېږي بې نما د وینې دا دارورو      تل به وي ناښاد

یا چه خان قربان کړو      په وینو ئې سم ودان کړو

یا چه ئې سم جوړ کړو      یا چه ئې سم وران کړو

څنګه چه بیا ئې وینې دانقلاب کړو په نارورو      هسې شو برباد

کرم به خپل وطن د ټول جهان د ښند رورو      هسې شو برباد

واچوئ منهیستو ردئ (۱)      سر به په وینو سره وردئ

کوږئ مونږ ته خپل پردئ      نن به ښئ ښکاره ردئ

خان د خند ننګرانئ تورولا رورو (۲)      دا وخت دئ د مراد

کرم به خپل وطن د ټول جهان د ښند رو رو      ملک به کرم آزاد

څه به کرم بې ننګه قام      څه بکرم بې جنګه قام

وینو ګټلي د ننګ بنګه قام      څه دئ د بې ننګه قام

یا به پورې لوګې شم یا به ئې جوړ کړم بې دار و رو      دا وطن برباد

کرم به خپل وطن د ټول جهان د ښند رو رو      ملک به کرم آزاد



---

(۱) لباس، درېشي. (۲) مخفف د تلارورو.

# دعا

خدایه! ستا دې دنیا م نه ده خوښه | ماله راکړه پخپل لوی جهان کښې برخه
چه کوم ځائے کښې بے ګناه ګناهګار نه وی | چه کوم ځائے زنځیرے د اغیار نه وی
چه کوم ځائے کښې وی بے حسه احساس | چه کوم ځائے صبر زړګی وی لوتش لاس
چه کوم ځائے کښې فریاد نه او دم د کونډو | ماشومان یا پهتو کړو پسے په منډو
چه کوم ځائے کښې نه مزه شته نه قانون | نه عشق شته نه وصل نه نه بیلتون
چه کوم ځائے کښې وازے سترګے نابینا وی | چه کوم ځائے کښې یو شان نن پرون سبا وی
چه کوم ځائے کښې که بادشاه وی که ملنګ | لیکن تخت او یو تاج ئے یو ئے پالنګ
چه کوم ځائے کښې مال اولاد دوستی بیکار | چه کوم ځائے کښې ښکاروان شته او نه لاره

ستړے ستړے کے م کړے پټے یا الله
زما خوښه نه ده ستا وړه دنیا

# زړهٔ او سر

نن بادشاه سره په جنګ شو لو وزیر | غصه عقل شو په لاره د ضمیر
وے عشق مه کوه دا پیغام دے د مرګی | زړګی وے نه! عشق آرام دے د زړګی
دا د پاک الله صفت دے | د ده نور د ده رحمت دے
دا په دے محکمه جنت دے | د همغے جنت نعمت دے

دا له تولولوی دولت دی      دا بانی د شجاعت دی

بې له دې به جهان سپوره وی

بې نمکه لکه کور وی

## سر :

چوپ شه چوپ شه انوکره دبستانو !      نه غلام د توروزلفو سرو لبانو

تورې زلفې دې دیار د غم تیارې کړی      سره لبان د دوزخ کوره دشیطانانو

دکنا ماربت په دې کلو کښې ناستې دی      له جنته غورځولې دی انسانو (۱)

لیونی دې کړ مجنون فرهاد دې ورک کړ      ښار دې کړې تباه د بادشاهانو

دې بدنا زلیخا په تول جهان کړه      د مغولو کور د دې د لاسه ورانو

چه زما سره خوک مل وی تل یا دیږی      خوک سقراط دو خوک بقراط دو خوک لقمانو

عمر خوک هارون دو خوک مامون خوک دو      له هرچا اولی باشاه (۲) لوې سلیمانو ؟

عالمان پیغمبران زما دوستان دی

عشق دې کار د لیونو یا هلکانو

## زړه :

مکره لاپې د ځان نه مې دی په کار      عطر وائی خپل قیمت چوپ وی عطار

راته ښکاري ته نې روند په بینا سترګو      پلو هیر خوکړې مکرې مکار

ته انسان ته ښیښې لاره په جهان کښې ؟      د جنت انسان ته مینه ښیښې لار

---

(۱) د قافیې په لحاظ د جمع او مفرد املا په یو شکل دلیکل شوه . (۲) باشا : پاچا ، بادشاه .

د آدم نه د ګی راز پوهښتنه وکړه
تول جنت ئې کړه په ده باندې نثار

یا تپوس ده د "ارنی" موسیٰ نه وکړه
لا رهښه و پوهښته یو ورځ د حرا غار

د مجنون یاد فرهاد نه سلا واخله
یا منصور ته وایه وختلے شوے په دار

منصور ځان کښې موسیٰ طور کښې نور لیدلو
پخه کوم لیلیٰ مجنون کړ بے اختیار

یو معشوق په بل بل رنګ په بل بل باس کښې
خندوي او ژړوي هزار هزار

جلال یو دے جمال یو دے کمال یو دے
هر عاشق ئې وینی خو کښې د خپل یار

لکه ځنګ د نور په زور سپوږمۍ بلیږی
دا ښکیني معشوق نور د رب غفار

څه که خلک لیونی غنی ته وائی
ویرنه پیژنی خپل یار هم نور د یار

(اتمانزی)

## کونډه

کونډه ناسته په ژړا سر ټکوی
چه زامن ئې په ګولو شو شهیدان

کور ئې کور شو تیاره دیوے ئې سړے شوے
ګرځاکانو کړل فنا ښیسته ځوانان

د زړے زړے بچي سر ته ده ناسته
په ویرو نو لړزوی ځمکه آسمان

اے زما د کونډو ملا لو خدایه!
اے منصفه اے زما د انصاف خدایه!

رحم وکړه په سپین سر تا ته ژړیږم
دا زما روستے ګلاب را نه مه بیایه

دا یو ځانګه زما د تالا باغ ده
دا لالے زما مه بیایه له د خدایه

نور دے ورک کړل په کولو دکوډکانو | دا زما وروستي بچي پرېږدا دے خدا یه

دا زما دسوي زړه يو قلاره دے

که نے انخلي نوجهان خان ته مه وايه

دا زما دکور دے ملايو همساده | کمے بیا ماتم لاړ دکوره بنایه
الله رحم په سپين سر دبودئ وکړ | مرګ راغے خلاص ئ کو ره ګريان
دبچي په سينه سادرکړه عاجزے | بوي تر لاړ تش کل شو یا په میدان
په آسمان کښے فرښتے په ژړا سره شوے | په سجده پريوته تول پيغمبران

# دعشق نور

دآسمان دسوري لاندے | او دستورو مشغولا کښے
دیغ سیند په غاړه ناست ؤ | دوه یاران مشغولا کښے
دسپوږمۍ زړه شو خوشحاله | په خندا نے لاس کړ نورے
دعشق نور نے مرخوا خود کړ | په بلبل کښے په لالا کښے
خوشحالي ورزد وکړے | چه ذرره دباغ سيل وکړی

او دا دواړه یاران بنکل کړی

دسرو ستورو مشغولا کښے

(اتمانزی)



# اې زړه

اې زما د زړه بلبله ولې ژاړې؟! ولې خو په پسې خپه څه شې غواړې؟

څه د پلاړه د بوستان د عشرت پرېښو څه د پاړه د غمونو لټې (۱) جاړې

دا ته ښکاري جوړ بیا ئې شیل شوې خلکه نه وې نغمې کوټ کښې ولاړې

دا ته څه وې؟ چه یورپ کښې دلبرې د رقیب یاري کړه جوړ چه ته لاړې

دا یورپ دے چینکو کښې وفا نشته

بے وقوفه! ته د مړو نه مستي غواړې؟

(اتمانزی)

# ته او زه

ته د مه وُ خوښند و کښته ئې او زه د خپلو مشر رود یمه

خو په ښایست د ټولو مشره ئې خلکه همیش زه پروت نسکور یمه

ته ئې ګلاب په شکل او فطرت او بلا زهګ کیکر ازغے یمه زه

خوږ د ګبین نه خوږ دی ستا لذت هسې بیخونده مزے یمه زه

لکه د ستوري ته ئې ګل د آسمان د جهان د ناو کښې د زړه عکس نه یم

د شپېلۍ ساز پسې یم ګلې روان کله په زړګو کښې ستا رقص نه یم

ته د سحر په شان ښیسته او ځه زه د ماښام په شان غمګین او ستړے

---

(۱) لټوے.

نشه په ژوند د شراب ستا ده برخه — زه په وسواس خوړلے شوے مزے

ته د سپوږمۍ په شان موسکۍ هوښیاړه — او زه د لمر په شان سوزېږمه تل

ته د لولۍ په شان د ګلو یاره — زه د بلبل په شان ژړېږمه تل

ته نسیم راز دار د ښکلو ګلو — زه ګونګټ یار د ژړېدلو ګلو

ته شبنم یې د نوو ګلو — او زه زوړ ګلشن وطن د سوو ګلو

ستا په خوږو دمو یو غزل دے ښکلے — او مړو ویر زما د زړه وتلے

سهېلے تا نه ده خندا ازده کړے — شپېلۍ زما سلګۍ دي اورېدلے

زه مقتدي یمه او ته یې امام — ته یې مالک زما او زه دې غلام

ستا د پښو ځاے زما د سر د مقام — ستا ښکلے تن دے ماته بیت الحرام

زما جونګړه یوه ده ویجاړه — ګلے! راځه چه ورله ورشو د واړه

ستا په ښو بخت به زما بد شي واړه — ازغي هم به ښکاري د ګل پیچاره

(اتمانزی)

## بابا ته (۱)

ستا خط نه تول زما ته پرانته دي — زه یې لولمه شپه دوباره دوباره

کله خاندم کله ژاړم لیونے یم — اے زما په بند کښې پروت غریبه پلاره

نه ته نه یې غریب ته ډېر لوړے او چت یې — مصیبت دے ستا عزت ته عزت داره

(۱) دا یو منظوم خط دی چه غني باچا خان ته د لندن نه د هغوی د یو شکایت آمیز مکتوب په جواب کښې لیکلے دی. باچا خان د هغه وخت په جیل کښې ؤ.

خدای به رحم وُ په تا باندې لږ کړې — بل به نه زوې به ځې و کتلی ستا د پاره

چه په تا کښې کوم جوهر د ما کښې نشته — ستا نیکئ زما بدئ دواړه بې شماره

نه سالار ئې د کاروان په نیغه لاره ځې — نه کوږ ځغلم لکه اوښ نه بې مهاره

ستا د زړه قرار دې که دی د مینې — زما زړه وچ کومې نه لري يو داره

و هم منله مې تا پسې خو ته هم لرې — وینم ستا ایله ایله د پښو غباره

پروا نشته که په منډه و منډه و مړ شم

فقط ستا او د خپل تام د نوم د پاره

(لنډن)

## خانصاحب

پیسه تګ خان زما لوې یار دې زما خوښ ډیر دې

کوی لمونځونه په روژو کښې له هر چا تیر دې

ابله ورځ م په یو ځای کښې ډیر دلګیر ولیده

ماوې کاکا ولې خفه ئې جومات د کم میر دې

وئې وې بچیه! بیګا وورا کړه غله راغلي

اوس دانه هسې د خفګانه روګو ډیر دی

خوشحاله زه وم کښې شوم خو مخ م له خپګانه کړ دک

په یو کوټ میخ نه کیږي کور د بودالوې نیر(۱) دی

---

(۱) نیره ویاله، نهر.

بیا م تپوس په عمل د دې ټولنې د نقصان وکړو
بود اپه سر د سترګو په خوږ زړه دا بیان وکړو

وې بچیه: ماته هر څوک مالدار وائي
تول پولیسان راته غاصب یا نمبردار وائي

او اماماران ته تپوس د زکات نو کوی
زما پښتانه یې بل نښته څوک کید ار وائي

مولوي وائي چه نانو کښې یو خان یمه زه
عبث زما لخ کښې بې ترا ته څوک هوښیار وائي

غلام په تمه د دروپو ماکره راغلی
ماته خپله ستهنت صیب دسه کار وائي

خویم خپه چه په ټول کس ټولو بخت موزدان
اوس به قصه زما دکور په مر بازار وائي

چه منځ کان کښې د شپې نیزه بازي کوینه
دیو جوار به دا نه هم چرته تیندک نه خورینه

ما وې کاکا: ښن ورځ هر څوک د غم کا نړه کوي
بخپله مړي د لوږې بل نخیرا تو نه کوي

محکمه کا نه کړي یا په سو مال د بنیانه خلی
بیا په مر بلا له دعا بو کوړې خفا تو نه کوي

بریښتو نتو ر کړي چه ... م اوس تو ده خوره
یا تما نخپه په ترخ کښې واچیني (۱) فسا نه کوي

دا خته بر بوره پیسه ... تلي ښتي
کور ني نمر د جمعه ارته به بستو نه کوي

ښه دده دانلا موخر ځي (۵) دپلار ...
مري نې هم دکوره تبني مجه تو نه کوي

خدای دې د خپله وته وکړي هدایت دلار
غني که وائي خه وته وائي تم (۲) دکومه پلار نې؟



(۱) واچوي . (۲) تم = تهمو . (۵) خرځي = خرڅوي .

# مورې 

گرچې خاورو دې کړې پټ وجود ستا مورې! ما ته یادې د هغه شان ستا سترګې تورې

مورې! ستا لاسونه ما نه نه دي هېر چې تکلیف کښې به زما نه و چاپېر

ستا د خولې قیصې یاد دي مې هر ماښام د ګنجې د مړا مونځ د بهرام

ستا و مل د بل د مینې نه خوا ږه وو ستا ګنځل زړه د بل نه عانه مینه وو

یا چې ما به ډېر خراب وکړل کارونه او بابا به لړزول ځمکې آسمانونه

ته به وې زما ملګرې زما مل او زما سلګو سره به تا ژړل

مورې یاد دې ما ته آورو کې تمال چې تا زړه به نه نګولم کال په کال

ستا جوتې جوتې سندرې ارخندا چې به سپک لکه د باد کړه وزره زما

یا چې ما ته به له قسمه شوې په قار زما اوښکې به دې بوتلې په زار زار

مورې یاد دې ما ته وار اخترونه چې به تا په ښکلي مخ کېښول خالونه

په جګړو به دې زړه کړمه پاک ښیسته ما به ځان کړلو په ختوابته

تا به وو هلم بیا به دې کړم ښکل په خندا به دې زما ګڼل زه غمل

ما ته یاد د خوشان ستا موسکې شونډې ما ته یاد د هغه شان میلو ته منډې

چې ماښام به ستړې کور ته راغلم زه ستا په غېږ به الله هو به شوم ویده

مورې! ما ته یاده شپه ده یوه توره چې زما وجود وګرم له سره اوره

زما سره کړې و شغار د جهازونو او غوږونه مې ګانه په آوازونو

زما مورې! ته تا به وسې قربان — زما ځوانۍ ته به تا کاوه ګریان

مورې! ما ته یوه بله ورځ ده یاده — چه زمونږ کور لړزید لوله فریاده

وه دیریغ شان ستا تا ده لاس نازنین — ګلابي ننګې ستا وه بے رنګه سپین

ته موسکئ په خوب ویده وے پاڅیدے نه — ما ژړل درته او ته را وینیدے نه

ما وے مورې! مورې! تا ته قربان، ونډوے — وے پر ته خاموشه ګل په خزان سوے

ما ژړل او ته ویده وے خندیدے — ما ژړل او تا تپوس نکړو چه ولے ؟

ګرچه خلو روکښے دي پټ وجود ستا مورې!

ما ته یاد دے هغه شان ستا سپېځلې تورې؟

# ګل که یار

اے زما د سترګو تورې! — اے زما د زړه قراره!

اے زما د سر ګلابه! — اے زما ښایسته یاره!

په زارئ درته ولاړ یم — یو نظر را باندے وکړه

ستا زیارت له یم راغلے — مسافر یمه په لاره

مال دے حسن ته امیره — او زه خوار وزار فقیر

د ښایست زکات دے راکړه — اے زما مهر نګاره

ته بلبل ته منبسته ګل ئے — او پتنګ ته رڼا وے

خوله دے وسپړا ګله! — تول پراته دي بیقراره

ستا په پاڼو دا شبنم دي زما په سترګو نم
ژړوي ما هر دم ستا ازغي تېره بېشماره
ډېر کوم زه د زړه وينې چه ستا پاڼې شي رنګينې
دا ستا سرې شونډې مهينې
شوې سرې د وينو په داره

# ليلى

په پالنګ ناسته ليلى په لاس کښې او په غېږ کښې ستار
سترګې ډکې د پرسان او انتظار ده د يار
د مرادو ګل په شان ئې مخ زېړ زېړ شان دے
ول ول ئې زلفې ترې چاپېر لکه تور ښامار
واره واره ښيسته لاسونه د خفګانه مړه دي
په چو په خوله د عشق ساز نه وهي هر يو تار
ليونے نمر په زېړو سترګو دے سترګې لټئ
ورو ستئ سلګئ کړي رورو مري لکه د غم بيمار
خوړ دے سترګې د بل چا د سترګو نور غواړي
نه زېړے لمر وينې او نه ده د سترګو خمار
سر زر ګړي غوځ کړو خان ئې غرق په خپلو وينو کښې کړ
سپوږمۍ سر تور کړو ورپسې ژاړي په زار زار

په پالنګ ناسته لیلی هغه شان سره تار غږوي

او خادي خبر عشق به کله بیا زړه کې دیار خوږوي

## سوال

خدایه! وګورم د غنچې سره خندا؟     که د خوار غریب بلبل سره ګریان

خدایه! وګورم د خپل یار بنګلی مخ ته     که د خپل سوي زړګي شم تماشان

خدایه! وړومبی زم سناد لوټ دوزخ ته     یا که تمه کړم شروع د حور غلمان

ته مې پوه کړه ته مې پوه کړه نه پوهیږم

چه زه تا کړمه خوشحاله او که خان؟

## لیونتوب

یا زه جوړ یم د اکل خلق لیوني دي     یا دوی جوړ دي بس یو زه یم لیونی

ما ته محنت او مستا دوزخ جنت     څه په بل د بلو نو ځان دي سي نی (۱)

ورک دا ستا بد جهان ته نامشه     ورک دا ستا سا کړي عشق زړه په کوانی (۲)

دا ستړګو مې د خیال جهان ته     په خپل جهان شي ورک د پښیمانی

نه نیته لري نه غم نه ورځ نه لوږه     تل پیوزنې شباب یار اجان جانی

د سینانګ د چیوپه شانی دانګه     خوشحالی نې بې پروا جاوردانی

---

(۱) دیونی. (۲) کوانی. ملګرو ته د شکری [illegible] (یا) ولاستل شي او پښیرا [illegible] دي.

زما المرام ستا دلبر په شان ځلېږي　　　خو دښمن دې نه ډکال نه د خوانې

زما خلک هم ستا د خلکو په شان سخي　　　خو په عشق کښې نه د خېټې په خانې

زه هم کړمه زلزلې عالم تباه کړم　　　چه موسکۍ کړم څوک لېني ښخانې

زه هم وژنم عالم غاسې نو تو لحد کړم　　　چه بېتوانه شي د مېنې د توانې

زم (۵) دوزخ جنت لوم وره وکې نه يم　　　دوزخيان کړم ستا د ملک په کامرانې

جنتيان کړم بورا کان په باغچه ګرځي　　　يا لولي چه د کلو نو غښتنې خوانې

زما ملک کښې دولت نشته خوشحالي ده　　　دي زمزم زما شراب سره فغانې

وي باران زما په ملک زما په اوښکو　　　په خندا نه تازه کړم ښه خوانې

مست رنګين شيرين جهان ليونى دې

ورته خاندي دک د مېنې ليونې

## توبه

په نيتي د خيال اوچت شوم له جهانه　　　و د عقل فانوس لاس کښې مې روښانه

له ورځو چه شوم تير فانوس مې رېشو　　　په تياره هم نېلې لاړ تر نيم آسمانه

د فلک شهزادګۍ ناستې و باغچه کښې　　　ماله نې راکړيل فانوس ښکلې روښانه

د سپوږمۍ په رڼا تلم مخمور عاشق شوم　　　خو تياره راغلې شو به مثال زمانه

چه دستوره د رڼا نه هم اوچت شوم　　　ما کړو قرض په ورشغاله خپل ايمانه

ما د دې په رڼا خپل غليظ خان وليد

په ژړا م سر کړ په رته له ګريوانه

---

(۵) زم: زه هم.

# سیل

ما لیدلي د فرنګ ښکلي جهیزونه (۱) | چه دالاندې تر غوږ نږي وهي سینه نه
ما لیدلي محلونه د لنــــدن | جینکۍ مستې آزادې ګل بدن
ما لیدلي د اټلي ښیسته ښارونه | سره انګور سره شراب او سره ګلونه
ما لیدلي د پیرس ښاپیرۍ ښکلې | په کردار ګفتار خوږې لکه بلبلې
ما لیدلي امریکه کښې دي ښارونه | چه وریځو ته نې رسي مکانونه
ما لیدلي تاج محل غوټۍ د ګلو | د دهلي ښکلي ښارونه د مغولو
خو چه وو ینم زه خپل د ختو کوډه | رانه هېر شي محلونه ښیسته نور
دا زړې تنګې کوڅې زما د کلي | ورته څه دي د دنیا ښارونه ښکلي
چه خړې ږږې ورور پښتانو سینې لمدې شي | درنه هېر به قول ښایست د بحر و بر شي
خدایه شکر چه پیدا دې له د قام کړم | د پښتانو د نړۍ وجود دې یو اندام کړم
څه به کړومه د لندن لوړې محلونه | د پیرس جونې ښیسته ړومي ګلونه

په والله چه له جنته به شم ستون
که نغل پکښې وانوړم د پښتون



(۱) جهازونه.

# ګلې

ته چې ښکلې بې بهانې! زما دين زما دنيا

ګلې! ته ګل لالانې زما ستورے د سبا

ګلې! ګل د ګرګلزار ستا د مخه پرے بهار

که چينه ده که ابشار ستا خبره ستا خندا

شو حيران بلبل کړ دار چه ستا بت ئې کړ تيار

هغه لوے پروردګار ستا په سترګو شو شيدا

ته ئې جوړه کړے حسينه ګل بدنه ګل رنګينه

بيائې کړه ستا په جبينه

د سپوږمۍ سپينه رڼا

# بهانه

چې ئې عمر په صحراوې له خزانه ګيله نه که

دومره وسوسه غونه چه اوس مې هوسينه نه که

تا وے ماله دالۍ راکړه ما غريبه څه وينے

چونکه نغمې دې تول کړې په دې لاره ستا په څنګه

زما د ونګے شګو پچنې ګل لاله تر زړه غوين نه شو

په ما ئې دا ام ميږ شو بياله خوا ده نه ګيله که

زه به خه ستا ما ! ورکړم په خه ستا سترګې رڼې کړم

زه ولاړ کچکول په لاس ګنبې پکښې بوسے زرسه او به که

چه ځواني نه وزګیږي او دنه ! غوټۍ شي مړاوے

د تاتار کوه قاف حورے بخوا ګټه کړ او څوک څه که

لیونی ورو ورو ورګیږي خان پښپلو کړ تو وژني

ستا فراق عشق نے بهانه کړم او هـر څه کا او س هـر څه که

## پلوشه

چه ځواني د وخته وزیران
وے به زیږے لوی لوی پهان (۱)

ته راست لوی ! دا د خدای شان
چه نیم لغـړ دی او نیم ګنجیان

## غرور

که نه وبلېم ښه دی څوک ؟
چه نه وښه شم څه دی څوک ؟

که هـر ګل باغچه کښت خاندی
په دېران پراته دی څوک ؟

دا چه تے لوګی ته زارے
په دی اور ورانه دی څوک ؟

هـم کوے عشق هـم کوے دیه ونه
د بونیر داخره دی څوک ؟

غنی او سره کړی لونے
خو خبر ترے نه دی څوک

(۱) لنډی بربت .

# پلوشه

ووتو نه راغله پیسه سیر پښتو ایمان خرخیږي
پخوا به جونې خرڅیدلې اوس خوانان خرخیږي
ژړا به نه کوم چه غنم جوار ارزان خرخیږي
پروسکال کورې خرڅیدې سږ بیوپاریان خرخیږي

# آې د خاورې کله

په تکلیف کښې دیودوست نکړه آواز — دې لټولو خوږ لمواړه سکلي ساز
سوکې زړه مې یو ځل اوره آسمان تدکا — فرښتو ته یې چل نه ده کړ د پرواز
بې پرواز ما العشق په خندلئ
آې د خاورې کله ته په څه کړې ناز

# کډه کوې

چه بې ننګه شي پښتون په سر نې دا ننګه — تښتنه د سخاتي ملا د بانګه
چه په طمع د دنیا کوې وعظونه — خدای دې وچه کړي د دخبیث غړانګه
په والله که وصل اړ پورې دې پریږدي — که وینې بي په دبین د پښو پر انګه
کله کله د غني هم قصه اوره — دا م ده وروره د لونې وني شانګه

# پلوشه

دجهان خبرے کوره　　بیل به نکړی سپین له توره

اے غنی! کیله ترے مه کړه　　شو به نده دنیا شبکوره

# لوبه

دلرے لرے خلک راغلل تمام　　دیدن له ستا دلرے لرے

زما یادیږی ستا وړو خبرے　　دلبرے دلرے لرے

***

خوله دِ مسکئ سترگے غمازے　　په لچک لچک په هوا ځے

باغ کښے بلبلے سترگے نوازے　　ستا د دیدن شولے موتازے (*)

خدایږ و که حورے ستا د نوک وی برابرے

جانان دلبرے دلرے لرے

زما پښو اکښے م غورے کړے　　چه د نه تبسم م نعرے کړے

کله خندا کله بنیرے کړے　　زما خوان زړه دے ذرے ذرے کړے

فرښتے ماتے د شیطان کړلے وزرے

ارمان دلبرے دلرے لرے

کله دے خو! کله دے نا وی　　کله دے نن کله سبا وی

په ژړا سرے سترگے زما وی　　موسکئ رنگینے شونډے ستا دی

کله سوز محال شے کله شے داو نخرے

جانان دلبرے دلرے لرے

(*) موتازے : محتاج

# کږې وږې

د سپینو تار کښې لعلونه زه پیېمه | په پښتو کښې کړم خبرې عجیبه
د آسمان سیل کړم په ماتو وزرونو | بې جانانه یو وزرنه عجیبه
تل ملالم په زړګي کښې جانان ناستوی | خوشحال زنده له مانه لرې عجیبه
چه م یو ټکې تر لرې کړ حیران شوم | خزرې (۱) خړ شوی برابر عجیبه
نه خوشحال د ناز وړ نه د نیاز | دغنی حیثه دلبرې عجیبه

لیونی د ختو لوتو په ډیری کښې
اکثر تورې کړې ملغلرې عجیبه

# پلوشې

جومات ته لاړ په میخانه کوره | په زیان کښې سود د شان جانانه کوره
نیته د ولنا؟ او کاره نه ډیر دی | پوره بې نکړې خان له بانه کوره

# انصاف

تورې زلفې نې خورې شوې ورله په غونډه لو | عبادتم هول لاهو شو جوماتیو او خاتم بلوده (۲)
د تقسیم په لوښو نې کړه هغه لوې ویشونکی | ماله عشق د ملو ر اکړه بالره بنایست د سلو

---

(۱) بنخې. (۲) بل ؤ.

# په کار دی

لوئې د زړه کې لري چه اسرې لوئې لري
چه څوک ماتيا ساتي د رواز لوئې لري

مه ژاړه مه ژاړه دا به هم تيزه شي
هر څوک که عمل شو کوي گوتے به سهٔ لري

# زور

خدائے چه پيدا کړو خاندنه زور
کړل ئے ترې لاندې څيزونه نور

سړے او چت کړو ترینه آسمانه
بادشاه د هر څه وے سړی زور

الله موسکے شو حسن پیدا شو
طاقت په ځمکه پرېوت نسکور

# بادشاه خان خط

زما گریوان شلیدلے
ستا شنه قبا مزه کا

زما دک جام د میو
او ستا همسا مزه کا

چه شپه خلاصیږي توره
دنیا ویده دی نوره

ستا په هوسو کښې گوره
خندا زما مزه کا

په ښکلے ختو د سحر
لړے د ملکه بهر

د سوي لوي خیگر
ورو ورو ژړا مزه کا

چه ورو روان شي نسیم — ته په سجده په تعظیم
ستا بندګي او تسلیم — مستي زما مزه کا
ته د سبا په تمه — زه د دنیا بې غمه
سترګې مې سرې پر نمه
لیونتوب دا مزه کا

## نیمې مړې سترګې حیرانه وازې

په ډک جهان کښې ګرځمه یواځې — نیمې مړې سترګې حیرانه وازې
چه ورځ شي خلاصه ماښام راشي — تورې د غم مالم جامې راشي
دا لړګې ستورې سپوږمۍ بې مهره — او ډکه د تش ژوند تمامي راشي
کله به بس شي دا راتلل یواځې
نیمې مړې سترګې حیرانې وازې

ما وې سپوږمۍ ته د نور میرمنې؛ — د یار لیدلې دي تا، سترګې خوب جنې
موسکۍ شوه پټه شوه په ورېځو — هیڅ حال ونه وې د خپل بدنې
او زه پرېښودم غمګین یواځې
نیمې مړې سترګې حیرانې وازې

ما وې لالې ته د حسن لورې! — شونډې لیدلې دي تا، م د دلبرې
شرمنده سرې رو رو کړ بنګته — ما ته یې ونه کړې د یار خبرې

او وزه نے پرېښودم غمګين پراځے

نیمے مړے سترګے حیرانے وازے

بورا مے ولید د غــمه تورہ ډیر پریشانہ دیر کړو کورہ

ماوئے دیار زلفے دے تالیدلی خہ لتھوے روړہ ادا لودہ پہ لورہ

لیونے لا ړو او زہ نے پرېښودمہ پراځے

نیمے مړے سترګے حیرانہ وازے

لوئے مے واورېدہ دمجنون شور لړے مے ولید فرہاد نسکور

دشیرین آہ را ورنسیم غیبر کښے دلیلٰی روح سوے دغم پہ اور

پرہ شوم روان شوم پراځے

نیمے مړے سترګے حیرانے وازے

## دفقیرانو غزل

ورورہ! دی دا جہان یو مکان دفنا

ورتہ مکړه ژړا ورتہ مکړه ژړا

ما بنام خاورے شی کل چہ سحر شی پیدا

ورتہ مکړه ژړا ورتہ مکړه ژړا

داچہ لانا بہ دپښو دی دا خاورے تہ کورے

وے دچا شونډے سرے او دچا سترګے تورے

دا یې معشوقې دي چه تللې په خندا
ورته مکره ژړا ورته مکره ژړا

دا ستې یو ساعت دا پستې یو کړئ
دا سو ړ شال د امیر د فقیر دا شړئ

دي د اواره خیالي بې بنیاده دوکا (۱)
ورته مکره ژړا ورته مکره ژړا

مر د ز ړه کړې صلا چه دنیا ده فاني
د پرون بنار یو کښې نن ده ویراني

د یو خوب دا ژوندون دا ځواني یو نشا (۲)
ولې ځې په ژړا ولې ځې په ژړا

# خوشحال خان خټک ته

د خټکو لویه خانه (۳) ! د ټول پښتون سرداره
اې ټکیره د غمجنو د پریوتو مل د ګڼاره !

آخجوا چه ته ئې خان وې آکار وانچه تې امیرو نه
آخجو و په وړانیدې ده، آکاروان د ي بې مهاره

(۱) خدعه، فریب . (۲) نشه (۳) خوشحال خان خټک (۱۰۲۲ - ۱۱۰۰ ه ق) : - توره لالی، مبارزه، شاعر او یکوال د ویړ مړلنا ترنې .

ستا په اوښکو زرغون شوي ستا په وینو پاللي شوي

هغه باغ او ګلزار پروت دی بې بلبله بې بهاره

بیا د ننګ توره تېره کړه بیا ننګیالیه دا دیوه کړه

شه رڼا مرور خانه شه خوږلا دلګیر سالاره

## پلوشه

لکه مور چې په غېږ کې نغښتی خوږ کا — دا پروت دی د شپې په غېږ کښې ګل جهان

د غونچه مینه ناکه د مور ستر ګه — که سپوږمۍ ده د اولاړه په آسمان

## لږ شو خمار پیدا

داسې شراب داسې ګلاب وخت د شباب — ساز د رباب ماشوم دلبر هم بې حجاب

لږ شو خمار پیدا په مخ دیار پیدا

دلبر د خط دا ښیسته خال ګچه جمال — لکه هلال جانانه ګوره د هلال جلال

چه شو خمار پیدا ستا په خیال پیدا

وخت دې ملنګ ګل وچو ما تمام اور دی زړه — ما ته نه زیان هم ګړو لکه سود

چه شو خمار پیدا په مخ دیار پیدا

د ژوند کاروان وړی جانان — دغه م دے دغه ارمان

چه شي خمار پیدا ستا په خیال پیدا

# پلوشه

دومره ښکلي دي زما ارمانان ښايسته | چې دي ټول له زيبايان ښايسته
نور يار مې تش په تن باندې ښايسته و | د ده حسن کړه همه جهان ښايسته
د جادو د دوو سترګو مې بينا کړو | ليونۍ ته مې بېکاره شوخان ښايسته

# ميا جعفر شاه ته خط

بيا را ياد شو د ملک خوږه خبرے | په پنجره کښې کړم فرياد لکه تنځرے
چرته نور مې ښتين تار چرته ميږ دے | چرته مې چنړګوله(۱) چرته شکرے
چې خوږ ماته نن دے زمانه کړ | خدمت مې په يو کوم د خيال وزرے

د کوټ ساده خراب د چنو دال کړ
په پيالو پسې سترګ شوے چغرے

# ګلپے ورے

زړه مې پسې وچاو د خوشنام نګړ پالې | هغه په موتيو کا کښې په ستر ښتو باندې
کور مو نزاچار دې په اشولو تر سکونيږي | ښخه مې په څپه دې زوري مړه کاندې
مالي د وصال په سبا رکوي تاب که چې بل | دوره مهذب او بنايسته زما جانان دي

---

(۱) ولړه ګوګرنا ... دهندوان په (يو. پي) ولايت يو ځاے دے ... د بوږه په کلا کښې افغان ...
(۵) ميا جعفر شاه ... ۱۹۰۲ع ... صاحب ... سياسي ... ادبي ...

نن چې د مسکو تې (۱) د بابا په کور داخل شوم

لستوڼې تا ته خو ورکړې، د وار د غني خان دی

## پلوشه

| | |
|---|---|
| پیالې د جانان سکرې د دنیا ښیښو او ښکلو ډکې | د ښځې نه گلابي شونډه وړه وړه دلولکې |
| نادانه شیخه! ورکړه شه شراب دی شراب نه | د دنیا ښیښې او ښکلې چې کړې کلکې نرم سینې |

## پلوشه

| | |
|---|---|
| کفتار د لیونو کښې ور کلو نه هم ماران | قطار د لیونو کښې ډیر والا پیغمبران |
| پروانې غني نکړې کښې سپک تلي که ډیرې | تف! خبره د جهان دی او ښه بوی د جهان |

## پلوشه

| | |
|---|---|
| حسن په بازار کښې مولانا په دوزخ روان شو | پوښاک ئې مقدس مانځه (۲) د چتر د مل سپین ساو |
| ناګاه پرې آواز یو د قبلې دده دعوا شو | څه سبحان الله څه ملا، داد کوڅه د لیونو |

## پلوشه

| | |
|---|---|
| بیکام خوب کښې خان بو جنت کښې ولیده | پهلاس کښې دوه نیولي ډیر پیل ونه د ډیرو پو |
| دربان چې لته ورکړه د دوزخ تا ترین ګوته | خان خپله کته اوه نه خه خبیږي په پردد |

## پلوشه

| | |
|---|---|
| چاته نے بنایست ورکړ غمګین | چاته نے غم ورکړ بنایسته |
| زه نے هم مست او هم هوښیار کړم | هم نے په تخت کړم هم په تخته |

(۱) پیغلو کے (۲) دا نظم د دوزخ د مواعت نه آزاد دی.

# کارغه او بلبل (۱)

د خزان دوران ؤ نو سے — وو یو دوه ګلونه سوے

یو بلبل په مراوے څانګه — نغمے کړے سوے سوے

خدایه ! شو کور د غم ړوګی زړګے زما — شو ے شمکوړے په غم سترخوږے زما

تازه عشق نوے دلبر نوے شباب — د لاله پیاله کښے سره ګلرنګ شراب

د دنیا د ووړ سترګو نه په دده — یو با غنچه کښے پټ په غاړه د دریاب

د ښیسته ستورو په باغ کښے سپوږمۍ سپینه — کله خاندے کله پټه په نقاب

زه ملشوم و کړے شوی یا ړپے ژړیږم — په جنت کښے د دوزخ خغم عذاب

های شو کور د غم ړوګی زړګے زما
شو لے شمکوړے په غم سترخوږے زما

یو کارغه چرته راوتی ؤ له کوره — پښخزلو کښے ګنډه منبوکه توره

د بلبل ژړا نے تیره شوه تر غوږو — وروړان شو ورته وے کم عقله ړنده

و لے صنم صنم و لے نعرے د غم
مکړه کیله د ستم له روزۍ ډک دی عالم

کوره خیته چه ډکه وی وږه نو صنم مړه نه کا — خوږے سترګے به د یار د چرما ننده نه کا

ما به هم داستا په شان خال نښایسته شیلے دم — زه خو دے پیدا الله کړے یم سپینه خو م سره نه کا

---

(۱) دا نظم د وزن د مراعت نه آزاد دی.

خوږ د توتان خاندي بلبله د دنيا د و نشه ملبه      نن نصيب دے کوي غوږ نه شيله(۱) سبا څوک خوږ ږدي نه کا

پرېږده داغم گروهان لکه ماشوم نادان

ته د آسمان د غمه پخلکه يېسې (۲) توتان

## پلوشه

يار ئې ممنه مزه کا      چه د دارو سيال وي

زړه ئې هم دومره وي      چه خوږ ماڼې خيال وي

شپه به جنت خدايا      چه د وارو ال وي

خوږ چه زړه د وړه منګلې      دومره جمال وي

د تام په مينه مسته      کوځه لکه لال وي

دا ئې سفې به هسله      خدايه خوشحال وي

چه لاس او زړه د وي دده

تاروڼ مال وي

## پلوشه

شين زړی شه مدام خوږ د هوس غوږ نيسي      کته بار شه هميش خوږ د سيسو غوږ نيسي

يا کوه تن اساني د غني بار شه      خوږ د هر کله بازاري د پيسو غوږ نيسي

## پلوشه

لکه بت بينا نه کا بيه به روڼ شمکو ډيم      عشق دانله کاڼي وکړے به ماباندے

---

(۱) شتا يا . (۲) نه وييه .

غني جام د جلال نه مخمور پاګل کړے — که اې پوتے د عوښه سر دا لاندے

پګوړشه

د عاشق مخمور سترګے — که د یار ښکارے نه شونا ے

که غوټۍ دی د نرګس — په سرو ګوتو کښے راغونډے

# ریښته

یا بے جرړو ونه زه وے — او یا بے پرو مارغه وے

یا د نیم آسمان وے ستوری — یا د سیند د مینځ اوبه وے

یا تنها وے د شبنم زه — نه م پلار نه م نیکه وے

نه م دوست نه م دښمن وے — نه م بد وے نه م ښه وے

د جهان به لوټ جنت ؤ — که ریښته نه وے سرخه وے

خدایه زه به ستا عاشق وم — که ته وے ستا تپه نه وے

عاشقي به بزرګي وه — که عشق وے معشوقه نه وے

ربښتیا زه که خپل مالک وم — یا به زه وم یا به ته وے

غني د غه د سردا وایه

که غني وے خدا به نه وے



## پلوشه

ستا فراق په ما قیامت کړ — یاره څه به وي قیامت اوس

ستا په عشق کښې رسوا خو بس یم — یاره څه به وي عزت اوس

د همه جهان بلبلې — ستا یو خال نه دې ستایلې

خو د ګل صفت پوره کړي — د ګل څه به وي صفت اوس

ستا یو خوږ نظر دلبرې — ستا یو دوه پستې خبرې

ماته ملک جنت جنت کړ — کوره څه به وي جنت اوس

بار (۱) درون جلبل صنمې — ستا د دوو سترګو په غمې

خوار غني لوغړن پروت دې

ستا به څوک کوي صفت اوس

## پلوشه

یو ارمان مې په زړه راشي کله کله — شنې لنبې د اور مې خیژي له ګوګله

ناګهان مې د مستۍ چپې لا مو کړي — ناګهانه مې سر عقل شي بې کله (۲)

زړه مې ونیسي یو پنجه د فولادو — کړي نچوړ تر د خودۍ عرق یو ځله

زه بې خوده لیونی زړه مې آموشي

نه پوهیږي که نې پوه کړې هزار ځله

---

(۱) بهر، یعنې د ننه بیرون.

(۲) سکل هندي کلمه ده، یعنې عقل مې بې انتظامه او بې اداره شي.

# پلوشه

مراوے سترګے کړه راپورته ستړګو ته زما دلبرے

خانده وخانده مسکئ شه په رښتيا نها دلبرے

راشه خوا کښېنه زما کښېنه سر زما په سينه کيږده

د مستۍ په خوب ويده شه پريږده دا دنيا دلبرے

داغمونه نه خلاصيږي چې خوږ وند نه وي خلاص شوے

څه چې پټ ترے يو ساعت شو ديوبل په خوا دلبرے

# زه

نه زه فلسفي يم خلکه نه زه ليونے يم

يو غريب بچے زه د پښتون د پلار کلے يم

وارۀ م ياران دي يو دښمن م چرته نشته دے

زه د خان دښمن يم په چل خان دير ګرانے يم

بعضے ځاے کښېنم بعضے کښې دير يم خندے لوے کړم

خيال م د سبا دے پيدا شوے پرونے يم

خوښ م دي ګلونه هم ښکاره نه هم اسونه

خوښ م نو پښتون دي زه داو دې پښتنے يم

نيت م دے طواف ته د وطن د تورو خټو

سترے طواف نه د مکے د مدينے يم

زه وم په وطن مین خو تن جلا وطن کړم

زړه د مه کل نه شوم ځکه زه تړے سپېلنے یم

زړه ځکه بېنمه او ایمان په تپېر نه خرڅوم

خکه لیونے یم خلکه خکه لیونی یم

## پلوشه

په تورو شپه د غم کښے یو ځړی د رڼا | زړغون په دیوا کښے نه بیسته بو د لالا

دوېرے تورو ځنګل کښے یوه زړکه په خندا | یو ځاځکی د امید د ناامید په دنیا

رنګین د بودی تال د تورو شګو په صحرا

مستي ډکه ځواني ډکه دلبرے که الله

## معمیٰ

هم زما خوراک دے هم خوږے بنا پکے دے | هم د زړې هم د مټې هم د منزل دے

اوسی په ځر منه کښے راځي په تکلیف | خو بس د پښتنو د صاحب پرورے دے

## پلوشه

ته زما د ماتے زړګي دارو د غم تعویذ نے | ستا په مینه مستے سترګے خوږه دی عزیز

ستا بنګلو پاپوله اے زما د کلي بستے ! | پیتے به د خوږ د جنت نه هم ښکلے زیرے

ستا راځبو نه به د نرګس غوټه ایرے کړم

ښکلي شهزادګی به وارو کړمه ستا کنیزے

# لنډۍ چړک

نن چړک د انقلاب دی نعرے - قوقو     جوړه خت شود سبا

خونه ځي د جومات نه انګازې د الله هو     ویلۍ پروت دی ملا

بیګا د جمعې شپه وه دیر تالی راغـلی وو     خوږ پکښې حلوا

خو چه شول طالبان ئے ما پروان لید لی وو     که وینې نه دے ملا

پرون ئے طالبانو دیر باد ګنګ خوړ لی وو     تول ناست دی په بیدیا

ورو وکے چینئی خه شو چه هم به کړی دا ګډ     راوینس به کړی ملا

هغه بیګا تیار کړی دیر تبیر خوړلی وو     د هو که کښې د حلوا

الله به نس ئے د زړ دو تول پښې لیکړل - او بلو     وه پروت به مصلا

اوس څوک وکړی جومات کښې انګازی د الله هو     جهان کښې شو رڼا

لنډه په چړک نن زور کړو وا نعرے (*) د قوقو     راوینس به شی ملا

# د ماڼۍ وزیر ته خط

لویه او بنده زیره ورو ره ! او نه د آمدن لری

صیب ولګاه وه د مهکیل په خوله میتر

دا م یو مشین دے تیز رفتار لکه موټر

(*) ها ، وهـ .

صیب تپکس (۱) به اخلي د بکواس (+) او د تپوتر — زیات به په غوړو چه د گرړی غوک دلندن لری

لویه اوبه ده ډیره وروړه : او بڼد آمدن لری

صیب : مالیه کیږده د چاپو به چاپیک — لږ به آمدنی وي د تپکس نه د بنانک

دا تپوس دنه وي چه خانصیب دے گه ملک — اخله تړینه تپکس آزو لوک د صیب (۲) ددیدن لری

لویه اوبه ډیره وروړه : او بڼ دی آمدن لری

کیږ ډیو تپکس صیبه : په لویو لویو ږ بیږو — ونه کړے معافي که خو د سوا آز یاد دیږو

تول عالم به وائي چه ډیر هوښیار وزیر و — خیال د خزانه ډیرد ے د دغریب ولن لری

لویه اوبه ډیره وروړه : او بڼ د آمدن لری

مانے تحصیلدار ته صیبه واده سفارش — ستا به ډیر تولیږي زما به لږ درنه ش

دک بله روپوکړم د سرکار خزنه تش — صیبه : تحصیلدار هر ځای پولا پالنک بر سپین لري

لویه اوبه ډیره وروړه : او بڼ د آمدن لری

# خرو

یوم خان لالا دے چه دے نن په سرخپو شانو
یونه ملخرو دے چه تاکوړے د چوړ یانو

یو معتبر خان د حجرے قارو باسی کود

ده نه خنادړ ! ده د ده دبچو موړ

---

(۱) مالیه . محصول . (۲) خلک . (+) بکواس چیچړے . فضه خبرے .
(+) تپکس : شهادتنامه ، د تحصیل سند .

لاس نې رته : مات کړې چا دهې د پښتون خور
کاشکې دده پوزه کښې ددۀ د خور پېزوان وُ
مینه زما خوږ دے چه تا کو دے د چوړیانو

یو مستانه خان دے تیز رودی کښې لته خیرات کښې
رمی بزیام (۱)، ته که وی دیر کښې که دی سوات کښې
ملا او پښکال د مالیې په حوالات کښې
یله د متیز کومد دکارد بدماشانو (۲)
مینه زما خوږ دے چه تا کو دے د چوړیانو

یو پیسه تک خان دے خبر له چنګ ربابه
مړ نو کړ به قبض کړی د ودیُ ورکیږی (۳) خرابه
نه څه دی خوړ شی نه ویستے شی بے جولا به
ورو ورو به زمانه شی دا وروړګی د ملټ اریانو (۴)
مینه زما خوږ دے چه تا کو دے د چوړیانو

یو زور پښتون خان دے خوښوی نیزه بازی
خوښ لے دی ښکارونه د لغر او د تازی

---

(۱) بزیام پاکستان کښے یو زیارت دی چه کالنۍ ګرمه په کښے لګی .

(۲) بدمعاشانو . (۳) ورکوی .

(۴) مارواړه د هندوستان د سوداګر په صوبه کښے دیو خای نوم دی چه خلک په کروړپتیانو مشهور دی .

نور زړور ټبر دي یوسفزي د محمدزي

هم په قام مین دي هم مین وي پښیلوانو

خوښځې ډیر خرړي چه تاکوي د چوړیانو

یو لیوني خاندې نه په خاندې نه په بل

نه د وړې بونه پرې وړله نه د وړخې داچل

نرخلمي ته نړواني او غل ته داني غل

خدای بې پروا جوړ کړ پروانه کړي دخانانو

خوښځې ډیر خرودي چه تاکوي د چوړیانو

## درې ژورې

سوال: خوک نې ته جناب !    خان نې که نواب !

ښکلې دې جوسه ده برېتونې دې وضعدار دې    دا مزې د ښار دې

(۱) ښه انګریزي بوټ    ښکال نوې سوټ

(۲) هیبت دې ډیروناک خو جرابه کښېنې د نې سوې وینم    ښت دې لز نرې وینم

ځواب: چوپ شه بې وقوفه !    زه یمه مصروفه

زه ټیکه کوم او زده بڅونه د چل ول    فیس را ورده اول

ښکر د توپک    تل م جیب وي ډک

---

(۱) وکیل دعوا ، ډاکټر، بپتیا (۲) انګریزي خولۍ.

ښه مې د لالهٔ سم دې د خبرې چنګېنک — شکر د توپک

سوال: ته څوک یې حضور؟ — سوې لکه طور

لا سې کښې دې انبوهٔ د ځېبه ته یې جوړ لوهار؟ — دا مزې د ښار

رنګ دې مرخڼ — غوپ دې بڼان

پا د یې چینې د کښې خوږتوپې کښې دې داغونه دي — زیږ شان د غابنونه دي

خواب: زه کښې انګلشن — تشخیص او اپریشن

لا سې کښې مې شفا ډېره تندې کښې مې اجل — فیس را وړهٔ اول

پاس که د لنډن وي — یا د امریکن وي

وارهٔ ما پرهٔ کړې زهٔ ډاکټر پیدا ایشي یمه — شي پوهٔ سو دیشي (۱) یمه

سوال: ته څوک یې چاتها ! ؟ — دلې که کوا تها!

چغې د پاڼې دې نوره از کین یې بې مقدار — دا مزې د ښار

خوږ مهین کلام — غور دې هر مقام

سترګې د بادي پانه خپه (خو:) دلبر مې — شان شوکت دې کم

خواب: ډیر کوڅې دې خان — کوڅې کښې تاوان

لسو باندې واخیسته او خرڅ یې کړهٔ په شل — خپل کوړهٔ ولو تل

دلته چه بیو پار وُ — یار زمونږ ستا پلار وُ

مونږ به دوه کالې هم ځغې نه واخیستل — خپل کوړهٔ ولو تل

---

(۱) وطني.

# پلوشه

دلبر دوا رو دلبرانو دے دلدار زما

سردار دوا رو سردارانو دے سردار زما

زما پہ کله شغله کښے د سپوږمۍ شې جانان

کله لاله شې کله بیا بنیسته لولۍ شې جانان

کله لهیل کله د سور ګلاب غوټۍ شې جانان

ورته به وایم چه بیا ماسره یو ځای شې جانان

دلبر دوا رو دلبرانو دے دلدار زما

یا المر خاته کښے خامے هستے را پورته کړې

سپینه سپوږمۍ شې موسکۍ خوله د جانان لو ته کړې

ما په خندا خندل د غم له کندو پورته کړې

دلبر دوا رو دلبرانو دے دلدار زما

سردار دوا رو سردارانو دے سردار زما



# پلوشه

لاړه که ځواني شي ده ځواني جانانه د تللو شي
لاړه که ښکلي نګ شي ښکلي نګ هم دے د بایللو شي
ځکه ژوندون د خلاص شي دي ژوندون د خلاصیدو شي
واړه دا فاني دي بې فنا د عشق سازونه دي
عشق به تل ژوندي وي څو چې ځمکه آسمانونه دي

# دلربا

| | |
|---|---|
| نه مې پلار رشته نه مې مور | واړه خونه مې تالا |
| نه زما په غم خوږ پوه شو | نه زما په واویلا |
| دا چه ما ده کومه کړے | خوږ دی بې له ده ګناه ! |
| دا ګناه ده د فطرت | دا ګناه نه ده زما |
| خو یو کس هم په دنیا کښې | دی مې پلار هم مور زما |
| تل زما د غمه ژاړي | سودائي مې ده سودا |
| نصیحت په پسته ژبه | شکایت هم په خندا |
| وار خطا لکه د مور شي | په پوهې سختی زما |

پاکیزه لکه سپوږمۍ ده　　دغه خوږ د خوږا (۱)

په ښایست د جنت حوره　　په خویونو فرشتا (۲)

ما ځکه مینه پېټ کړې　　له غمونو د دنیا

د جنت د رنګه زیات　　دی رنګین دلبر زما

که دنیا کښې وحدت نه وي　　مالیدلی ده چینا (۳)

دالله د نقش کمال دی

مخ زما د دلربا

# هی هی زما لیلی

ما وې زما لیلی به مېنځ کې مسته مسته ګرځي　　یو باغ کښې په چمنا

ما وې زما لیلی به لکه ګل ترو تازا (۴)　　د ګلونو ښیستا

ما وې لیلی شونډې به غوټۍ وي د ګلاب

ښیسته به یې ساز و نه ټنګوي لکه رباب

په سور اور د مستۍ به تنکۍ وي سره کباب

بې تاجه ملکه به وي د حسن د دنیا

د ګلونو ښیستا (۵) هی هی زما لیلی

ما وې د لیلی سترګې به سرې مستې په خمار وي

---

(۱-۲-۳-) د ضرورت شعري له کبله په الف لیکل شوي.
(۱) خوږه (۲) فرښته (۳) چینه. (۴) تازه. (۵) ښایسته

ماوې په سپینه غاړه بې (۱) د سرو ګلونو هاروي
په لاس به ئې کوټ ته څه چه به د نرګس ګمبل قطاروي
ورېښمینه دوپټه کښې ښیست پټ او څه ښکاره
د ګلونه ښیستا هې هې زما لیلیٰ

ماوې زما لیلیٰ ده د لا لا د سترګو توره
بابا ته دیره ګکرانه ده نیا زړبنیره ده د موره
زما د زړه بي بي لیلیٰ بي بي ده د خپل کوره
موسکئ مابنام ویده شي سحر پاڅي په خندا
د ګلونه ښیستا هې هې زما لیلیٰ

نشه په د خیالاتو خوبونه په جهان کښې
محل ته د لیلیٰ مجنون روان شو بیابان کښې
نه باغ و نه بنګله ده لیلیٰ ناسته ده دالان کښې
ښیسته سره تورې ده غوجل کښې لوښتا
هې هې زما لیلیٰ د ګلونه ښیستا

ګمبل د نرګس کوټې د څپیا ګې نه چاپېره
په صفا (زمین (۲)) کمیس ئې ده هم کیاره بار تیره
لیلیٰ مینځ کښې لوغیږي ښین لوګې ترینه چاپېره

(۱) به ئې . (۲) خیرن غوندې .

څلونبت خوا زه د دوستان نه ځو راغلی د لالا

مئ مئ زما لیلئ    د ګلونه بنیستا

لښتي نه د خولو د ملا په تیر ښکته روان

په زلفو کښې ځو قسمه غوټې وې    د ډېران

سرې شونډې سپېرې وچې د خندلو په ارمان    (*)

مئ مئ زما لیلئ    د ګلونه بنیستا

## پلوشه

دا د وینم دلربا! په مخ کښې سترګې    که د حسن ممنډه کښې د نور ګرمې

دا د وینم دلربا! په خوله کښې شونډې    که د حوره د جنت باغ کښې بربنډه ده

دا د وینم دلربا! سترګو کښې نم

په ښکو که د نرګسو د شبنم

## بهار

بلبل ګلزار ته نن په ډېر سینګار راغی    په خمار و سترګو کښې نوی خمار راغی

جوړې بهار راغی جوړې بهار راغی    غوټۍ شوې پیغلې وخت د بهار راغی

بلبل را ایږي نن نه د لدار راغی    خو نه خبر راغلی خاوند مې یار راغی

غوټۍ شوې پیغلې وخت د بهار راغی

---

(*) نامکمل.

سپوږمۍ شراب لوني د ښيست په جام ياره
ورته مړې مړې کړم پوره ته ستړ باد ا مياره

چه د ته روانۍ بيا زما سلام ياره
سپوږمۍ م ونه ليدله دستا په بام ياره

دا څوک شراب لوني د ښيست په جام ياره

کله د ښکلا ابو کښې کړم سپوږمۍ سوران زما
ورو به ښوولږنه داد جانان زما

وايه چه ښکته شي اوس دا د آسمان زما
چه خوب کښې ودينې تول رنګين جهان زما

کله دي په شراب کښې سپوږمۍ سوران زما

ځواني له مانه واخله مستي له مانه واخله
دا دوه کلونه سپوږمۍ لېما بانه واخله

په ښکلو ولونو وايه جانانه واخله
صدقه دستر شونډو د د خپل اشنا نه واخله

ځواني له مانه واخله مستي له ما نه واخله
بلبل ګلزار ته نن په ډير سينګار راغے

جوړے بهار راغے جوړے بهار راغی
چا ته سلام راغے چاله دلدار راغے

خو نه خبر راغے او نه م يار راغے
په خمار سترګو کښے نوی خمار راغے

## ولے (۱)

څوک دے ماته روانی
څرنګے شيدا شي څوک ؟

څوک چه چاته وخاندی
ولے په خندا شي څوک ؟

ستوري د غره څوکے ته
غلے شان بيکار وے

(۱) دا شعر غني د خپل واده په شپه ليکلے دے.

مینے پہ ژړا وي ‌ ‌ ‌ حسن په خندا وي
ماته موسکو سترګو کښې ‌ ‌ ‌ ښکلي دلربا وي
ولې څوک زړه وبایلي؟ ‌ ‌ ‌ څرنګې شیدا شي څوک؟

څوک چه چاته وخاندي
ولې په خندا شي څوک؟

سترګو د مجنون وي ‌ ‌ ‌ او ښکو د لیلیٰ وي
وي په نشه خوارئ ‌ ‌ ‌ غم ورو په سودا وي
ماته موسکو سترګو کښې ‌ ‌ ‌ ښکلې دلربا وي
ولې څوک زړه وبایلي؟ ‌ ‌ ‌ څرنګې شیدا شي څوک؟

څوک چه چاته وخاندي
ولې په خندا شي څوک؟

## ورو ورو

ورو رو ظالمه دا چغې ناوړې
ورو رو پړې پښې زړه دانه دي خاورې
دا خوستئ دي دا خو خوارئ دي
سینې دې کوکې لکه دواوړې



# ولې ته

سر په مځکه باندې کېږده — چه په راز پوه د آسمان شې
ستر کې ستورو ته کړه پورته — چه په شان پوه د جهان شې
لږ سر ښکته په ژړا کړه — چه مزه د خندا واخلې
د دنیا نه ځان راغونډ کړه — چه مزه د دنیا واخلې
د چیلي په کوتکۍ کښې — یو پیاله د شراب واخله
خوله دې وچه په لوږه کړه — بیا مزه د کباب واخله
لیونی زما په شان شه — چه په راز د خودۍ پوه شې (۱)
سر او زړه دې ماشوم کړه — لیونیه چه سړے شې (۲)

# مینه او حسن

ستوري ته آسمان کښې یوه ورځ ووې هلال
خدای آدم له مینه ورکړه مونږ له تش جمال
زه به په خندا ور کړم داخل نیست د کمال.
مالګه یو څاڅکې مینه را کړې خوږ به سوال
مینه حقیقت حسن سایه د حقیقت ده — حسن له زوال شته مینه نه لري زوال

---

(۱-۲) چه د پوه (ه) او د سړي (ړ) په مجهولو د تلفظ شي نو قافیه به جرخته شي.

# زما د کلو لښتې

خدایه زه به دم خوشحاله د جفا خنجر به زړه کښې
ستا وفا لا لوغړن کړم بې وفا به وې لا ښه

موسکۍ شونډې د لښتې د عماد رڼ سپین روستي کړې
ستا خندا دښتې کو زار دې په ژړا به وې لا ښه

تچه ژاړې زما غم کښې بل غم هم به ما انبار کړې
ستا سودا زه سودائي کړم بې سودا به وې لا ښه

خان م هم خوار د ایرې کړ ته م هم په اودستي کړې
اې زما د کلو لښتې بې زما به وې لا ښه

# ځواني

دا بسم الله خدایه: دالیونۍ ده
چه ځواني نبیست دې او نبیست ځواني ده
بودا خوشحال بابا سپین سر کړ بوره ته
وې خاني توره ده او توره خاني ده
د منان خان همسا د منانې دا ملا
دا هم فاني ده
دا هم فاني ده

مسته رندی زما | روغه مستی زما

خاندانی ده

خاندانی ده

## پلوشه

د مستے جینۍ نښه ده بنګړي د پېزو ماتې

چه لږ، و نوره مسته شي زر کي ډېر ماتو

## ګډے وډے

شوق کښے د وصال | چه مس خوته ورشے

خو کښے ئے سکرټ | زما خوله وسو ځیدله

اغے د تهذیب باران | په ملک د خوار پښتون

ئے جومات لا هوشو | هم کوته ئے ځمځیدله

نوے زمانه ده | که د کلو وصل غواړے

اوس په انګریزئی کښے | وادیلا کوه بلبله

ماسر دیوے نه کاوه | پیدا شوه بله

بند دلاس نګریز شوے | ګړئی وچلیدله

تلے د لندن ته مجنون | اوس د رایور زده کی (۱)

او ښه لیلی خرخه کړه | موټر کښے ګرځیدله

(۱) ګی، کړي.

خو ناست شاعر په کوټ کښې | هغه شان قيصې د ګل کوي
شمع سره خاندي | ساقي سره محفل کوي
راشه زما وروره | د يار ستر کو ته بيتري وايه
ګل و بلبل پرېږده | الجبر او جوميټري (۱) وايه
وايه ستا وجود دے | د وايټ د زاويو په شان
ښکلې دې آواز | زما د ريډيو په شان
ورے (۲)، ستر د «ګاربو» لړے | او شونډې د «کترين»
او ښه رنګين د کريم ممين | ستا ښکلې جبين
هېر دې کړه رحمان (۳) سعدي (۴) | غزلې د «بايرن» وايه
«کيټس» او «شکسپير» ولې | «شيلې» او «ټينې سن» وايه
او زه ليونے خدايه! | کله خاندم کله ژارمه

لا هم پښتو لاهو شوله
نه په ژړۍ وته ولاړ ومه

## پلوشه

په غمونو کښې خندا کړه | په خندا کښې غم هېر نه کړے
او د دېړ په سودا کښې | په قيمت د کم هېر نه کړے
د وصال په لمحو کښې | د فراق ستم هېر نه کړے

---

(۱) هندسه. (۲) ورايه. (۳) صوفي عبد الرحمن مومند (۱۰۴۲-۱۱۲۸ ق). (۴) د پارسي ژبې مشهور شاعر او تذکره ليکونکي شرف الدين مصلح بن عبد الله سعدي شيرازي (۶۰۶-۶۹۱ يا ۶۹۴ ق).

داچه ته ئے ستر گو ته خاندے — دد ے ستر گو غم میړ کړے

د الله الله په شور کښے

چه صنم صنم میړ کړے

## پلوشه

نه خوشحاله دے وفا کرم — نه خفه دے کړم ستم

ژوند یو تال دے چه غزیږی — کله زیر او کله بم

دا یو دوه گړی ژوندون دے — په خندا خندا ئے تیر کړه

دا جهان خدائی جنجال دے

کله وران او کله سم

## پلوشه

ژوند او ساز واړه د باد دے — ژوند هغه بویه چه ساز وی

ساز هغه چه سا پکښے وی — سا هغه چه د نیاز وی

## کلهړے ودے

خوند ورو رو جانه ډیر کوی خبرے بنوسئی (۱)

دوی وائی ـ لکه شوی ده ـ موږ به وایو ده هوسئ

نوم ئے په کور کوړه دی ـ ببو غیه بی بی ـ ایغی (۲)

ژبه خوږه ګران دے راله ئے وکړاوه تریخی

---

(۱) بنوسئی ـ (۲) ایغی د شعری ضرورت له کبله په دغه شکل شو:

د مینا، سرکوسه، شمشتی خواره، شکرتاتی۔
تتے سره نے شوق دی نه نے لکی بنګړ یواتی
وانی، ورکیه، کیږنکیه میدون ته بیزه بیزه
سه کښی لوردسے دړ شخومه په ډے پیږه

# ځار درنشمه

اے خدایه! عقل راکړه — اے خدایه! پوهه را!
زړګے مضبوط راکړه — او سینه لویه را
سترګے دلمر راکړه — رحم د خان را
بیا تول غمونه دی — د دے جهان را
ما ته نے په سر کړه — ځار در نشمه

زه به نے وړمه
زه به نے وړمه

یار بها دړا کړه — که همت نه راکوی
غیرتی ورور راکړه — که غیرت نه راکوی
د سکندر بخت را — د دارا خیال را
مټ د خالد کښے — توره د هلال را
اسلام دے پریږدمه — ځار دړ نشمه

زه به نۀ کتمه

زه به نۀ کتمه

د شپې خیمه کښې   دعشق شراب را

پاک مل دلارے   لکه ګلاب را

د سپوږمۍ نور راکړه   لوبو کولوله

د بودۍ تال راکړه   جوتو و هلوله

جهان دے پرېږده   خمار دې نشه مه

جنت به نۀ کړمه

جنت به نۀ کړمه

## پلوشه

غنچې و، قبلې ته لیونے ترے خبر نۀ وُو
سترګې نے وے وازے د انسان په تماشا

عکس د سپوږمۍ نے د شبنم څاڅکي کښې ولیدۀ
خکه په سجدۀ شو د جانان په تماشا

نشته دے د ژوند د خوب تعبیر کتاب کښې نشته دې
سترګې دے کړه پورته د آسمان په تماشا

خدائے مکه کښې نشته د منصور د بے خودۍ واوریدۀ
لاړ شه لیونیه! مشه د خان په تماشا

# بے پروا لکه لولئ وای

بے پروا لکه لولئ وائے — په کلونو کړ خیدلے
او چه تول عمر ماشوم وے — په بلا نه اوریدلے
د دنیا د ورو وستو کو — بے خبره کو خیدلے
چه په خوله د جانان نه وے — د فراق و ریتے غزلے

بے پروا لکه لولئ وے
په کلونو کړ خیدلے

بے خبره چه آدم وی — د رازونو د خزانه
نا اشنا مجنون وید دوی — د غمونو د لیلی نه
او چه حسن خبر نه و — د خپل حسن د غرور ننګه

دا زما زړه نا اشنا وے
د دے منو بد و د جنګه

# بنارزی

سمړی سمړی خان خیر سره راغلی — "دوه دوه پیسي (۱) د کلچې دوه پیسي دی چاه"
سړی ګرځي کنه چاڼسکي خانو په ښار سره دی! — مخ مړیت ناجوړ په نیبو (۲) ان ګني منبه نه دی

---

(۱) په هند کو خپل سړو د ورته وائي: مثلاً کوه د دوه پیسو کلچه او د دوه پیسو چاي خان له راوړه (۲) نیبو لیمو

ستا قسم دی خان : دوه دی نمونځ سره به نوش کوے

دنا، ونه وې خان مونږ د غم نه به بے هوش کوے

داسے لاړه وبنیم تاله زوم (۱)، نوره انتظام کوم

خدایږ ونن د بنار کسـر یلا متول په تا تمام کوم

څوره هغه کوټ باند ے دے پورت دسیټ دوکان

هغه سیټ دوکان پسے دی بل دسیټ دوکان

هغه سیټ د کان پسے یو وړوکی شان مسیت دے (۲)،

خواکښے یو پیل دے یونانی (۳) لسیږ شان پلیت دے

اخوا دوه کوټے دی یو راځی او یو ورځی

هلته ناست دی کوټ بانا، ے دکان یو دده زی (۴)

شاته زموږ کوره دے مونږ ورځو په بله لاره

اسی اوتی بیتهی اوسان وینی دکار ے

لاړه که غلط شی کوره د غه خی دکان دے

دلته بنه تیکه جوړیږی الله مهربان دے



---

(۱) ختم . (۲) مسجد . (۳) نانی : لیتے (۴) خیاط .

# حوره

خلاص شراب جنت کښې شو نو راغے د حورو — ګلے په خندا شو یو باغچه کښې د انګورو

ته ترې چرته پټه شوې د ګل د بوټي خوا کښې — څه مجبوره تا شوه د بلبل په واویلا کښې

راغې د شبنم اشنا ما لیار د باغ غمګین
وې لیدو په ګلو کښې د یو بل ګلاب رنګین

وې شو کاو په شونډو د سرو کښې دیرې مینه کینوده
راغله لیلی سرې د مجنون په سینه کینوده

خوب کښې دے جوړ یا چرته د خپلو خوښو ساز واوریده
چرته د باغ کوټ کښې دے د زړه د وطن آواز واوریده

وې لرو ستورو ته په مړاوو سترګو ګورے
د باغ دره یاد ګرلے حورے! باغمچې نورے

زور ند د دره ستورو ته چه ستا د زړو تمالڅه
پروت چه په دې زلفو کښې د منګ په ځای هلالڅه

ځکه چه به لرو کښې د ستورو ګورځیدلے
یا به د سپوږمۍ شغلو کښې پټه ګرځیدلے

حورې: ما هم بو څه د رڼا د غه جهان له
تا سره به زه هم خوا کښې تالواچوم خالنه

# غمګینو سترګو

خوب کښې بابا ولیدم — مور مِ پیدا کړم
دسپوږمۍ عکس وې — زه هم رڼا کړم
قسمت خلق کړے — ګله په دنیا
ځوانۍ وید کړم — راوینښ لیلیٰ کړم

غمګینو سترګو
دغم اشنا کړم

مینې شاعر کړم — او غم دانا کړم
یار لیونے کړم — بیا ئې اشنا کړم
مرګی ته خاندم — ژوند ته ژړا کړم
ګله موسکے شم — ګله ژړا کړم

غمګینو سترګو
دغم اشنا کړم



# علم تشدد

د غضب په نیلي سور شو | د شیرشا[1] لمسی باتور
سترګې یې د پښتون سرې شوې | چه نیم اور دے او نیم نور
خوان کړل شنه بیرغ ته تاو بیا | په مستۍ چتر روان دے
دیار مستې سترګې وینې | بے خبر د جهان دے
مور ئے ورته په سر قرآن بیا | خور ئے سترګے کړے له تورے
د بابا پښتنو سترګو | ورته وکړے قصے نورے
اے زما د نیکه خویه ! | اے زما د مینے وروره !
اے د نر بابا بچیه ! | اے پیدا الله نرے موره !
سترګے دے کے درنا ستا | لاس دے تش تیرے د څه شو ؟
د غضب په نیلي سور شوے | فولادي زغرے دے څه شوه ؟
وے په نوي مستۍ مسته | پاکه وینه د پښتون شوه

وے ګوره که لیلی بیا
تش په مینه د مجنون شو

---

(۱) مرکز شیرشاه (۱۵۴۵ ع م) د هند د بهار د ایالت په سهسرام کې مړ دی.

# جدائی

جدائی راغله بیا تکه توره

که لوګی وخوت د عشق له اوره
جدائی راغله بیا تکه توره



بې خودۍ لاړه زړه مستي شو
وریته بخپل اور وریته مستي شوه

بلبل ورور راغی د بوټي خواله
ویل جدائی دې مل شه د خاورو واله

جدائی راغله بیا تکه توره

تازه په سرلي کښې په ما خزان راغی
ساقي کړه خلاص یو د دیل دوران راغی

سرې ګلې بنګته بوې د بوستان شو
مجنون شو خاورې روح د جانان شو

جدائی راغله بیا تکه توره

که لوګی وخوت د عشق له اوره

# فلسفه

واوره فلسفه د لیونتوب د لیوني نه
دا آیت خو نه دې خو قرآن کښې ما ویلې دې

مرګ او ژوندګی یو د غم او خوشحالي یو دی
ژوند چه چرته نه وي مرګ چا هلته لیدلې دې

زړه لکه دې چا د خوشحالۍ غم نه شراب دې
تر بې خصت نشي تا خو غم ته نسکور کړې دې

خوند نه جلا دې د دې نشه یو د دواړو
دواړو کښې خمار د ساقي د سترګو تلې دې

مرګ کښې پټ دې راز د مرګ ژوندي په نه پوهیږي
دا آیات خو نه دي خو قرآن کښې ما ویلي دي

# د فقیرانو سوال

ستر گو د جانان کښې زما    ښکلې جهانونه دي
وا دے خله دنیا    زه وږے ستا د دنیا نه یم

⁂

گوره د فقیر کچکول کښې    تاج د سکندر دے پروت
زه یم د سخیانو    د شومانو گدا نه یم

⁂

زه ئې په غرور درنه    د مینې په نوم غواړم
زه ملنگ بے نیازه    ستا د ویړ واویلا نه یم

⁂

هغه مستي غواړم    چه ئے مرگ نه شي وژلے
زه د دے د غمونو    د بیگا او سبا نه یم

⁂

یو د سپوږمۍ څاڅکي    ماله څښک له د جانان را
زه یم د خوبونو    د لالونو گدا نه یم

⁂

تښته دنیاگۍ که دے بنے    نو اے امیره!

ستا شوه ستا دنیا
زه وږے د دنیا نه یم

۱۴ جنوري ۱۹۴۱ ع

# جانان

دوه مینو سترګو کښې رنګونه په سوونه

ماته نې جهان دک کړ د ګلونو د نورونو

کوټ نې د ښاهبود جنت په جهان داکړ

خوب کښې ژوندون داغ شو ژوندون د خوبونو

سینې د سپوږمۍ دریالبې دکې دکې

ونوستي(*) تا خاورو کښې زما په قدمونو

رب دې راته وښود پټ د مینې په رازونو کښې

وا دې چول غولي کښې زما سندرې په پلوونو

ساز د حورو او درم ستا د حسن په سازونو کښې

ماته دې رب وښود پټ د مینې په رازونو کښې

## رباعي

که تش په عقل وې په لیاقت وې

نه په نصیب وې نه په قسمت وې

شیطان به نن ولې له جبریله

غني به هم لایق د ولایت وې

---

(*) نوستل: شیندل.

## پلوشه

نه په لیونتوب تر فلسفې کړله څه جوړه — نه په فلسفه تر څه کړه جوړه لیونی

داکړه وړه دنیا کړه وړه روانه ده — بویه دوړه بویه بویه بخت د خوار غنی

دا دستور د شمار د وخت تلل د ساز لیدل

سنه خونیتولا ئې د چه ډیر وشو کنی

## پلوشه

ما تېرو براق دی کړې سوره د محمد په شان — ما خپل کعبه د دوی کړه او سیزه د ابراهیم په کښې

هغه لاره مکې ته خې چه نیت دې د مکې وی — ما تېر کلشن د دې وړه وړه تکی نسیم په کښې

## لیونی

یو بنار روان کړې د نرو نرو کوخو دی — یو خیال روان کوینه ده د ګډو تلو سودې

یو سر روان کړې تکی سوزه او تکی ساز — یو عشق د حقیقت د جوړه د عشقونو د مجاز

یو کور روان کړې د خوبونو د رنګونو — د تورو تمو ترمنځ بلبل د کور سر نګونو

او خاندل لیو ستر نې د کې د مستونه — وحدت نې روان کړی دا د لکھا بت پرستونه

او کله لیونتوب فلسفه کل او صنم وائی

او کله د مستی خبرې دیرې په غم وائی

سر یې پاکل غوړنی مخ د شبنم پر پتوی

او دیل مست خوروی ستر کو غم پرې پټوی

# سوال ځواب د لیونی او ملا

لیونیه! مینه څه ده؟ ملا: کوږ دیو عاشق دی
کوتنئ دی کښے دیرے د مسمو رب خالق دی
لیونیه! ایمان څه دی؟ ملا: دا دے پوخ گمان
دیو خوب پهٔ زړهٔ لیدٔ دی د وصلونو د جانان
لیونیه! جنت څه دے؟ ملا: ستا جنت پیتی ده
او زما جنت وصال دے یو خمار یوه مستی ده
لیونیه! حوره څه ده؟ ملا: لهره(۱)، د خمار دے
یوه کرښه د شفق ده د خندا بربرکۍ ده
لیونیه! نشه څه ده؟ ملا: دا پهٔ سیل واته دی
د مستۍ رنگین محل کښے دا واته ننواته دی
لیونیه! چه لمونځ څه دے؟ ملا: خاورے ښکلول دی
د جانان کوڅے ته تلل دی دا امید ارمان کیدل دی
لیونیه! سجده څه ده؟ ملا: خان خاورے کول دی
د مستۍ د ښکلو هار د یار پښو کښے اچول دی
لیونیه! ژوندون څه دی؟ ملا: نه دے مه ژوندون

---

(۱) چپه - موج.

دا زما د خوب لیده دی — د سبا او د پرون

لیونیه! وصال څه دے؟ — ملا! نیست کښې د ویده دی

دا په ستوړو کښې لیده دی — په سپوږمۍ کښې خوریا دی

لیونیه! حسن څه دی؟ — ملا! لهر د خمار دے

یو موسکی موسکے نشان خیال دے — یو نرے د رنا تار دے

لیونیه! ته نے څوک؟ — ملا! زه د چا ارمان

زه یو ګل د چا د کوتو
پروت په پښو کښې د جانان

دارالامان - ۲۵ فروری ۱۹۴۴ ع

## پلوشه

چه بےخودی ډیره شی د خودی رنګ ورکوی
یا بوډا توب له هم د ځوانۍ رنګ ورکوی

غم چه ډیر زور وکړی د خوشحالۍ په شان
د ژوندون تار له رقصانه شه رنګ ورکوی

ستر کے چه تشے شی خوبونه ډک وینی
په تش کاغذ مصور مستانه رنګ ورکوی

سحر له شپه ورکوی شپی له سبا ورکوی
د فلسفیانو سره ارنګ دو رنګ ورکوی

# گله ورته

مچ د زمرے سترگے شکوی ماشی د او بنن وینه

خدایه! ستا د عجیبه دنیا توره ده که سپینه

مرلسو گیدړ و ببر شیر په بوټو ئی چړگه کړ

سپوږ شغال په پړانگ دے دغه خوږ ښکاله خینه

پرېوځی چوارړی ته خان گانه په دتیٔ زروکړی

ښکلی ستا دکو توجوره ځوانه نازنینه

ناسته ده د دم دلندن لوړ په سرو ورېښمو کښے

لوړ دلوے شیرشاه لوړے په لاس دے لوله خینه

مست مغرور سر د پښتون تیټ سترگے ښکته دی

شرم داسی شرم چه شرمونه شرموینه

## پلوشه

| | |
|---|---|
| که ښکنگ دے که رنگ دے | تول رازونیاز دے |
| که ښایست که مستی دے | یو نازیو انداز دے |
| که حسن که نور دی | یو سپین سپین بگړے |

که گل که یسین دے

یوسوز او یو ساز دے

# پلوشه

روند به څه قصه د دې رنګین جهان د رنګ وکړي

دا نیمې مړې کوتې به څه ستا د طبعې شرنګ وکړي

وچې سپېرې شونډې به په څه ناز او نیاز وکړي

دا غمګینې سترګې به په کومه نشه رنګ وکړي

# دپسرلي شپه

| | |
|---|---|
| دپسرلي شپه وه مسته مستانه | ستوري ځېدل د بره ښادو ښانه |
| سپوږمۍ ولاړه وه بنګلې حیرانه | لیونی سوال کړو د خپل جانانه |
| د نام پوهې له د لامکانه را | مستي مې سترګو له د خپله ځانه را |
| د خپله ځانه یاره! د خپله خپله ځانه | لیونی سوال کړو د خپل جانانه |
| ناکامه برق شو د رباب د نوره راغې | څه په مستۍ راغې څه په غرور راغې |
| مستي شوه کوم نکه مستۍ کویانه | لیونی سوال وکړو د خپل جانانه |
| او لیونی چه ورته زړګي کړلې | دیر پخوا رګې پکښې ځای شو بخرې |
| نور ډک د ځانه ؤ ډک د جهانه | لیونی سوال وکړو د خپل جانانه |
| د رباب د نوره ډنبیست او رنالاړه | او د جانان مستي جانان له بیالاړه |

لیونی پاتې شو خیرې کړیوانه

دپسرلي شپه وه مسته مستانه

شمله - هندوستان - ۷ ستمبر ۱۹۲۲ع

# دعا

دے بے انصافه د زور جهان کښې — دے بے کینې د پېغور جهان کښې
دے په غریبو نسکو جهان کښې — سترګې لیدونکې را عقل روښان را

زړه م مین را ربه! زړه م جهان را

دے د مطلب او ټګۍ په دنیا کښې — دے د راښکو غونډلو سودا کښې
دے خو د زړونو هر ښکلي بلا کښې — مینې بے طمع را زړه بے ارمان را

سترګې لیدونکې را عقل روښان را

دے د دروغو او تور جهان کښې — دے بے کینې د پېغور جهان کښې
دے د بدنیتو د اور جهان کښې — پاک د ملنګي په شان نیت او ایمان را

سترګې لیدونکې را عقل روښان را

دے بے همته کمزورې دنیا کښې — دے په نفرت تورې تورې دنیا کښې

. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

مرګ چې ترې ویرېږي دا سے ایمان را

سترګې لیدونکې را عقل روښان را

سه بے پروا مستانه و منصور را — سترګې خاکسارې مینې د نور را
ښکلے هر خیال ایمان د سرور را — زړه د ملنګ را او شان د سلطان را

سترګې لیدونکې را عقل روښان را

# شاعري

لږ خیال کړه لږ تال کړه لږ شان د جانان
لږ ننګ کړه غوږ ځنګ کړه یو آه د ارمان

لږ نور کړه لږ نار کړه لږ سوز کړه لږ ساز
لږ یار د سپوږمۍ شه د ستورو همراز

لږ کوت د کعبې کښې لږ ځل د شیراز
لږ باغ لږ باغچه شه لږ توره بیابان

لږ خیال کړه لږ تال کړه لږ شان د جانان

# جنازه

سر مې لوګي شه له تا سترګې مې
شونډې مې خاورې ستا د دیار شه

قربان خلمي لتانه قطار قطار شه

ته د خزان کښې یو ګل د بهار یې
دې توره شپه کښې ته یو زیړ د سار یې (*)

ته د بهار خوب د ګلې وران یې
ته یو تصویر د پښتون د ارمان یې

ته د پښتون د ناموس او د ننګ نښه
ته د پښتون د سپین ږیرې ملنګ نښه

ته زمونږ د دې صبر د جنګ نښه
ته یو ګواه د پښتون د مړانې یې

ته یو تصویر د پښتون د ارمان یې

ته یې د مینې او د زور او طاقت قصه
ته د شهید د مستۍ او د شوکت قصه

ته د پښتون د یو خیال او د نیت قصه
ته یو آواز د مظلوم په آسمان یې

ته د بهار خوب د ګلې وران یې

(*) سار: سهار.

پاس به دې ویړ قوم زره په حصار نښتې | یا به ته په خیبر یا زړه په دار نښتې
سر هم لوګي شه له تا ستر ګې هم خار نښتې | ته د بهار خوب د ګلی ورن نې
ته یو تصویر د پښتون دارمان نې

# مور

دا په ستر ګو د مریم ګښتې | چه ژړا ده که خندا ده
چه نې سور په صلیب ولیل | د عیسی د زلفو ول
دا څه ووایمه تا ته ؟ | چه رحیم نې که رحمن نې
چه په خاور ه ګښتې کړې خار | د ګلاب ښکلی اوربل
دا مستي ده که معراج ده ؟ | دا جهان نې چه روښان کړ
که د نور د یار د ستر ګو | دریا بو نه بهیدل
چه دا کفر که ایمان ده | چه دا زه نې لیونی کړم
چه داغم هم په خندا شو ؟ | که مستي هم وژړل

# د ښاپیرو شهزادګۍ

د سرو زرو محلونه ګښتې یو تخت ده د لالونو
او چت د غره په سر ده یو کمال د کمالونو
چا پېژ ترخندا ده او مستي مشغولا ده | کا ښه ووسره نه وو رنګونه وو رنګا ده

او ناسته دے محل کښے شهزادګئ د ښاپیرو وه
چه جوړه له خوبونو ښایسته ؤ نوي نوي وه
ما وے اے بي بي د جنت ! زه ستا د در ملنګ یم
ددے تنګ دے جهانه د غمونو نه تنګ یمه
لږ پټ مې کړه د غم د توږم سترګونه محل کښے
زړه ورکه دا ذره به شي دستورو په غوبل کښے
او ستوني را پورته کړے پستے د رنا سپینے
نازکے نازنینے په رنګونو کښے رنګینے
ور د غم پکښے را وخوت لکه لوږه د ما ښام
چا ډک کړه له شرابو د سپوږمۍ د رڼا جام
دے واخله دا محل دا تخت دا ټول ساز و سامانه
د غمه پټیږه نشته خوک پټ به شي له ځانه
خه ! ښنوله د جانان دے دا غمه د جهان یو سه
خه ځا ځکیه : دا دریاب له یو قطره دارمان یو سه
ته غم نے ته خندا نه بهار نے ته خزان
خو ما لیدلي خوب کښے دي د حسن یو جهان
چه دوب به په مستئ کاندي ستا غم او ستا ارمان
ما وے سر مې لوګي شه له تا سترګے مې قربان

راځه چه د دنو جهان له دواړه شور روان

اے شړنګه دګونګرو! درباب تال او شړنګ کښې ډوب شه

او اے اوراورکیه! دلمر په رنګ کښې ډوب شه!

دے رنګ رنګا ینولی یم ما د ترلو ته نه پرینږدی [۱]

او ما خپلی وزرے الوتو ته نه پرینږدی

## زه

اے د منطق فلسفو ملا!
اے دجنت د قصو ملا!

اے دجزا او قسمت ملا!
اے د دوزخ او جنت ملا!

مکره ما ته قصے د ژوند
ما ورم ته خه مستانقصے د ژوند

زه نه مالی یم نه خان د باغ
ماته ته خله ګړے داستان د باغ

زه خود شاتو مچۍ یمه
شاتے پیژنم او ګل پیژنم

زه یوه روه لولکۍ یمه
ستاته رانکل او تکل پیژنم

زه یو چپه د نسیم یمه
بس یو لمحه د ما نام پیژنم

زه یو قطره د شراب یم
شونډے پیژنم او جام پیژنم

نو ما ته خله کړے داستان د باغ
زه نه مالی یم نه خان د باغ

زه خود شاتو یوه مچۍ یمه
شاتے پیژنم او ګل پیژنم

---

[۱] دا شعر نامکمل غوندے دی.

زه یوه وره لولکۍ یمه　　ساعت له ساعته تلل او تلل پېژنم
زه خوږه شنګ د ګونګرو یمه　　پښې د رقاصې کښې تال پېژنم

زه یو بخرې د سوز یمه
غم پېژنم او وصال پېژنم

## تول او تال

په سترګه دې پردې دلیونتوب دي لیونیه!
ته نه پېژنې تول، ته تش تال پېژنې

ته سترګې دلیلی وینې لیلی نه وینې
ته زړه د سیپۍ نه پېژنې لال پېژنې

ته وینې د ګلاب سترګو کښې سور د ژړوندا خمار
نه نې جال الجهور وینې نه نې جنجال پېژنې

اوا! د آدم زویه اې ناز بینه د الله!
د زړو کالو باب کښې ته یو کال پېژنې

زما او ستا خبرې د ماتې ماشې واده دې
زه تول لیلی وینم ته نې یو خال پېژنې
زه ترک د لوګي ترک یمه د تول د آدم
ته نه پېژنې تول ته تش تال پېژنې

خو خاص دا دي دوه لیونو سترګو د پاره
زه جوړه به خپل تصویر کړمه د تېکو د غباره

# خرو

تو تو تو خرو: ووه تته تته

ارمان زمالنه لی فرنگ شنه جامه کړه کته
خبرے اوس پیشتنے کوی شمله نے ده بے بته

یو نوے اسلام راغی دخانانو د محلته
چه خوبن نے دی موټر داکوی هجرت دجماعته

تیز کرخی په پتر ولو کله بره کله بنکته
په بله تماخچه کرخیږی[*] ویریږی د پنډ ته

ووه تته تته خرو! ووه تته تته

ارمان زمالنډی نن په اسلام کښی دے ننګ
ارمان زمالنډی سبز کال کړی لی دی بادرنګ
ارمان زمالنډی کښی دی چالونه رنګ په رنګ
ارمان زمالنډ یه: کله پلن شے کله تنګ
ارمان زمالنډے وی کله بر کله بنکته

ووه تته تته خرو! ووه تته تته

---

(*) کرجی کرځوي۔

ارمان زمانه یه: لوی خیټه د هاتي
په نسل فتح خان او په خویونو چلاتي (*)

ارمان زمانه زړه کښې زړه کینه ساتي
ارمان زمانه نن کوي کاروونه خیراتي
زمانه حاجي شو نه سوی کانې مې ژوندلته

وه تته تته خرو: وه تته تته

زمانه غصه د نن غیرت د مسلمان کتي
مړ وله جنت کتي ژوندوله دا جهان کتي
زوی له نوکري کتي او خان له پاکستان کتي
د استاد رقیب دلال به نن تاله جانان کتي
په بله تمانچه ساقي ویرېږي د پیلته

وه تته تته خرو! وه تته تته

ارمان زمانه چه پوخ ورلکه زمری دی
په لنډه کښې ښه د ناره د خوګ بوره کښې نری دی
په فکر افلاطون دی په اخلاقو بنا پیری دی
په عقل لږ ښخین دی خو په ژبه چرچر دی
ارمان زمانه دی ډک د چل او د حکمته

وه تته تته خرو! وه تته تته

---

(*) فتح خان بريخ او د جلات مخبر باد فضي جلالات ته اشاره ده.

الله ! زما لنډې نن د ف رنګ نه ګټي خان
الله ! زما لنډې هم ګټي مصر هم ایران

وئ نیت م د کعبې دی خو لنډ ته د ترو ان
هندو د فیرنګی ته خوځي نه لګي هندوان

ارمان زما لنډې نن نه کوکړه دا و نه ته
وره تته تته خره ! وره تته تته

پرون زما لنډې چیرته لاړو په ویران ؟
پرون زما لنډې چیرته خوړل پردی توتان

پرون چه جهان وران ؤ، و زما لنډ وردان
پرون د چا په دین ؤ چه دا نن شو مسلمان ؟

زما د نبادی مشره ! ستاوی غم کنبے کوم ته ؟
وره تته تته خره ! وره تته تته

زما لنډیه ! واوره د بونډې لګي د خاره شم
دښمن ته م دښمن شه نوزه یار به ستا د یار شم

که ښځې د جانان کوي ته زه به ستا د پښو غبار شم
ته خار شه په وطن نوزه به ستا د سترګو خار شم

که سم نه شو روان چه که به زه د رومه ښکته
وره تته تته خره ! وره تته تته

# اسلام

اې په اسلام مینه! — اې سیاسي مؤمنه!

نن چې اسلام ستائې — ستا یې دې څوک پرون!

دا هغه مخ د تپوس — خونړي شنه پرونه

دا د عقاب پنجې — د ښاپیرک دړونه

نن د جنت وعدې — پروني دوزخونه

چار بیته هغه زړه — خونړي دې سرونه

اې په اسلام شیدا!

اې سیاسي مؤمنه!

ستر دې برګې بهر — برګ دې ایمان دننه

پرون دې خان نه کاته — نن دې اسلام کتې

په خرڅ د ننګ د پښتون — خپل ننګ او نام کتې

زما په وینو چا له — ایران او شام کتې

او د شرابو تاجر — ساقي او جام کتې

اې په اسلام مینه!

اې سیاسي مؤمنه!

څه به وي رب ته څېل — چه ئې د کوړ د ننه
تا د پښتون ستر گو ته — د تيارې جال جوړ کړ
او د جناح د خره — دې خر د جال جوړ کړ
غلاف کعبې له دې — د روايت هال جوړ کړ
ماله لندن کښې تا — نوې هلال جوړ کړ
او د بلا نه دې — ما ته بلال جوړ کړ

اې په اسلام شيدا!
اې سياسي مؤمنه!
گلاب نيوې نه شي
چړې د زور زونه

او د رقيب نوکر — نن ماله يار گڼې
زاغ نن بلبل گڼې — خزان گلزار گڼې
منا پيرک جنگ له وړې — د شهباز پلار گڼې
نن په بورا له گونګټ — د کلو مار گڼې
او د کافر نوکر — کړې د اسلام پالنه
اې د کنو وطنه! — اې د رندو وطنه!
او کوره شرمنس ته — کوي د شپون آواز
نن چه بانګو نه کوي — څه ئې کړ پرون آواز

دنفرت کربکو کښې          دمینې سوز او ساز
پرون عمل د یزید          اونن نامه د ایاز
لږ. خو پلار ے سوچ وکړه          زما ساده پښتونه !

اصلي مومن کړه بیل
له سیاسی مؤمنه !

څوک د عیسی په شان؟          مستی د دار اخلي ؟
څوک د نمرود کاله کښې؟          د موسی لار اخلي ؟
څوک د رقیب په محل؟          نوم د دلدار اخلي ؟
څوک تر ول جهان غورځوی؟          ستر ګې د یار اخلي؟
غماز لږ. وپیژنه !          ایاز لږ. وپیژنه!

اے دکنهو وطنه !
اے درند وطنه !

## سیل

څه چه لږ. سیل وکړو          بره آسمان ته ځو
د دے تیاره ے له کوره          د نورجهان ته ځو
څه چه مستئ له ورکړو          د بے خودئ وزرے
څه چه جنت ته ځو          څه چه رضوان ته ځو

دا د خزان تیارے — کړو به تیارو کښې دې

څه چه بهار له څو — څه چه بوستان له څو

دا د جهان خبرے — دا د ملنګ تکورے

تخت تاؤس ته څو — ماه تابان له څو

او د رقیب د کوڅے — د ربانۍ نه کوو

مونږ مستانه لیونی — کور د جانان ته څو

مونږ د جانان د شونډو — شراب څکلی دی

څکه مست مست مجنونان — نن بیابان ته څو

مونږ بو، بخرے د نور — لرے لیدلی دی

د ګل په شان په خندا — غیږ د خزان ته څو

راځه چه هیرے کړو — د دنیاګۍ قصے

څه چه لږ سیل وکړو
بره آسمان ته څو

۹ جنوري ۱۹۳۶ع

## ګلے وړے

د محمود غمګینې سترګې — ځان له چپل ایاز لټی (*)

که زما بیګانګی نن — ستا د زړه نیاز لټی

د لیلی سترګې زړه بوی — د مجنون د سترګو غم کښې

(*) لټی : لټوي.

نرګس مړاوي مړاوي ګوري — د بلبل آواز لټوي
راغلو جلد څه مستي ده! — چه الله ترے آدم جوړ کړ
که معشوق د مينے ساز لره — د عاشق آواز لټوي
نه داغم د فلسفي دے — نه دا رنګ د ليوني دے
د کونګر و شرنګار روان دے
حقيقت د ساز لټوي

## مسلمان

مسلمان هغه بنده دے — چه شونډے ئے تل موسکۍ وي
سترګے ئے د رڼا ئے — له غوړيو په پسل موسکۍ وي
سپين ايمان ئے لکه تنده — بے د ځانه هر څه سيځي
د جانان د دراير وته ئے — زلفے ول په ول موسکۍ کي
چه ئے زړه ډک د آرام وي — لکه بيغ د سمنله وي
خوله ئے ډکه د ګلونو — لکه باغ د صنوبر
راسے مست دا سے سرشار — لکه مينه د کافر
اراده کلکه بے کړے — لکه څوکه د خنجر
د وجود هر څاڅکي وينه — سره په مينه د دلبر
په سينه کښے ئے رڼا وي — لکه ځريکه د جوهر

په ژړا کښے ئې تاثیر وی
په خندا کښے ئې اثر

مست ئې بر په هر څه بر دی
لکه مست د سکندر

د ذره نور ئې لکه شمع
پړے او رونه بل موسکی دی

د بلبل د خولے آواز ته
داغوټئ د ګل موسکی دی

## رڼا د شمع کښے د سحر نور راغی

تاو د غرمے لاړ ماسپښینی شو
لکه د منی یخ باد د سینې شو

سرے د سترګو دیر خود ذره کم شو
او د فراق استاځی یخ د صنم شو

ساز کښے سرے نن د خاموشۍ خیزی
د هوش جنډے په کوړه د بیهوشۍ خیزی

بادشاه شرنګی شو د خپله کوره
د شفق سرے نکونه شولړه توره

او ستارے کښے شرنګ هغه د مابام نشته
سرے په سترګو کښے د خیام نشته

پښے د رقاصے خوبانے هغه نه دے
بانګ د بلال هغه بلال ئې نه دے

په جام کښے کوټ کوټ شراب که کمیږی
سپر خلاصیږی ګلاب کمیږی

او رڼا د شمع کښے د سحر نور راغے
باغ د بلبلو ته نوم د باتور راغے

د غوټو سترګو له خیال د خزان راغے
لړزه مستی لاړه او لړزه ارمان راغے

او د فراق سورے په وصال پریوت
ستوری راوختل او هلال پریوت

۴ مارچ ۱۹۲۹ ع

## پلوشه

زمانه د بخت د شمع ګړی یا به مړه یا به سوځم — یا به بیخ له د دریاب ځم یا به یا سره په چپو ځم

عجب زمانه عجیبه لاره عجیبه کاروان روان دے — مارو هستی په اوله بیائی که ورځمه او که نه ځم

## اګست ۱۹۴۷ع

نن انسان شو د انسان د وینو تږے — نن مجنون شو د جانان د وینو تږے

دا سړے روند په سترګو روند شو لوګے د تندے — چه ترې پورته شو حیوان د وینو تږے

دا محل د چا باچا د شان او شوکت دے — که دا پروت دے د بیابان د وینو تږے

دا قصه د یار د کور او استانے ده — که د ظلم پر داستان د وینو تږے

دا سړے نن چه بنا مار د ته پسخین ی — دا سړے تاو چه کړی جانان د وینو تږے

دا سړے قهر چه لمبه کړی خپلے سترګے — دا سړے خان چه دی دخان د وینو تږے

دا سړے رند چه د آدم په وینو مست کی — دا سړے شه چه کړی آسمان د وینو تږے

لیونیه! د مستۍ باغ ته تر تنبسته

نن د تندے مرے جهان د وینو تږے

## تول (۱)

جال نه دے د دام نه دے تول کبیږے تول! — یا به په روخان یار شی یا به شی پردول

یا به قلم یو سړے یا تق به دلته (۲) واوړے — جال نه دے د دام نه دے تول کبیږے تول!



---

(۱) د منګے په شان مزل. (۲) هغه آله چه مرغۍ پکښے نیولے شی، او که هم و ته ډیل کیږی.

# ارمان

ما د ګلو باغ کړلے د خزان کښے — د جنت خوب م لیدلے د هجران کښے

ما د ځکے په نخ هغه لال کتلو — چه موندلے شي په برج نو د آسمان کښے

او زما په ځوانۍ مست په عشق خود زړه — فرق و نه کړ په تصویر او په جانان کښے

زه په خپل ارمان مین دم په تا نه دم — ځکه ئے نیرومه په ارمان کښے

ته چه را غلے ستا د زلفو ارمان لاړو — ها مستي د مجنون پاتې بیابان کښے

ماله سود د وصال نه یا شو پکښے ورکه شو — هغه یار چه م موندلے و په زیان کښے

زه په غم مست په فراق باندے مل هوشه — مرم د تندے د ګلونو په باران کښے

پتنګ روند شو د لمر سپینے رڼا روند کړو — لولکئ ګل پسے ژاړي ګلستان کښے

د ځوانۍ مستي م شوله ځوانیمرګه
د جنت خوب م لیدلی د هجران کښے

# بکواس

راځه زما زړګیه یو به ته شے یو به زه — یوه ورځ لولکه او یو ګل د لالا

یو شړنګ د غورځنګ بګاړنګ د مستۍ — شو مسرور په ملغ په خندا خندا

روان شو جانان له پسه او سهرد — په نیاز په خرام په مزا مزا (*)

یا خوب به لګے په کټ د لولکئ کاوه — یا ته به داور اور کوه په دنیا

خو دوب په قطرے د شبنم کښے شو — او چت په ملغ په خندا خندا

---

(*) مزه.

# پلوشه

او د بنده مثال لکه خس دے — تو دشی لوګی وکړی رڼا کړی جوړه
لمبه شی وسوځی خاورے ایرے شی — بوره ابی پرے ژړا کړی جوړه

# دوه خبرے

نن مے ماته جانان وکړے دوه خبرے د مستئ
د فقیر کچکول کښے ګوره ملغلرے دے مستئ
چه ئے زور وُ که جمال وُ ماسره ئے په پښو کښے کینود
چه به زه ترے کړم ځیله مه لړے لړے د مستئ
د فراق سلو صدو لړو لمحه د دیدن بس دے
د غم زړ کاله ایرے کړے یو ځرے د مستئ

# کړے وړے

څه که ئے نه وینمه سترے سترګے خمارے — زړه ئے پیژنم د سرو سترګو خمار
نه کعبه مے دہ لیدلے نه پرے پیږنم(1) — نه خو پیژنم لولئ او لاله زار
نه مے حورے دہ لیدلے نه ئے غوارم — زه لیدلے شم سپوږمئ د دنما تار

---

(1) پوهیږم.

غریب خضر شوند لیواله د چینې کړ
ماله کوچ راکوی شړنګ دستار

لکه بیخ د سمندر دوب او خاموش دې
دا پروت دې د مستۍ بیخ کښې قرار

او پرته د قرار جرو کښې مستي ده
عجیبه مرګي نه ده عجیبه لار

په نصیب او په تقدیر مې برے وکړ
توکل مې شو قسمت مې د اختیار

په جنت او په دوزخ مې څه کار نشته
د دې دوارو بره مالیدلے لار

له جزا او د سزا نه بے پروا یم
خو پوهیږم په فراق او په دیدار

که غم و نه که فراق وی که دیدار وی
مستول کوی کنځل هم د دلدار

په خندا به شی غني په لمبو سور
په دې شنو سترګو که ستا پیرزو شو اور

## دنیاګۍ

دنیاګۍ څه ده غم او غوغا څه دې
سوے داور سوز او سودا ده

لیونوائی یاره خــره دا ده
چا جوړ کړے ځالے منه مشغولا ده

## ډالۍ

سترګے دے رنګینے دی نیازبینے دی مهینے
شونډے دے ترسکونے او خبرے دے حسینے

ستا سینه د ساز او د آرام یو خــزانه ده
ځي د مرچا شونډو له ستا ګوتے سپینے سپینے

اے دحاتم لورے! خزانه دعشق دے لوټ کړله

چاله لپے ډکے چاله پیښے پیښے

دا خود جانان د سترګو رنګ د زړه مستي ده

دے نه جوړ جنت دے او د حورو خولے وربښېنے

تا چه باغ تالاکړ د مالیار کوره له به څه یوسے؟

ته چه زړګے تش کړے نو د یار کوره له به څه یوسے؟

۲۹ جولائی ۱۹۴۶ع

## ګلے وړے

پښتو! تکی جنه تا ملا بابا دهوکه کړ
راضي شوے په پیټی د ګل ګلونه خبر نه شو

او پیرغړے جیران د کلے غبرګ کوی کله کاوان
به لا اله الا الله دا د تلونه خبر نه شو

منمه د جناح کاکا چه یوخ بنانګ له راغي
د دیه دکو تکه د ګولونه خبر نه شو

ګوره لیوني ته په مړه خیټه بوډا شو
د خولے او د ګوامو د سلسلونه خبر نه شو

## قصه

توره توره شپه د حجرې
توده توده د غم قصه

[illegible] سپینه شپه د ځوانۍ
سپینه سپینه د شبنم قصه

ښکلے ښیسته د امید دنیا
سپوره زړه د ستم قصه

| | |
|---|---|
| خوږ او مهین دی نوم د یار | مشکلی پسته د صنم قصه |
| ما ته قصه د پسرلی وکړه | نا ورم د دیر او کسم قصه |
| ما ته قصه د جانان وکړه | نا ورم د دیر او حرم قصه |
| ما ته موسکے مخ را واړوه | پرېږده د فضل او کرم قصه |
| وایه د رحم او نوړ خپل | مکړه د دوران او ستم قصه |
| زور او اور او شور دا | داده ستا د کرم قصه |
| شرنګ ستا غوړ رنګ د زړه | دا ده زما او صنم قصه |
| اور او خوږے سوز او ساز | څه د مستی څه د غم قصه |

مالا خندا خندا راځی

مه کړه د دوران او ستم قصه

# ګډے وډے

دیر نر زما لالا و خوچینی (۱) رانه خراب کړ

ملا پیستی ته تینګ و خفیرنی رانه خراب کړ

صاحب هلکر فتح خونے خیته فتح نه کړه

دے ترشے مسالے هندوستانی رانه خراب کړ

---

(۱) صوبه سرحد کښے بُورې ته چینی وائی . یو وخت چه بوره د پیښتنه ښوده دیو خو نو بیو پرمټ لوی رشوت او لالچ وُچه دانګریز او د هغه دپا دار و له خوا به د قومی تحریک مشکریته ورانه نے کیده . غنی د دے خبرے ته اشاره کوی .

او خان لالا م ورک ؤ په اسلام او په ملت
مرید بنه د جناح ؤ خوجینی رانه خراب کړ
کو ږه لیونی په دیر ځښې او لوے قاضی ؤ
قصے د آدم خان او د ږخانۍ رانه خراب کړ

# ځوانه

وران د گلستان دے آبلبله: د پښتون د باغ
نوم د رقیب لیک دے په هر بوټی د مجنون د باغ
خوار و زار ځکه دے بے هنره بے کماله دے
غوږ نے دی کانه لاسونه شل سر نے پر کاله دی
لال د دب دے ایرو کښے او مرجان پروت دے په خاورو کښے
زوے د شهباز ځکه ځمری خوری په سیل د داوړو کښے
پاڅه اخلیه: مستی توره او ایمان واخله
مشرق مشه او رهشه تنل رامشه او نوشه ځل جانان واخله
خار د دشنو بریتو شم غلام د غلام زوے نه
پروت په دوسی کښے نے که زر ځله ځلمے نه
توره دے را واخله ننگ پښتو او اسلام پورته کړه
لاخپلو مستو ستړکو دے نامه د غلام پورته کړه

پاڅه ننګیالیه! نن دلبر او جانان وګڼه

نوم د پښتون وګڼه ناموس د افغان وګڼه

ټول جهان حیران کړه د چل شان په تماشا

اے د احمد(*) زویه! بچیه د شیر شاه!

# سلام

نه ساز شو نه سوز شو — بس مې ژوند تمام شو

نه خوب شو نه شرنګ شو — نه یاد د ګل اندام شو

دا توره توره شپه راغله — نه ستوری نه سپوږمۍ لري

ځواني وه لاړه لاړله — یو ګوټ او خالي جام شو

یو ستوری د سبا لاړ — سور ګل یو لاله ؤ لاړ

سور لمر زیړ زیړ شو لو — نرې نرې ماښام شو

قصه د حسن هیره شوه — مزه د مینې تیره شوه

ملا بانګ د سباوې — آخر په سول خیام شو

مستي بې پروائي درکه — په خود ګښې بې خودي درکه

(او): ګوره لیونی هم نن

بادشاه ته په سلام شو



(*) لوی احمد شاه بابا (۱۱۶۰-۱۱۸۶ ق) چه ښه جګ سپېڅلی سرلښکر او د پښتو صاحب دیوان شاعر

# د ژمي ماښام

اوس د ژمي ماښام — د جړې شپه ده
پوست شبنمي باران — بهر وريږي
غاړه د اور او خيام — شروع قصه ده
د شاعر سره استاد — ښه مين غږيږي
تنګ او تکور د ژوند — ناز او مستي د جانان
شړنګ د ګوانۍ کښې پټ — شاتار د غم د مي
خندا مستي د ساقي — بت پرستي د ساقي
ستيني (۱) د مرګ سره — د کونګر د شړنګ د مي
اوس د ژمي ماښام — د جړې شپه ده
پوست شبنمي باران — بهر وريږي
يار شروع کړې ماته — د غم قصه ده

کله موسکې شي

کله ژړيږي

---

(۱) ستيني: ستايني هغه ساندې چه د مړي په سر يې ښځې وائي.

# ژوند

هر څه د رب او هم د رب — زه یو مابنام له راغلی یم

باغ او انګور میخانه دیار — زه خو یو جام له راغلی یم

مینه مستي او خمار د بل — رقص او خندا او سینګار د بل

ګل او نرګس او ګلزار د بل — زه خو تش دیدار له راغلی یم

زه د لولکې ورمې په شان — ګل او غوټۍ او بهار ګورم

زه لکه شمع بلیږمه — بښیست او مستي د دلدار ګورم

لوی سمندر د مستۍ له ما — څاڅکي د رنګ راوړي دي

زه پرې د لمر رڼا التموم — ما هم مشال بل کړی دی

هر څه د رب او هم د رب — زه یو مابنام راغلی یم

باغ او انګور میخانه دیار

زه خو یو جام له راغلی یم



# ربّه

اے په ښیست مینه جوړونکی دګلاب ربّه!
ستا ښکلے دنیا شوه دخاروی او دقصاب ربّه!

اے چه دما شوم ستر ګے جوړے کړے ګل په شان
ووکی او خوږے خوږے خبرے دبلبل په شان

زړه ئے پاک دبلبل دهر خیال او دازاره پاک
پاک لکه شبنم ؤ دګناه او د ازاره پاک

تا چه تا ته تهیت دفرښتو ښکلی سرونه کړل
جوړ چه دچا ستر ګو له تا ستوری او ګلونه کړل

تا چه دچا حسن له دخپلو ستر ګو نور ورکړ
تا چه دخپل خانه چاله مینه او سوز ورکړ

هغه محبوبه ستا آدم نه دے آدم خور کړے
آ ښیسته ګلاب ستا ګلاب نه دے اورے اور دے

هغه ستا دلاس ګل پروت په وینو کښے سمسور دے
ستا خلیفه ربّه! آدم نه دے آدم خور دے

تا چه چاله جوړ کړه د حسن او ګلزار قصه
درکړه مشغولا له دے د مینے او دلدار قصه

تا چه چاله ستورے او سپوږمۍ او ماښام جوړ کړلو
تا چه چاله مینه او مستۍ او خرام جوړ کړلو

سترګے نے دی پټے هغه نن د زهرو پیمنے څښي
ستا په نامه ربه! نن سرے د سرو ویښے څښي

## اول سترګے ستا د لیدو خورا !

زه خو ساز او سرور او خمار پیژنم
زه لیلی پیژنم یا ایاز
زه خو غم او غرور او ژړا پیژنم
زه نه جانان پیژنم او نه نیاز
دے نسکورو شکور ته د نور قصے ؟
د جنت قصے د جلال قصے ؟
منږ کوږے ته د زهرے قصے ؟
د ماښام قصے د هلال قصے ؟

زه خو ګل او چمن او شراب پیژنم
زه بهار پیژنم او خزان
زه خو شرنګ او رنګ او کباب پیژنم
نه ګناه پیژنم نه شیطان
دے شکور نه ستا د لید د طمع ؟
دے نسکور نه تاته د تلو طمع ؟
اول سترګے ستا د لیدو خورا
بیا کوه د مینے د طمع

زه خو ساز او سرور او خمار پیژنم
هغه خوړم ربه! چه نے ښکلے شم
زه خو شرنګ او غور خنګ او ستا پیژنم
او جانان هغه چه نے لید لے شم

زه خو ناز او مکیز مسخره پېژنم — ښکلی خط پېژنم ښکلی خال
زه خو سترګې پستې او خوله سره پېژنم — او نګینه خندا د وصال
دې نسکوره شمکو ته د نور قصې؛ — د جنت قصې جلال قصې؛

دې کونګو توته د باتور قصې!
د پرواز د بنیست او کمال قصې؛

زه سترګې خوږې په ارمان پېژنم — او نوې تروږمې د ماښام
د سرو شونډو خندا د جانان پېژنم — د ساقي په سرو ګوتو کښې جام
زه خوست او منت او خندل پېژنم — نه ګناه پېژنم نه شیطان

زه خو غم او صنم او ژړا پېژنم
نه دعا پېژنم نه اذان

## رباعی

که پتنګ د لمر رڼا نه شي لیدلې — ګنهګار شو که په شمع شو شیدا!
زره کښې چونګ په ایله د خدا د رڼا خلې شي — چې خاکې که پکښې دا د نور دریا
ځنګ ځنګه په یو کوټ کښې دا جهان او آسمان اوچوم — وو شبنم څاڅکو کښې ځکرو سینه کړې نعره د او رحیم

بیالا دا دې د پاسه په حساب او کتاب کړي — د رندو سترګو بادشاله به ثنا او عذاب ورکړي

ته به زما ته به د مستۍ او د خزان ته به! اے د ټنګو د کور ګرو د جانان ته به!

اے د ښکلو سترګو د خمار او د ارمان ته به! اے د کشمالي او خیتور او د ریحان ته به!

خنکه خنکي به یو کوټ کښې د جهان او آسمان واچاو؟

د شبنم غاخکي کښې خنکه د سیلاو د نو دوران واچاو؟

۱۳ نومبر ۱۹۴۲ع

# یاد دے دی

اے د پښتو سترګو ښاپیرۍ! چه ستا دی یاد که هیر؟

هغه دوزخونه تیر او هغه جنتونه تیر

یو نغښرے نور چه به کړ کل جهان د نوره ډک

یو رنګین نظر به غمګین زړه کړ د سروره ډک

ما ته به سپوږمۍ کړے د صبر تسلۍ قصے

ګل به راته کړے ښانا مې کښې د لولۍ قصے

حسن د ځوانۍ او سپېلۍ مینه، سپوږمۍ، زه او ته دو دیو

وصل او مستي جنت جهان او زه او ته دو دیو

اور د جهنم د خوسیځل پاسته د ساز مے

لاس ئے د جلات د خو ضاته نے د ایاز مے

وے به هر نظر کښې د سازونو خزانے پرتے

هره اشاره کښې د عمر د نو ترانے پرتے

زړونه ښت په نور نکه لیده وي په کاکو کښې پټ
مرګ ؤ په خندا بانګ د ژړکو به نارو کښې پټ

ساز ؤ بیخودی ده سوځیدؤ دوجهان ترې ګډ ؤ ډرک
زه دومره اوته وې لکه ستوري اسمان ترې ګډ ؤ ډرک

وخت ؤ بې حسابه بې پایانه سمندرونه ژوند
ښنو کښې جهان پروت ؤ بینیازه قلندرونه ژوند

خیال به د نسیم په شان ګلونو له ما بنام له ته
عقل مرور د حورو سازله او خیام له ته

تن کښې مې ژړې نه ؤ یولا ل ور د شغلونه ګډ
ستر ګې د هر رنګه، هر اندام د ولولونه ګډ

واره دنیا وه ماته باغچه د دلربا د کور
هر ستوری به لاره ماته ښو دله داشناد کور

اې د ښتو ستر ګو بنا پیرۍ: چه ستا دې یاد که مېر
هغه دوزخونه تیر او هغه جنتونه هیر

۲۷ اکتوبر ۱۹۴۶ ع



# دنیا

ما د نغښې پښو کښې شهزاده په ژړا ولید
ما مړ بت ته ژوندون ومیت په دعا ولید

د بې نیازه سترګې د مستۍ د بېخودۍ ډکې
وچې ترې مستي شوې شوې د سپي په ټکلي

لاس مې سکندر هم غځولی په سوال ولید
پروت د منات پښو کښې هم په ذکر بلال ولید
ما د نغښې پښو کښې شهزاده په ژړا ولید
دا مستانه زړه هم د دنیا په سودا ولید

۲۵-اکتوبر-۱۹۴۶ع

# ژوندون

دا ژوندون دے دوه ورځے
خلاص به شي او تیر به شي
دا غنې به خاورے شي
ورک به شي او هیر به شي
دا شونډے تودے خوږے
دا د غم صنم قصے
دا کاروان روان روان
ځي به په مخ تیر به شي

# جنتي ته

ته چې جنت کښې مزې د دنیا لټې
د حورو سترګو کښې د ډمو خندا لټې

ته په اسمان کښې وږمې د دېران لټې
ته په سپوږمۍ کښې تیاره له مکان لټې

ته د عاشقو عاشقي او مستي نه پېژنې
لېونۍ نه دلربا پرستي نه پېژنې

تا د دنیا د پاره، مینه د جانان ورکړه
مجنون حلوا کښې، بېخودي د بیابان ورکړه

لاس دې ګدا ورکړ د، بادشاهۍ لاره فقیرۍ خولې
یا زما خانه، دې یادګونډ وزړه دې پیر شوې

تول خیته خیته شوې مستي او جانان نه پېژنې
تول بډ بډ شوې، مرګ او میدان نه پېژنې

زما امیره، تالې ختها اتو ګرې خور شوې زما
زما سرداره! ته مې وظیفه خور شوې زما

قسم په هغه رب، چې ته نې د خلوت دعوه ګیر

چې نې د حورو غلمانو، د جنت دعوه ګیر

تور م راواخله، خیته هیره کړه میاڼ ته څه،

مستي پیتي مشه، په مستۍ، کور د جانان ته څه

لنې دوبیزې، په پیتي کښې په حلوا کښې یار م

جنت دې بابلو، د ټیپرو په سودا کښې یار م

د دې کړانه ده، د لوړې نه کاکا جنتي!

تپ زمرې بنه دې، له ځې مزې زما جنتي!

د سامړي له زړه بنه ده، ملنګي د موسی

د زر پرست نه، یار پرست بنه دې زما جنتي!

قسم د حورو په مستۍ، او په خنداد یار

قسم په شرنګ او په نسیم، او مشغولا د یار

قسم په سترګو په بنایست، او په ځوانۍ د دلبر

قسم په ساز او په سرود، او په ثنا د یار

ته سجدې زړو ته کړې، ما ته نوم د یار اخلې

شغفو کښه کړې، په بدل کښې د کل خار اخلې

راځه چې زه د ته، جنون او مستي د نبیمه

راځه چې زه د ته، محبوب پرستي د نبیمه

سرداري نه کيږي د توره د مستئ نه بغير
الله ليدے نه شي، د حسن پرستئ نه بغير

سکندري قلندري، دواړه سړو د غوارې
دواړه مستي او ځوانمردي، خدا غرور غوارې

ته خو جنت کښے مزے د دنيا کوره
بربنډ حورې، او تر سکو نه حلوا کوره

د شا تو نهر او کنار ول د شراب و ډک
نمکين غلمان او ښانک د کبابو ډک

ياره چه شونډ نيني (*) ، نو حورے به په څه ښکلوم؟
چه کو لمے خالي نه شي، کور کورے به په څه هضموم

## واوره جنتي!

جنت يو حال دے، د عشق د مستئ يو رنګ
جنت يو شرنګ د لنګرو، د ځوانئ غور ځنګ

جنت نازک دے، د ګل د ارمان نه هم
جنت ښيسته دے، زما د جانان نه هم

جنت دريا بيړ، د مينے او ارمان دے
هر د قطرے سپوږمۍ، هر څاڅکي جهان دے

(*) نيني: نوري.

# شان او شړنګ

فلسفي:

داسوز او ساز داشان او شړنګ
یو سوې دوخت داخیال او رنګ

داام بې کاروان داسحرما بنام
داکوټي او شوندې اورې او جام
امید او خندا اوژړا او خیام

داګل داساز داشان داشړنګ
یو سوې دوخت داخیال او رنګ

دازور دا زر دتورو پرق
دعا او ژړا اودحورو پرق
دا برق دسرو شونډو مغرورو پرق

داچال او جال داخیال او رنګ
ارنګ دورنګ سپاری تهنګ

دا بنکلي کاته په نیاز کاته
دا ورو نازک په انداز کاته

دالرو کښې تا دسپوږمۍ دمخ
نرګس کښې پټ پټ د اياز کاته

دامینه رنګینه داشان اوشرنګ
یوسوری دوخت دخیال اورنګ

داناچ دلولکو بهار اوګل
مانښام اوخیام اوستار اوګل
ګلزار اوچغار اوخمار اوګل

داسر اوسرور اوشان اوشرنګ
یوسوری درخت دخیال اورنګ

## شاعر:

نامرد: ته ستر کې دیاره وینې
دستر کوسره وینې خاره وینې

ته تنګ او تکور اوسرود وینې
مستي اوجنون د دلداره وینې

داسوز اوساز داشان اوشرنګ
یوتار د دلدار دخمار اورنګ

دانبکلی کاته په نیاز کاته
داورو نازک په انداز کاته

دالړو کښې ، تا ،    د سپوږمۍ د مخ
نرګس کښې پټ پټ    د اياز کاته

دا مينه رنګينه    دا شان او شرنګ
يو تار د دلدار    دا خمار او رنګ

دا ښکلي کاته    په نياز کاته
دا ورو نازک    په انداز کاته

دا ناڅ دلولګو    بهار او ګل
ګلزار او نسيم    او ستار او ګل

سرې شونډې د يار    د سپرلي په شان
ژوندې کړي مستي    او بهار او ګل

دا سرا و سرود    او شان او شرنګ
يو تار د دلدار    دخمار او رنګ

سپړ دل د ګلاب    او خندا د يار
کاږه کاته    په رضا د يار

انداز د مستۍ    او تول د غم
سرې سترګې او شونډې    زما د يار

دا مست ماښام کښې    د ژوند غور ځنګ
يو تار د دلدار    او خمار او رنګ

دا اوښ کاروان    دا سحر ما بنام

دا کوټې او شونډې    او مے او جام

دا تله په امید    په ایمان او زور

دا تله په مستۍ    پروا نه د خیام

دا ګل او ساز    او شان او شرنګ

یو تار د دلدار    د خمار او رنګ

## ترانه

نه ما سره زر نه مرجان شته دے

نه ما سره شته د لالونو ډیر (۱)

جانانه! جانان د ملنګ ئے ته

ملنګ سره وی د سوالونو ډیر

ما تاله دالۍ (۲)، راوړے ده

وطنه! مستی او ځوانی تنها

سره وینه توده او زړګے نر

نر توب او پښتو او خانی زما

زه خان او جهان په دلبر ږدمه

زه پښتو ګڼے جانان ته ځیګر ږدمه

---

(۱) ډیری . (۲) دالۍ : تحفه، سوغات .

زه مست داسے مست ننګیالی یمه
فقیر ته کچکول کښے خپل سر ږدمه

زه مست او سرشار او مجنون یم    زه هر دے ننګیالی د پښتون یم
لوګے شه له تا دا خوانی زما    مړتوب او پښتو او خانی زما

زه سر او سره زر صدقه ورکوم
دستګو د نور صدقه ورکوم
زه زړونه او خوانی تالا کومه نن
مستی او غرور صدقه ورکوم

ماسره خپل جانان ته بښلے دی    خمار مې رحمان ته بښلے دی
خندا په دلبر لوګے کومه زه    ما هوښ بیابان ته بښلے دی
زه جوش او جنون لوګے کومه له یار    زه تمنګ او تکور صدقه ورکوم
زه ښیست او مستی ستا په پښو ږدمه    زه مینه او زور صدقه ورکوم

زه ورک لیونے د منصور په شان
لیلی له په تمیک کښے قمر ږدم
زه مست داسے مست ننګیالے
فقیر ته کچکول کښے خپل سر ږدم

خو نه ماسره زر نه مې جانشته دے    نه ماسره شته د لالونو ډیر
جانانه! جانان د ملنګ نے ته    ملنګ سره وی د سوالونو ډیر

# شاعر او ليلى

## شاعر:

دا ژوندون او مستي او خندا زما
دا خواني او تازه دے يو دوه ورځے
دا مې سترګو کښے ستا د ښونا و رنګ
زور د تور پلو دے يو دوه ورځے

اخر تلونکے مغو تيارو ته يم
چه د کومو تيارو نه راغلے يم
اخر خم به بيا هغو کے تو له
کومو کے تو چه زه غورځولے يم

دا خواني لکه د سپيلي ماښام
يو لمحه د سازيو قطره د نور
دا خندا امستانه حيوانه ستا
يو جهان د رنګ يو ذره د نور

ستا د سترګو جانان مستو وخوند
ستا د ښونا و خمو او معزو وخوند
ستا د کتو پټو او غمو وخوند
کرنکيه د شته اوه او حيو وخوند

دا دستر گو بنایست او د شونډو خونډ
او دا سوز او ساز او ارمان زما
د نسیم چپه او د ګل غوټۍ
او مستانه حیرانه جانان زما

دا یو تلونکی تلونکی کاروان دی
یوه قصه ده چه وشوه او تیره شوه
دا یو ښکلی ښکلی تصویر د خیال
یوه تپه وه چه وشوه او هیره شوه

باقي یو مغنه د تیارو جهان
باقي یو مغنه، د دنیا وطن
باقي یو مغنه، خواني داستان
د خوبونو او د خندا وطن

## لیلیٰ :

یوه لپه تورینه واخله د ګ دریاب د مینی بیبزی(۱)
دا نه ولې په ژړا وې، چه پیاله یم دریاب نه یم؛
تو اجهان د نور د ګ دی هکله : خان د نور د ګ کړه
دا نه ولې په سلګو وې چه سپوږمۍ او آفتاب نه یم

---

(۱) بمبېږي .

# اے نایکه! (۱)

اے مالیاره د دے چمن! — اے نایکه د دے جهان!

اے د نرگس او نسیم زېه! — اے سرداره د دے مکان

دا خلیفه او مجنون ستا — ستا د شرابو او خورو خان

دا ستا د گوتو جوړ گلاب — ستا د چشمانو مخمور وشان

تا خو جوړ کړے د مینے له — گل دے کا ته بیابان له

ته خود مینے لیواله وے — تا خو عاشق کا ته خان له

تا خو بلبلو او رحم له — سترگے بنیسته د لیدو کتے

تا خو خمار او خوږ والی له — شونډے د پېژندو کتے

تا خو خپل شان او کمال له — ورکړه موقع د کمال او شان

ځکه دے سترگو دیار لره — ورکړه رنا د جلال په شان

تا خو په لې دلربا کړه جوړه — ستوری سپوږمۍ او سبا کړه جوړه

تا خو انی مستی ورکړه — تا خو شیرین او لیلی کړه جوړه

خوږ روند او کوږ شمکوږ ممه — گل او بهار او جانان نه وینم

---

(۱) بادار - څښتن.

زه د غضب او سرو اوږو ډک    د ننګ او مستۍ او خمار نه وینم

تاکره جهان د خندا نه ډک    ماکړه د شور او غوغا نه ډک

تاکړه سرور او مستۍ له جوړ    ماکړه د غم او ژړا نه ډک

ماکړه د ورونو په وینو رنګ    ماکړه د خوار د آزاره ډک

ماکړه د ظلم او زور وطن    ماکړه د مرګ د غاړو ډک

تاکړه خوانۍ او دلدار له جوړ    تاکړه خندا او خمار له جوړ

تاکړه سپوږمۍ او ستورو له    ماله پسرلی او یار له جوړ

خو ماکړه د وینو او چغو ډک    ماکړه د سوز او ارمانه ډک

تاکړه سرور او مستۍ له جوړ    ماکړه د غم او ژړانه ډک

اے مالیاره د دے چمن !    اے نایکه د دے جهان !

دا دنیاګۍ دے سمبال کړه    دا دنیاګۍ دے په تلو ده خان !

ګوره ! علم او زور دے خوري    ګوره ! هنر او شعور دے خوري

نور دے د آدم خور شولو

وګوره ! ورور ته ورور دے خوري



# ژوند

چه خمار مستي ترې وځي    شراب نه ترخې اوبه وي

چه سرور غرور ئې نه وي    دا ژوندون ژوندون د څه وي

چه د مینې زړه شي پاتې    لکه ګل وي رژېدلې

یا شغله یوه د نور وه    یا یو موتې د خزلې

چه په ژوند کښې سختي نه وي    لکه بې مالګې طعام

چه په خوله کښې خندا نه وي    لکه ډک د خاورو جام

چه خوانۍ کښې تکلیف نه وي    لکه پټه میان کښې توره

نه ئې برق شي نه شرنګ شي    په زنګونو شي نغښوره

چه آرام وي او سمام وي    او یاري په جایداد وي

خوږ نوم د شیرینۍ دی    مړه تو پرو فرهاد دی

چه ئې سر په خندا ورشي    هله خوږ راز و نیاز شي

چه د سپینو تورو جنګ شي    ښکاره هله کښې ایاز شي

ژوند که تش فیر نی تخیل وي    دا خوږ به هم شي ختلې

که تش نسل زیاتول وي    دا غوئي هم شي کولې

ژوند نه خیته نه ماڼۍ دی　　نه ډیرۍ د سرو لالونو

نه یاران نه معشوقې دی　　نه باغونه نه ګلونه

ژوند خوتله دی په یو مخه

غورځیدل او پاڅیدل دی

تکے سوز او تکے ساز دے

ښه خندل دی ښه ژړل دی

ژوند په سترګو د عاشق کښے

پلوشه ده د خمار

په صحرا کښے لټول دی

د آشنا د کوڅے لار

حیدرآباد جیل
۱۱/۸/۱۹۴۷ ع



# غزل

مینه مینه م کوله خبر نه وم
چه د ورځے مازیګر او ماښام م شته

لکه زرکه د سپرلی دم په چرچقو
خبر نه وم د ښکاری سره دام م شته

دنیا ښیښے بنا پیری په بستر پروت وم
خبر نه وم چه رقیب م په بام م شته

د ساقی په سخاوت باندے مدهوش وم
خبر نه وم تشنیدنے د جام م شته

سپینه شمع د محل په خندا وائی
د رڼا سره د سولو سلام م شته

داویل لیونے دک د ریاب له لاره
آ ورور بل چیرته یو ښکلے مقام م شته

خوږ خوږ چه د ملا دروغ معلوم کړو
دی وئی حلته مستی انتظام م شته

حیدرآباد سند

# عبادت

د ملا عبادت کسب — پاځیدل او کیناستل
د حلوا په ارمانونو — تــل الله الله کول
د ملا مینه عجیبه — په پیتی مینیدل
او د حورو لمغــرو ته — د خــر چوکو منډیدل
د صوفي عبادت ویرد ے — سوځیدل او ژړیدل
د رحمن رحیم د نوم نه — رپیدل او ویریدل
د صوفي مینه عجبه — د زړه ګل مړاوے کول
بے کنار دریاب د حسن — په کوزه کښے بندول
د زاهد عبادت چرے — سوال منت ژړا کول
په جنت او دے دنیا کښے — د فایدے سودا کول
د زاهد مینه عجبه — په خپل ځان مینیدل
د دریا سپی جوته کړے — دلربا له ورکول
د غني عبادت مینه — ځان جانان کښے ورکول
د مینو سترګو شړنګ ته — ګډیدل او خندیدل
د غني مینه عجبه — تول بیلاټ(*) هیڅ نه ګڼل
دا خپل ځان او جهان واړه — یو خمار کښے ډوبول

(*) بیلاټ، بالکل۔

# دا ایلم توتیان

چا بند کړي دي پنجرو کښې　　دا ایلم[1] دسر توتیان



چا عقاب په لاس کېنولې　　دمرز هسې چغولې

چا منصور په سرو اوسپینو　　اوخوږ وباندې غلولې

چا قسمت په زور تړلې　　دګوډۍ هسې لوبولې

نن دکومې بادشاهان دي　　سکندر او شاه جهان

څوک څېولې[2]، شي کوډ کښې　　سمندر بې پایان

سیلاب چا دې منع کړې　　په بندونو دشنو شګو

دقسمت په کوډ کښې نښته　　شمیر د ډیرو او دلږو

بادشاهي لښکرې اړې　　تل د وړو او د ترږو

فقیري چې فقیرک وي　　بادشاهي ترې شه قربان

چا بند کړې دې پنجرو کښې　　دا ایلم دسر توتیان

چا سرود په لاس کېنولې　　څوک مستي شي سوځولې؟

---

(۱) ایلم: دسوات په سیمو کې یوه هسکه غر دی. (۲) څېولې: څایولې.

د بهار ولولې څوک شي — څوک د پښو لاندې کولې؟
ګلګونه ژوندي مړه کړي — ژوند څوک نه شي مړ کولې
چا د بوټين منع کړې — ښه ګلونه د ريحان؟
چا بند کړي دي پنجره کښې — دا ايلم د سر توتيان
بلبل ناست بند دي پنجره کښې — د سپرلي خوبونه ويني
په شړشم زيړ ميدانونه — د نرګس ګلونه ويني
سره ګلاب مست او خندان — د لولو پرونه ويني
ولي (۱) ريبارته راشه نو — دا پيغام د غني خان
څوک اچولې شي کوزه کښې — سمندر بې پايان؟

# سزا او جزا

هيڅ په پته دې پوه نه شو — د سزا او د جزا
تا ته يو دې لويه خدايه! — هم خندا او ژړا
څوک ښيسته ځواني کړې خاورې — په يو خيال باندې مين شي
څوک غمونه ويني وڅښي — چه په مال باندې مين شي
څوک غوټه په رنګ او تال کښې — په يو خال باندې مين شي
څوک مدهوش په حق او نور — په هلال باندې مين شي

---

(۱) والي.

اخو: ستا سپوږمۍ هر چا ته خاندي    که زهري دي که بلا

هيڅ به پته دې پوه نه شوو    د سزا او د جزا

څوک په بېړيو ستر ګوډ ډوب شي    سمندر کښې د غرور

څوک په تخت لکه فرعون    ناست دي خاندي په سرو

څوک په مخکه پروت ملنګ دي    ياد دي قيصې د لوږې

څوک په وينه مور خندانه    څوک په مينه کښې رنځور

روند قسمت د رزق دي نه کړي    د فرعون او د موسیٰ

هيڅ به پته دي پوه نه شوو    د سزا او د جزا

عجيبه ده فرق نشته    د غرور او د نياز

عجيبه ده بيلتون نشته    د يزيد او د اياز

عجيبه ده انعام يو دی    د تپوس او د شهباز

ما ته واره چغې يو دی    که د وير دی که د ساز

ما ته يو دي لويه خدايه!    هم خندا او هم ژړا

هيڅ به پته دې پوه نه شوو    د سزا او د جزا

يو خوا ښې سترګې شاهين    پنجو کښې پروت ژړېږي

بل خوا زير سترګې شغال    په ټلو کښې لوغړېږي

يو خوا تنګ مينه او توره    وهل ډېر سو خاوري کيږي

بل خوا چل د موکه دروغ    را خورېږي زړغونېږي

آسته غلی یې لا په څه شوې؟ د قسمت او د سزا

ماته یو دې لوبه خدایه؟ هم خندا او هم ژړا

# ماتم

زلفونه دې غم له جوړې ستا دا سترګې د غم ډکې

چاته بړبړه اړې د افسوس او ماتم ډکې

پۀ ژړا باندې چا نه دي، سره ماڼۍ آبادې کړې

پۀ ښېرو باندې چا نه دي، مړه پېرۍ آزادې کړې

داستا کوټې د پولادو تش دعا زارۍ له نه دي

داستا مټې د مړانې جوړې دې خوارۍ لمنه دي

داستا زور پښتو او توره، ستا دسره وینې غورځنګ

چه اښکلی سره ټیټ شي، څو ښکاري ډېر بد رنګ

پاڅه پاڅه چه وکړو ستا دسره وینې غورځنګ

ته آفت ئې ته غضب ئې د سور تېل یو ګوزار یې

ستا دا لاس د قسمت لاس دې، ورانول جوړول دي کا

ستا پۀ سترګو کښې اجل دې، وګړول سوځول دوی کا

د فرعون د کور پۀ شان ئې د احصار خاوره ایرې کړه

دا مغرور سر تیس نس کړه د غرور ذره ذره کړه

پاڅه وښیه دنیاته دپښتون دچو ننګ
پاڅه وادرځه شغال ته ، دویستلو تورشرنګ

## پلوشه

زور شومه زور شومه مسلمان نه شومه
ارماني ډیر شومه
خوپښیمان نه شومه

## شاعري

دسکرتو بیخ م وښکه سرم خوړ که په کړ ولو
دیر مسره نه م رایاد کړه یو هم نه دی د یاد ولو
نه تپه شوه نه چاربیته نه غزل نه نیمګۍ شوه
نه قصه شوه نه بدله نه ساقي شو نه کوکۍ شوه
شاعري هم یارانه ده نه په زور نه په زارۍ شي
نه په چل نه په هنر شي نه په مال نه په خوارۍ شي
شاعري لکه باران دے کله تنده کړ زهر شي
ناګمانه داسے شړق شي چه صحرام سمندر شي
کله نرم نرم پشم پوست نازک نازک ښیښین

د نسیم په شان مستانه
د مخمل مسے مهین
کله ښه د ننه شیبه شی
په اوږده صحرا درینږی
کله تور باران د ژمی
نه کمینږی نه وریږی
کله شر د پشکال شی
چرته لمر چرته باران
عجیبه لکه د ژوند
خه خفه او خه خندان
کله داسے سوکه راشی
باغ چمن شی کربلا
لا د خاورو وتی نه وی
چه بیا خاورے شی لا لا
کاش چه وی زما په لاس کنبے
د وږمے غوفر ښنتے
ما به هر وخت ښکلے ښکلے
سپینے لړے راوستے

زما بنام به م جوړ ولو | په قبله د بوډۍ تمال
زما درخ به م ستايلو | د اشنا د زنې خال
ولې څه وکړم جانانه | واک د بل اختيار د بل دے
دا په تا مينې سترګے | د دوی نور خمار د بل دے
دا چه ته پرے راته خاندے | د دے سرو شونډو دے جار شم
د دوی نښيت مستي د بل ده | د دوی سره سينګار د بل دے
(او بس:) دا دومره وا‌ورم بس دے | چه زه ويم د ته غزلے
ته نښيسته په پښتو ست رګو | راته ګورے غلے غلے
چه سات ګړي مشغول شو | بيا به څو زما بلبلے:

موږ له تورم اوږد د وشپه ده
دی د ما دادیو ے پلے

حيدر آباد جيل
۲- ستمبر- ۱۹۴۹ع

# ټک

ماله قصه د دروغو تا ته وخوړ و قسم
بے وفا ته يے م هسے تا ته وے صنم صنم
ستا معصومو سترګو وکړه په ټکۍ باندے اعتبار
لکه ونيسي ماشوم چه په خندا خندا بناما

ما چې ستا په سرو لبانو قسم وخوړه ما بنام
د شرابو په نامه مې درکړ ډک د خاورو جام

ستا معصومو سترګو نه دې لباسي سترګې ليدلې
خکه زړه پکښې روښانه شوې د مينې ډيوې بلې

زه وم غل د دوو شلخکو تا د حسن دریاب راکړ
ما په چل چړنګ د کولو تا د مينې سيلاب راکړ

تا دخپل ايمان په زور زه کافر کړم مسلمان
زما زړه کښې دې کړل خاورې د تکي ممه بوتان

ستا د شونډو غلا له لاړ وم خپل خيګرم پکښې بايله
د خوارۍ اوښکي جمع تول دفتر مې پکښې بايله

جام مې ورې وې کوت له دوب د دریاب کښې د سرو د شوم
د منصور پېښو له لاړ وم ليونی شوم زه منصور شوم

ليونی نه زړه کې يو وړ، نازنينو، مو سکو شونډو
غلا له ته په داګه واوريد زړه نې وڅاوډ په منډه



حيدرآباد جيل
۱۲- ستمبر ۱۹۴۸ ع

# ګډې وډې

یاد مې باندې کړې دې — خیال پخوم پلاو
ځان له سیخکي وریتوم — د زړه داور په تاو
ناست لکه منږک یم — جیلخانه کښې په دې ماو
څوک به ترې خدایه ! — د قسمت د پیشو میاو
خلاص کړې نه په چل شو — لیونی او نه په داو
ګډ ئې په ګلزار کړو — نصیب بې موسمه لاو (۱)
کوره کشمیري ته — په پښتو کوي دباو
ګال چې شي کوني ، بغ
همه مرغي ونې (۲) د تلاو

# پلوشه

کعبه جوړه ابراهیم کړه
وایه څوک لوړ شو او چت شو؟

زه جوړه کړې بیت الله
وایه وایه اې ملا!



(۱) لو. (۲) ونې.

# لکه واخلي چه ماشوم

لکه واخلي چه ماشوم — ډک شکرې د سرو ګلونو
خاندي چغې وهي غړزني ئې — پسې پسې په موجونو
دې په غاړه وريته خاندي — خو سيلاب ئې ګلاب يوسي
نه په زور د سيلاب پوهيږي — نه په قدر د ګلونو
داسې ما داخپل جمدون(۱) — د مستې سيلاب کښې لاهو که
په خپل لاس م ځان بندي که — د خو قسمه دوزخونو
لکه واخلي چه ماشوم — ډک تالې د سرو اوسپينو
په خندا خندا ئې نولي(*) — په کوڅو په بازارونو
غله والي واه واه د نرزويه — څه سخي ارسلاخان ئې
دې نه زور د دولت وينې — نه دردونه د غمونو
داسې ما داخپل جمدون — ژرک(۲) که خاوره که ايرې که
ځان م وتړه په خپله — د غضب په زنځيرونو

---

(۱) جمدون ، زړه دون . (۲) ژرک ، ژرګ . (*) نولي = لوټي = شيندي.

یادا ژوند بیللی جنګ دی

او زه یې پهلوان نه یم

ما خو هیڅوک هم اُونه لید

چه زوره ور شو په غمونو

زه لا ورپسې نه وم د خوبه — چه زیړې مازیګرې شو

چه ئې زه په قدر پوهې شوم — ګلزار تش وو د ګلونو

اوس نه رنګ شته نه مستي شته — نه سیلاب شته نه ګلونه

دیو خوب لیدلو وو تیر شو — ژوند شو دک د ارمانونو

باغ د ګلوم تالا شو — دالونو شګو رم تش شو

دالا واوره ملاجان — کئ (*) تنګ تنګ د حسابونو

وخت او ژوند د غم تقدیر دی

دیوا اوریې بل له بوتلم

دا جمدون وو که یو دام وو

داوردونو د غمونو



(*) کئ: کوی.



# تبسم

څوک لیونی شي | څوک لیونتوب شي
څوک شي په خوب ویده | څوک رنګین خوب شي
څوک احرام وتړي | مخ په قبله شي
څوک جلال واغوندي | پاکه کعبه شي
څوک مست بورا شي | مسته لولۍ شي
څوک رنګینه نیازبینه | د ګل غوټۍ شي
څوک یو د درد تصویر | د غم قصه شي
څوک ے په مینه مینه | په ننداره شي
یو څو ساعته د رنګ | د خندا تېر شي

اخر تیاره راشي
او واره هېر شي

# بیا

قسمت مِ روند جولا دے ناست کړے (۱)، تهٔ پهٔ آرام
دَ منو بلو عجبه تنسته بُـدهٔ روانـــه

د وخت ملګو چلیږی زر سپنهی (۲)، بهٔ شی تمام
خبر نهٔ یم داخهٔ له او داخهٔ جوړی زما نه

زهٔ ګرځمهٔ چاپېره تپوسونه کوم مدام
دَ ګل نه، د ساقی نه، دَ کتاب نه د ملا نه

داخهٔ له دے جوړ شوے دومره اوږد انتظام
داخهٔ وی چه ژوند راوړی او مرګ یوسی دُ دنیا نه

دا ګله هسے رفتار دے که لری چرته مقام
تیا رونهٔ دا راغلے لاړهٔ تیارو ته دهٔ روانــــه

اوهٔ! هغه دِ ولاړ دے پهٔ کلونو کښ خیام
ولی (۳) ژوند خاورے ایږدے دمینے او جانانه

---

(۱) د جولا د اوبدلو دستګاه.

(۲) سپنهی. (۳) ولی: ولې.

دے درد لرلی ژوند کښ بےخودی کښے د آرام

د ظلم په دے اور کښ یو ساقی دے مهربانه

دا مست بے خوده سر، نشه ځوانی او دِ الهام

راواخله په شکرونوئے قبول که غنی خانه

خو هغه دے جمات کښ اوچت بانګ کے او د امام

وئ دا دنیا بلا ده تښتښته تښتښه د بلانه

ساقی د تره ډک کړے دے د سور انګاره جام

دا سرے شونډے ئے اور دے د دوزخ په لاپروانه

دا ژوند د دنیا څه دے، لوبے متوقے مسخرے دی

جنت کښ شرابونه، سپین غلمان حورے مستانه

سقراط وکړو آوازونه د دے تولو دے سرسام

هیڅ تره رڼا نشته بے د عقل د جهانه

په پوهه او په فکر کښ دے حُسن هم آرام

دا نور دے د رب نُور د آدم خاوره کښ پټ بنانه

داخبره دی نه پوهیږی وانی وهم نه الهام

منطق او فلسفه ده چه پے ګرانه شی آسانه

راځه روح له دِ هم ما پوره کړے انتظام

که بُت وی او که رب څه بره آمنه د خانه

څو چې رڼا پېره شوه هر خوا ولاړه وي یو امام
هر یو وې زه په سمه یم دا نور دي ټول په ورانه

یو یو ته ورنږدې شوم منبه مې ولټول تمام
یو هم نه کړم آزاد د نه غښیرونو د سودانه

مستي مې کته داسې چې نه مې غواړي نه جام
مغوي دیرو ډک، کونکا مرې جوړوُ زمانه

جانان مې کته داسې چې مې هوش واخلي تمام
هر ساز مې د مستئ نه همه سوز مې د ژړانه

دلبر مې کته داسې چې وي تل روښان په بام
یو کل د رڼا جوړ، خبر د مینې او ارمانه

یوازې ترې روان شوم زړګي کښې مې ماښام
نصیب نه کیله منډ، په هوش جمدن و باندې ستومانه

ورغلې مې په ولي باندې لاس کېښو د خیام (1)
وې په دې کوڅو کښې څه تلې راغلې یم د پخوانه

د خاوروده آدم آخر د خاورې دې مقام
هیڅ داسې علم نشته چې ژوند خلاص کړي د خزانه

د وخت هره لمحه ده هم شروع او هم انجام
د ژوند راز و نه مړ کښې دي پټ شوي د انسانه

---

(1) عمر خیام (۴۴۰-۴۴۱ - ۵۱۵ یا ۵۳۰ ه ق)

نه ئې سرېښته نه لګي، يو دايره ده خُله د جام

رڼا د تيارې تاو ده او تياره تاو دَ رڼانه

په خود کښې درد دے، او درد بې خودئ کښې دے آرام

دے درد لره ژوند کښې يو ساقي دے مهربانه

دا مست مستانه سر، نشته ځواني او دِل آرام

دَ دے به زيات څه درکړي، او زيات څه غواړې دَ جانانه

چاپيره خيشت او رنګ تش دَ ګلو په انعام

په هر مټي د خاورے کښې زر ګونه ګلستانه

يو ښاغلي کښې ژوند، دَ عقل، پوهے، کل سمام

زرګونه دنيَ . . بڼې او دَ بـــابانـــه

دَ تال او سار او شرنګ او غورزنګ بے ميو خمار

دا ټکلے ليونتوب د بے وجوده شان هوانه

د داسے هنرمند هـــنرله نشته دے تمام

قسم دے جهانونه شته بنايسته دَ دے جهانه

د نيش نه راروان شوے شودِ دا رنګين مقام

چه هر چرته دِ بيائي زه، ورځه وراره خندانه

او پرين ده جولاګې خپلې کله ئې نه پـه آرام

جوړ ئې دے، چه کم شے وي که وي ګرانه که ارزانه

او چه دا قوته پوره شي، دا پښتني (*) شي تمام

نو خه به خندا یاره دکه دے نه دَ جولانه

چه تش یو یاد او هوش شے لکه بوی باغ کښې بانام

آزاد شے دَ دے تورو زنځیرونو د دُنیانه

بیا به جهان، او نوے هوش، او نوے مست خمار

او به قسمه سرود نورو پردو کښې د ستار



---

(*) پښنی : سپښنی

# لیلهٔ

د کارغه خوله کړه
ژبه دمار کړه

دَچرګي عقل کړه
زړه د سیار کړه

مرنے د سپي کړه
چه بنه غیار که

ضد د کچر کړه
غرور پرے بار کړه

خته د کلي
دیران د ښار کړه

بیا چرته روند
کولال یو یار کړه

تاله به نوے
لیده تیار کړه



# څوکه

لرې لرې په وږمو کښې یو سپین څوکه ښکاریږي
خو په لاره کښې دي غرونه او دریږي دي غمونو

غلې غلې مې رګونو کښې یو ښکلې آواز دی
پکښې تور سوري سازونه، زیړې پاڼې دَ ګلونو

رو رو پټ پټ مې ځیګر کښې یو ټمبین ستار غږیږي
عجب ساز دَ خاموشۍ دے دَ لیونے کوم سُرونو

او ماته ډیره لویه لاره، دا ازغو د تیاره پاتے
خو چې دغه څوکه وینم او دَم بل شي په رګونو

دَک دَ ګلو کور مې ګور شي، هم ګلاب راته پیغور شي
همه خیښت(*) دَ ژوندګرې پټې تورے لرې دَ غمونو

زړه مې وائي چې پاڅه پاڅه غني خان پسې ملنګ شه!
دغه څوکه کښې پټ پروت دے دَ ستا مطلب دَ مطلبونو

(*) خیښت : بنایست.

# وخت

تکنه غرمه دَ لیونو د ګرځېدو دے وخت

لږه، تر ملګي (٭) دَ یاره دَ سترګو دَ لیدو دے وخت

زیړ مازیګرے دَ ژوند غمګینه شان نشه لري

توره شپه ژمی دَ اورولو او رېدو دے وخت

هغه ده سپوږمۍ د ونو څوکو کښې مسکۍ شوله

پاڅېږه لالیه! اوس دَ باغ دَ ګرځېدو دے وخت

لاړه ساقي بوده ماشو، خیام هم دَ بزمه پریوتو

اے دَ مستۍ جامه دغه ستا دَ ماتېدو دے وخت

مه ګوره آینه کښې لیلے هسې به دې وژړي (۲)

لاړه چه ځواني شي بیا مه وخت دَ ژړېدو دے وخت

---

(٭) ملګي: ترو پرې. (۲) وژړي: وژړوي.

مرګ به ما مېتن شو، اوس ئې هر وخت سلام راځي

وئ مخ که یاره ماته اوس نه هونږ د لیدو دے وخت

مګر صبر او کړه لږ شان اور دم به وجود کښې نشته

ډېر مې دی سوزولی اوس نه ما ته د سوزیدو دے وخت

هغه سے مې ساز لیونی، مست نظر مستولے شی

وینه کښې مې اور دمې د ول د کلیدو دے وخت

سوز او ساز چه لاړ شی، تشخاوره شم نوراشیار!

دره به شم سینې له د غه وخت د هکیدو دے وخت



# وائی مُلاجان

وائی ملاجان چه په جنت کښې حورې پلې دي
غنچې غنچې . سپينې سپينې . مستې او بربنډې دي

ګوره ټمباتې چه ئې خُانه د لاړو دکه شوه
ښا نګلو(١) کښې د حورو تې . الحمد قامو، کړه شوه

ګوره د آشنا په بيړه لاړې راروانې شوې
تول شهوت شهوت . سرې وراسوځې نښا شوې

دا وجود د خاورې . دې نه پائی جنتونو کښې
دا د خاورې ګل مست وي د خاورې په کاڼو کښې

خاورې به شي خاورې به احساس او ياد به پاتې نشي
ساز سره به لاړ شي خوښې تښې باد به پاتې نشي

زه به حورې څه کړم(٢) چه ئې غيږ کښې کينوې نشم
غټو مستو سترګو ته ئې په سرو سترګو کتې نشم

(١) ورښوکی .

او دا وجود که بیا شي جوړ، شهوت حورې شراب وي
مست مست هلکان چې به هم بنګلو هم خراب وي

کوږه ملا کې ته دې چې لس ځې دهٔ له کیږه کړي
نه به ور له ګورې او هغه به ده له تیره کړي

او لو نه دې راونیسي، لا مور دله په مخه کړي
تو له خیلخانه به دله ګرمه کړي او ښخه کړي

دغه که جنت وي ملا ربّ دې وهله بوځه زر
دغه دله توب نه زما زر ځله دې غوره سقر

یا خو وجود نه لري یو مست او رنګین خوب دې
حورې او غلمان دې مینې خیشت او لیونتوب دې

یا دا ته چې وګه دار ښتیا ستا په کتاب کښې وي
تو ل غلمان به مړه وي ښتانه به په عذاب کښې وي

تا لا ملاجانه ربّ دې دې کړې جنتونه ډیر
اوس پوه شوم چې ولې دا اوږد کوې مخونه ډیر

نه به سوړ دوزخ له خپل غیرت او غرور یوسمه
ځان سره به خپله حیا، خیشت او سرور یوسمه

اور وي که عذاب وي تیروم به ئې لکه خان
نه همسایه لا سره دې ښځې نه غلمان



# پلوشه

ژوند او ساز واړه د باد دی
ژوند هغه بویه چه ساز وی
ساز هغه چه ساپکښې وی
ساه هغه چه د نیاز وی

# نرس

د دردمند د خوار خدمت
خدمت نه د عبادت دے

لکه مور، رحم او مینه
د حوا اصلي فطرت دے

دا د مرګ سره جګړے
دا نرتوب او شجاعت دے

دا د درد په اور کښ رحم
او تیارو کښ سپین مشال

هر ژوند د ښځے نږدے دے
هم ئے خیشت او هم کمال

که دنیا ورته سپک ګوري
دنیا څوک دي پیژندلي

د شمکورو خسرو کاله
هر یو لال ئے خاورے ګړے

لور د خیشت او مور د ژوند
دے له رب پیدا کړے

دا خو مونږ شاعرانو
یا ساقي یا دلربا کړه

د مغرب فیچر تهذیب دا
یو مسته شان بلا کړه

نه ئے مور کړه نه ئے خور کړه
نے د دین نے د دنیا کړه

د حوا اصلي مقام
رحم مینه او خدمت دے
دا د مرګ سره جګړے
خدمت نه د عبادت دے

# شپه وه د سپرلي

شپه وه د سپرلي ژوند ئې پېدا لو په ګلونو کښې
ټول جهان روښانه وو، وه تيارۀ زما خيالونو کښې

او ښکلې د سپوږمۍ رڼا د مينې د آواز په شان
روح ئې د ژوندون نيوه د حُسن په دامونو کښې

څه دَ ولې ولې په درياب کښې روک لاهو وُمه
ډوب په بې حسابه لاجوابه تپو سوونو کښې

ما وے ژوند څه دے، يو جنجال چه معنیٰ نه لري
بې مطلبه ډهلړلے اور کښې او غمونو کښې

کوز شومه چمن ته د لښتي غاړے ته لاړمه
څاڅکي له دَ جوندم کته کوز چَله سينو نو کښې

حُسن باغ کښې او خندل د هر سوال ئې جواب وُ کا
ژوند شو لکه ناوے د اميد په سرو ګلونو کښې

هغه سرے غُټے چه قسمت کښې ئې سپر دل نه وُو
غُټے شُو سرے د باد لاهے خور شوے په بادونو کښې

که ذکي چغه کړه چه ژوند د ړوند دیوه نه ډ

نه د غم قصه بندي د اور په زنځیرونو کښ

حسن دی بس حسن چه هم خدای او هم جانان دی

د فاني مکان کښ بل مثال د لامکان دے

یو د ګلاب غټ کښ چه ښکاره کوم جواب نه دی

نشته یو هم نشته د منطق په کتابونو کښ

مینه چه تالا شي یو امید شي یو ارمان شي تول

حسن په خلا شي تور د ولړو د غمونو کښ

ژوند او درد او غم همه ګړي شي د زنځیر د نور

مرګ او قسمت ډوب شي په دریاب د خمارونو کښ

وخت بابا د تال دی. بے پایانه سمندرونه دے

تال د ساز ژوندون دی. چه ګډیږي په سرونو کښ





# کیمیاګر

راته ښکاري جوړ پاست — په آسمان کښې کیمیاګر دے

ګل به زر کانړي خاورے — ګل خاورے زر کوي

دیر ګلونه ئې راغونډ کړل — د جانان شونډې کړے جوړے

چه د ګلابو خاورے — په کوم ګل جبر کوي

د تقوې زر شپې کړې جمع

د عشق یو ساعت ترے جوړ کړې

څه به ناز غني ته خاني

چه دلبر دلبر کوي

# دبُودے تال

داکم جانان له بڼے جوړ ښکلے تال کښې
رنا بندی کړے خنګه د رنګ په جال کښې

دا څه له جوړ که چا. دَ څه تصویر دے دا
خوب دے یو خوب دَ دا. که ئے تعبیر دے دا

که د جنت ور چا لمحے له لرے که
که د وصال ارمان دَچا د لمکیر دے دا

که مخ زما د خوانئ، ارمان او خیال کښې
که امید ونه خاندی، مخ دَ جمال کښې

ښکلے دهوکه دَ نظر وه، په آسمان کښې سراب
که دَکتاب دَ جمد وان. دِیوه رنګین غونډ باب

د رباب د رنګ، که ثبوت، چه رب مُبین دِ په خیشت
ښه صحرا کښې روان، یو دَ نورو نور. د رباب

که رنګ د یار د سترګو، د وبله په خیال کښی
که د جانان مسکی شو، خوب د وصال کښی
تیږی تالی بلی باغ ته ماښام کښی
خکلی خیالی او ښکلی ګلاب د غم په جام کښی
په مراو مراو سترګو، وائی نصیب ته لی وی
ولی کړی خیشت پیدا، ولی تمام کښی
ناوی خزان، خزان، د سپرلی شال کښی
رنګ او رنګ بندیوان د وخت په جال کښی
نه یم دیر ستړی، بلی دیر د جهانه ستړی
د خوشحالو سکین، او د خفګانه ستړی
داسی سفر خدایا. نه نی پړ او نه دمه
دا هوش په بیرته واخله، یمه د خدا ستړی
بس تش خزان او خزان د ګل په خیال کښی
یو سور عقاب ګیر پروت د غم په جال کښی
ومه یو خاخکی د رنګ، شومه نه ګل نه تصویر
لمحه خماره وړک شو. نشو د سترګو اسیر
یو ساز چه دام کښ د سُر، د چار باب او نه نیو
یو خوب چه خوب پاتی شو، ژوندی او نه که تعبیر

يو لال بندي به سينې د کوتي لال کښې

يو بې قراره ښاخکې . سينه د کمال کښې

ما هم لږ پرېږده بُو دې، د خپل جهان ته

ستا د رنګونو، خندا، رونق ګلستان ته

زه به يو ښاخکې د رنګ ستا د دريابونو کښې شم

اور د آدم به و ښيم . زور د آسمان ته

پټ م که، پټ م که، لږ . د دنيا ښال کښې

يوه تمالنې راکه . د بو دې تال کښې



# ساز

زه يو مست شان ليونتوب يم — دهوا په اَس سوريږم
که يو رنگ ديار د سترگو — شل رنگونه شم کډيږم
دا زه څه له وے جوړ شوے يم — خبر نه يم نه پوهيږم
وے سوز شم، وے ساز شم — يو آواز يم چه غږيږم
د زړه پتهو تارخانوته — يو شعله يم چه کوزيږم
يو سُرور يم چه شرنگيږم — يو خمار يم چه مستيږم
چه په رگ رگ کښ دِ اور شم — يو لمبه يم چه رپيږم
دا زه نور يم چه برقيږم — که سُرور يم چه سوريږم
حقيقت م نشته باديم — مستول کوم هم مستيږم
په خندا کښ م ژړا ده — په خفه سترگو خنديږم
وايا وايا ليونيه ! — وے ژاړے چه ژړيږم
اوچه برق داتڼ ولچيم — ستا په وينه کښ کډيږم
دا زه تش دخيال دهوکه يم — که يو خيشت يم چه خوريږم
که يو مست دباد نيلے يم — په فکرونو کښ څغليږم
که تال او شرنگ نه جوړه — يو دُعا يم چه قبليږم

# ناوې

اُف دنیا کې پلیتې ‎ ‎ ګنده د ګنده وبوتې
نه یو لمبه نه د اور ‎ ‎ دړکښ غیرت سوزیږي
سړیتوب، علم، پښتو ‎ ‎ ډوب او نازک خیالونه
دې نه ښه څو چنده ‎ ‎ حرام حلال مالونه
بال بچ او دین او ایمان ‎ ‎ په مال او ښیار ورکوي
د سړو بدل کښ والله ‎ ‎ جانان دِلدار ورکوي
لوړ خاندان ښه خصلت ‎ ‎ دا هیڅ قیمت نه لري
ښیسته صورت د ګلاب ‎ ‎ چه حبیبې تش کې خوري
دلوړ دخوښې تپوس ‎ ‎ ولې دا سپک کار دی
یو سپي ته ناوې ورکړي ‎ ‎ خو سپی مالدار دی
دمه غریبه سپې ده ‎ ‎ چه په ښکاره چلیږي
دلته زر کونه دي ‎ ‎ په سړو دولو کښ پټې
په مړ که مال او دولت ‎ ‎ ښه په عزت ورکیږي
که په یو نوټ لا ړه ‎ ‎ دمه ده دمه ده
د زرجریبه خرڅه ‎ ‎ ترې په څه کمه ده
دلته تیر باسي څوک ‎ ‎ په دسړو بریتو خان ؟

مالہ دھوکہ راکوے — کہ دھوکہ کئے دخان ؟

مُلا دغت پېتکی — او دبېرے بزېرے

کئ معربې غُتې — دَغور تالوخبرے

خان او جهان دَیار — خہ تماشہ جوړہ کړې

جُمات مُلا سپین بږیرې — قصہ دړنہ جوړہ کړې

لکہ غوا خر خہ لیلیٰ — پہ شړنګا شرنګ ورکوې

دے دَلہ توب لہ بریتو — د پښتو ړنګ ورکوې

بیالاړشی کټ کښ دکور — نوتونہ او شماری

کہ زر پردو کښ پټ شی — دَلہ منکاړہ بنکاری

او دګلاب هسے لور — کہ دَسپی کوړ لہ لاړہ

خیر دَچہ تہ مور شوے — کہ هغہ خور لہ لاړہ

اے مصورہ دَخیشت — اے دخوائے الله

اورے سکلئ دَنارے — پتہ برستن کښ ژړا

کہ وی خنزیر سرہ مال — ګل او جانان بہ اخلی

ستا شہلیان فقیران — تش بیابان بہ اخلی

دا دلہ کان شو مونږ — کہ ستا قانون دے دا

دا زہ چہ ویم (*) پښتو دہ — او کہ جنون دے دا

اے مصورہ دَخیشت

اے دخوائے خدایا !

(*) ویم: وایم

# اسپتال

مستا د جهان کښې خدایا!

یو سرور غضب د خوارې

هر یو په زړو دے خرڅ    دَ دوی رسول سامري

که وی د چا موټر    د ډېر لږ لوئے او ښکلے

دَهغه پلار نیکه هم    شي ستا نه ښه ګڼلے

پورته به پوزه کړے دے    ډک د غرور شاخیلے

داغل لومبړ به غالي    زړه مړے به ناست وی غلے

زړونه زور شو جوړ

شو ستا د ملک بادشا

که نه وی د غه رفتار

ورانه دِ واله(*) دنیا

یا ئے که سمه جوړه    او یا ئے ورانه کړه

یا دِ د خپل عاشقان    ورک دَ دُنیا نه کړه

دَ دوی یوه سودا ده    زمونږه نور غمونه

(*) واله: واخله.

## خوبنږ او بنیاروی مال

## دَ لیونو ـــــ ځلونه

ستا جمالونو کښی نن — دَ زړو سخی(*) دی ولاړ

په ممبرو نو ورته — خرمن شوی سپی دَ ولاړ

ستا په نامه مولا — بل ته سجدے کوی

تا ته ئے لاس نیولے — بل ته اسرے کوی

ستا عاشقان مولا — اور کښی ترلی دی تول

ستا غریبان بادشاه — په ژوندون مړی دی تول

دغه دُعا قبوله م کے جانانه که

یا ئے که سمه جوړه او یا ئے وړانه که



---

(*) سخی : خوسی .

# شهید ډاکټر صاحب

(د مرګ په اووم کال) (*)

د بهرام بابا بچیه ستا په وینه کښې نر توب و
په ځیګر کښې د قام وینه یو سور او د یو لیونتوب و
دا چه پې تالوګے له ډېښتون د غیرت خوب و
هم بابا وے هم اشنا وے عجیبه د سړیتوب و
زړه خلقی به تا قربان کړه چې ډېر مست د ګُبال توب و
پاک زړګے د د ماشوم و تا له نه د بتله چلونه
ننګ، پښتو، توره، غیرت وو کا کاستا د باغ ګلونه
د هر چا بد به ښل تا، زړه د بیاب د د رحمت و
په سور او ر کښې به خندل تا، دومره مست د شجاعت و
بادشاهي او ملنګي کښې، هغه خوی هغه خصلت و
تخت غوره تا کښې را نه وست، او ایږے ته د ذلت و
زور، زور نه د، او ر دے او ر د، سوزېږي زړه ونه ملکونه
تا دا زور د خان غلام که، بے پے کول د خدائے تو نه
چه به زړه د مخامخ شوم، لیونے او پریشانه
په خپل خوږ د په خپل احساس او په خپل ژوند بانا ستومانه

---

(*) ډاکټر خان صاحب د باچا خان مشر ورور نوم یې عبدالجبار و (۱۸۸۳ - ۱۹۵۸ع)

ستا ښځې ستړې به مسکې شي ځکه وې پهلوانه
بچي هيڅ کښې قرار نشته. دخپل ده دخپل خاڼه
ديو اوره بل ته دا ننګې، سمندته د طوفانه
بچي ستا سره کښې جوهر دی، ته مير جوړې د ځانه
که مزار به د ډېرل زړه، پښتو به د زمانه
ماته تل مسکې کاکاوې، مينه ناک او مهربانه
نشته نه به واپيدا شي، پښتنو کښې دا سې ترونه
کاش چې ته دلته کښې ناست وې ما ښکولول د قدمونه
خوتالوئې ده بار له يو ړل د خپل سوي زړه غمونه
د ولس د ننګ جنګونه. د پښتون دشان خوبونه
او چې کله را په ياد شي. سترګې ناوينه مې ژاړي
خوبنده زوي د ارمان د، تل د رک سوځې جانان غواړي
که زه ژارم ستا بچي يم، تول خواران د ړپسي ژاړي
ستا انصاف او ننګ به ستائي. پښتون چرته چې ولاړي
کاکا زه به د ځه وايم. داخو ووئې به تاريخونه
تاپښپله وينه رک کړل. د پښتون ننګ ته جامونه
ستا د پاکې وينې څاڅکي، سره کاونه. سره او رونه
د مېړ پښتون به زړه کښې دې ياو د و هي توپونه
ماړا وري تاله نه دي د رامبيلو اميلونه
د جنت بلبلان څه کړي د دنيا د باغ ګلونه

# پروت یمه یوازې

پروت یمه یوازې، تور غمونه رانه تاو دي
هسې خو ظاهره، سره ګلونه رانه تاو دي
کور نه دې جنت دې چې کښې زر قسمه ګلونه
هر خواته چې ګورې په رنګونو کښې رنګونه دي
هر ړه کې قالین کښې د ایران د تلي شان قصه
هغه شان تازه دا د دارا د باغ ګلونه
زه په دې کښې ژارم، آزارونه رانه تاو دي
پروت یمه یوازې، تور غمونه رانه تاو دي

لورِم خاندان، د محمد نوجدي خانان
پلارِم شین زمری، د پښتنو یاد په جهان
پاک ښکلې اولاد لکه ګلونه د ایران
مورې دا سې نره، پښتانه ورته حیران
زه په دې کښې سوزمه، اورونه رانه تاو دي
پروت یمه یوازې، تور غمونه رانه تاو دي

پاکه لویه خدایا . دا احسان دے که سزا ده
ژا رمه ګلونو کښ داخه برخه زما ده
عیش دِ واله ذهرکه آرام واله بلا ده
زړه دَ تیښتے نشته . تیښته لا توره بلا ده
دا سے دقسمت سره زنځیرونه رانه تاؤ دی
پروت یمه یوا زے ، تور غمونه رانه تاؤ دی
ولے دِ زه جوړ لکه مثال کړم . ولے ولے
هله شی رڼا چه م په سر لمبے وی بلے
وژنم که دا اور ګلزار او حسن شیخ لے
اور کښ که بدل دی ، خدا نیکوستا دَ کور مزلے
چار چاپیره تور دَ تیرو غرونه رانه تاؤ دی
دا سے په سنګاره خو سره ګلونه رانه تاؤ دی
زه دَ خپل زړه خان آدم یم خکه دِ پیدا کړمه
زه که سل ګیلے کومَ که سل ځله ژړا کومه
یو ښائسته دحسن له به تول ژوندون تالا کړمه
هره ساه که اور کړے زه به لا دیره رڼا کړمه
یا به یو لیدلے خوب دِهوش کښ را رښتیا کړمه
یا به ستا به دی . دا دریت احساس تالا ژوندیه کړمه
بل څوک پے پستی کړه . زه ایره شوم نه بلیږمه

# پانډت

چه نه خوند لري نه جوش، نه سرور او نه خمار
تش خمونه اغشتلي وي، د جنون او د دلال
تش بے خوندہ کړو بے دے، د پیرانو نه د تنظیم
که هر جام کښې دغه شے وي، خم کړم ځان له افیم
چه هر تک ئے شماروي، څُي ګټے کړے هر تال
هر یو خیال وئي تیند کونه، نه ډُلکي نه ټهکه چال
څه ضرور وو کچے خرد دے، د عربو په سیال پرېښود
د شاعر د خیال لیلیٰ له، دِ په سترګه کښې خال کېښود
دے وینانه خو چپ منږ کړې، ښکاریږي لے ښنه او ښنیا؟
ولے پوے دِ که جهان چه، ستا خمار وو ګان خار
ښه تکړه شعر وه نے، تا ته ښکاري چه شر نکار
خو کاسه ئے ګنه ماته، او بے سره د هر تار
او والله که زه پے پوے شوم
چه پانډت دے که ستار

# حُسین

دا قیامت دے که معراج دے او که ورځ د کربلا؟
دي دا شګو کښې سرې وینې که ګلونه د لاله؟
سو خمار نه هر و کښې کله دے ترِنه ډکه ده پیالا (*)
څه په جوش ورته روان دے د مُینو سربالا
وې خپل عاشق ته اچې د سکروټو کړ مالا
چاته وې ګلاب بچې دِ ورته غوارم حلاله
چاته اور صلیب او دار کښې هم خلاصے هم وصال
چاته سر چاته ګلونه، ژوندانه حسن او کمال
نن بادشاه د عاشقانو، در روان دے اے جانانه
شان د مینے درته ښائي، توان دے د خاورې بے توانه
ټول جهان تیاره کښې رپي. یو ځرک خې روښنا
کوره ستړي خلیږي. په څه نوې نوره ستانه
ستا منصور ورته پسخیږي. ستا عیسیٰ ورته حیرانه
دا د ده د دره لمبے دي. که د نور ستوري روښنانه

---

(*) پیالا: پیاله.

یو کلاب خان له روان دی. تک تور سوی بیابان کښې
یوه سپینه شمع خاندي، دیو تهر په طوفان کښې

✱

ولې کم خواته روان یې! اې حُسینه ولې
کربلا نه ده بلا ده، په دې ښکو کښې څه ګورې
ولې غم دِ لاخیشته کړې، پسته ښکلې سترګې تورې
زور او زر، اقبال او بخت دې د هم ماده هم سورې
یزید خان دِ دَ جهان نن، انسانان وړې او کمزورې
دَ انسانان د شان مثال ښئ دے خرڅ شوي زرک غلام ته؟
دَ سبا دستوري تور ښئ دِ د ژمي تورې ماښام ته؟

✱

بره مه ګوره حسینه، نن ستا خدا دے ستا جانان
نه ما دکي نه په کي ستا دے وخت دَ امتحان
ستا اختیار او تقدیر یو شو په دِ ورځ په دې مکان
ستا دَ مینې مستي ګوري، زور دِ ګوري دَ ایمان
اے د سره کلابو خانګې، نن ما بنام دے دَ خزان
دا کافر ښکلي تنړې، ستا دَ وینو په ارمان
څه ورځه زما جانانه، ساقي لړے میخانه کړه!
دَ سور اور او سور خمار نه، تالئې ډکه پیمانه کړه!
اے زما غمګینه یاره! غم د مینې دے حصه

سور دَ ساز خیشت او خمار دے، دَ یقین مو رتلو سه

چاچه موندے دِ جانان خپل په آرام په د لاسه

نوم نشان ئے مړکي روک کړل، وخت ئے روکه کړه قیصه

چه دَ سر سره ئے داؤ کړي مستي حُسن ارمانونه

سُرور، زر قسمه مستي شي، خمار زر رنګه نشه

ګوره ګوره اے حُسینه، ګوره دغه دے عیسیٰ!

دغه مست ملنګ منصور، او ابراهیمؑ د ربّ آشنا

یو په دار، یو داور میږ کښې، حُسن ولید دَ دِلبر

بے ګناه یو په صلیب شو، دا زغو تاج ئے په سر

ستا دپاره اے حُسینه، دغه سپین تیغ دَ شمر

هم ایمان دَ هم نرتوب دے، هم قسمت دَ هم باور

آ دَ مینے بل مشاله، رڼا راغله دَ سحر

دا د قهر طوفان راغے، که یزید سره لښکر

---

ګوره ګوره پاکه ربه، عجیبه میدان د جنګ دے

یو خوا زور د تورے صفونه، بل خوا تش حسین تنګ دے

یو خوا زور، غرور او حرص، قت قت په او ښنګ ښنګ دے

بل خوا یو مئین ایمان دے، مستانه او په غورځنګ دے

ربه او ګوره فرعون نن بیا موسیٰ سره په جنګ دے

عجیبه شین زمرے دے . هم بادشاه دےهم ملنگ دے

یوخواه ستړے دی دکانو ، هم ضمیر خوړلے زنګ دے

بل خواه ورو که خوار تو دے . هم دستار په سیاسی تنګ دے

دم یو نظر کښ کوره . نو توب څه چه لیونتوب دے

د آدم دشان قیصه ده ، کلک یقین د سر یتوب دے

تول جهان توره تیاره ده . دوئی دنور لید خوب دے

جنګ په تاج کی نه په تخت . جنګ په حق د سریتوب دے

دلمغروره فرعون ناست دے ، که یو مست بیر حیوان

یخ بے حمه چمچمار ، چجه شوے . ویران

مری دستند دمی لتے . روکی روکی ماشومان

چار چاپیره تے ولاړ دی قطار ونه لښکریان

یو یو ګل د تند هړی ، د رسول د ګلستان

اویزید ولاړ دے آوری . داسلکی اوها سوان

دابلا دکربلا و نیم لیوه او نیم شیطان

په دنیا کښ دی تیرشوی ، دیر بے حمه بلاکان

داسی ظلم نه دے شوے ، نه به اوشی په جهان

د چینے په غاړه مړه شو ، تول د تند ماشومان



آخر چې کړه حسینؑ ، نر بچې زه د حیدر یم
څه که نن یم اوږې تږې ، زه په اصل شیر نر یم
راشه او ګوره فرعونه د حیدر د وینې اور
لوړ راو د انګه میدان ته ، چه ښکاره کړو سر زوره
خونړیدلې ښانه پټ شو ، چار چاپیره جنګ شروع شو
کربلا په وینو رنګ شوه ، بیابان ډک دَ نارو شو
دا دَ لسو او دَ زرو ، جنګ خو نه وي قتل عام وي
په لکها په زرو خرڅ ، دَ خپل حرص هر یو غلام وي
د حسینؑ ملګري وارو ، په نرتوب ګښې حیدري وو
خو سیلاب د تورو ډوب کړه که سل ځله زمري وو

---

سترګې تږې خوږې یواځې حسینؑ او کتل آسمان ته
وُو علیؑ مسکې ولاړ ، نه کتل ښکته میدان ته
وې اې حسینه زمونږ وینه تل دَ خدائے له بچیږي
ستا نیکه او بابا دواړو خوشحاله بیولې
او ربس آوردګے بچیه ، چه پا کیږي پے فولاد
دَ شهید وینه مستیږي ، تل په توره دَ جلاد
تول جهان تیرو کښې ګیر وو ، خپل غیرت ایمان تې هیر وو
چه بندګ د بل بندګي ، ډیر نسلونه کړي برباد

زوړ مې زړه مې شراب دی، د سړي نه ځان خطا کړي
د غرور ماڼۍ وي د ننګه، خو ګچه ئې وي بنیاد
د آدم نوسانو سوکښ نه بادشاه شته نه غلام
خپله ځینې سړي سپي کړي، سړیتوب ئې شي برباد
بل په مکر په فریب، په دهوکه په چل ولونو
نیم لومبړ نیم زمرکې وي، په خپل علم کښ استاد
رحم روک شي، ظلم ډېر شي، سړیتوب کښې سوا هېر شي
یو سود اور تر نه چا پېر شي، هر څوک خپل عذاب کښې ګېر شي
قانون هم شي، زور ناد شي، نر تالا ګیدړ، دلیر شي
بې غیرته غیرتمن شي، سپي غوښېږي ببر شېر شي
زر شي زور د هر چا ځان شي، خوار غریب به ژوند ستومانه شي
بل خنزیر د هر چا پلار شي، که خنزیر سره مال ډېر شي
وزیر غل، امیر ډاکو شي، ایماندار په سینه لاهو شي
روغ به مړي یا به غل کیږي، چې تول غله ترینه چاپېر شي
تول وطن به تور ځنګل شي، یو د بل په غوښه پالي
څناور تر امان غواړي، چې انسان په کمه تېر شي
علم چل شي، مذهب داړ شي، رنګ حلال کښې حرام شي
هر بیا لګه ما نبام شي، ژوند به تور آفت کښې ګېر شي

دغه وخت کښې د خدائ رحم، او رحمت په جوش کښې راشي

چې رته غلې د چا کور کښې، يو حُسين پکښې پيدا شي

چې کړې مېنه کلک پهلوان شي، ورته جوړه کربلا شي

مرګ له نوي معنىٰ ورکړي، ژوند کښې نوي رڼا راشي

آخر چې رته په سپېلي کښې، بې باران او برقرار شي

ناګهانه وچ صحراتول، سره ګلونه د لاله شي

خه وره خه وره خه حسينه، په خپل بخت شکر ګذاره شه

ستا شمر سره نيته ده، سپېلنې دَ مخ دَ ياره شه

که ربښتيا پې ته مئين يې، په خندا ورته تياره شه

اې په غم سوي ګلابه، وره شه خمله په قراره شه

حُسين اووے مرحبا، دا ارزانه ده سودا

کاش چې وے م په تنا، قط سرونه په زرها

او بيو بيو ورکولے ما، په زر قسمه کربلا

دادے د ه غلام بابا، لآ اِلٰهَ اِلّا الله !

اے بادشاه د يزيدانو، اے مالکه دَ جهان

ستا تقدير مے يو اورد غې په مخه کے روان

کله وسېزي بے وجے، سپين ګلونه ماشومان

کله تاج د سره په سر کړي، کيده ستر ګی شرمښان

دَ یزید په لوړے محل کښې ، د شرابو رود روان
د رسول بچي دِ مړه کړه ، او چې شونډې په میدان
دَ یزید په سوړ پالنګ کښې ، په ژوندون خوږے غلمان
د حُسین جانان مړے دے ، او پالنګ ئې ریګستان
ظُلم ظُلم دومره ظلم ، وران دِ نه کړو بے جهان
د حسینؑ په ژوندانه کښې ، دیو کوټ او بو ارمان
امتحان دِ کو دَ مینے ، د حُسینؑ څه امتحان
ولے زړے دَ حیلے نه و ، شیر ببر مرد میدان
مکوه مکوه اے اجله داسې نه دَ دَ وژلو
دَ آدم شان او سینګار دے . تا پے اور اولګولو
ښتے خاورے ، داسے مستے د زهرې په شاخلینې
سترګې سړې نے داسے اور کې لښکرونه تے تبنتینې
یو مثال د حریت دے . د خپل زړه په زور بلینې
پټ دَ زړه په تار خانو کښې یو سرور دے چه غزینې
حُسین او کتل چاپېره ، او ورشوې ژوند او ورشو اور
دے بے حِسه تور ملحول کښې هر ساه شرم پیغور
په دے ظلم به دِ اور کښې یو ساعت ژوندون حرام دے
دا دے د علم مرکیه ، زور او صبر م تمام دے

کربلا ذره ذره ستا، وئی به چغې تر قیامته
چه انسان به زور او ورته په هیڅ شان سر نه کړی ښکته
غلامی نه هرڅه منه دی، دا چه تیر شو او تیریږی
رتبه دا دې زمانه ده ژوند د مرګ په بیعه کیږی
په خپل ژوند کښې په هرچا به کربلا یوه جوړیږی
چه څوک څی د جانان کور ته په دلاره به تیریږی
دا یو ستړې غمګین مېړه د لوګې کومه نه له تا نه
دا رو ستې مراوې سُور ګل د حیاته د ګلستانه

---*---

سر دِ ورکړه لکه نر، شیر بچې د شیر ببر
نه د خیشت دِ څوک ثانی شته نه د زور برابر
اې بادشاه د شهیدانو، نر خانه د نرانو
ستا مرګ هغه یاد تازه که چه هیر کړې هر انسانو
ستا د ژوند او د مرګ تول، ما ته او ښو کربلا کښې
څه رنګین سر ورکړ دِ وا چو لا اِلٰهَ اِلاَّ الله کښې
څکه کله زه اوس هم د شپې ژاړمه
ستا د خیشت او نو کمال بیا په دنیا غواړمه
کوم د ته منت دُعا، اې حُسینه راشه
هر قدم شو کربلا، اې حُسینه راشه



ولاړ ومه په اور کښې ما وې اور زما قسمت
لمبې دَ قسمت نه وې، وې لمبې زما دَ نیت

نه ګل نه دلربا منم، نه حُسن نه بهار
یو ستا دَ سترګو خیال منم او ستا دَ شونډو وست

نه بخت او نه کمال منم، نه نور نه جلال
یو ستا دَ خندا راج منم، بې تاج بې سلطنت

نه چل او نه تدبیر منم، نه عقل نه تقدیر
یو زړه دَ سپرلي ګل منم، ضامن دَ یار دَ بت



# سپوږمۍ

اے لیونیه ساقي — دلیونو د شراب
ستا جا دو ګره رڼا — د خمارونو دریاب
نن م په سترګو کښې ستا — سورے دَ غم ولیدې
دارمانونو لړے — خاموش ماتم ولیدې
یاده که هیره دِ ده — خُما خواني لیونۍ
چه تا به سره لمبه کړه — نه ما نشه دخوانۍ
ستا پلوشو به رانه — آرام او خوب پټ که
یو بے قراره ارمان — کښې به م هوش ورک که
چه را ښکاره به شوے ته — لکه مسکۍ محبوبه
خما هر رګ به دِ رګه — یو دَ جنون لمبه
بس یو آرمان یو درد — سوز او خمار به شومه
هر سړه کښې اور او ژړا — دا سے ستار به شومه
یا به دِ دا سے مست کړم — یو سور انګا به شومه
یا به دِ راوړو اُمید — یو سپین ګلزار به شومه

خو نن خفه غونډ کښې ئې — زړه حيرانه شانې

سترګې دِ مړاوې مړاوې — او پريشانه شانې

پټوال جهان دِ کړه خوږ — مړاوې غمګين ارمان

لکه بې وسه ماليار — په تور ماښام د خزان

نن دِ رڼا کښې هغه — رنګ او سرور نشته

هغه مستي د ځوانۍ — د خيښت غرور نشته

سترګې دِ مړاوې مړاوې — خفه روانه وې

لکه زما دَ زړه — سترې ستومانه وې

هغه جادو د څه شو — هغه شراب څه شو

هغه د اور لمبې — او سره ګلاب څه شو

زما رنګينه ځواني — څو وخت په غلا يوړه

خمار ځوانۍ سړ لاړ — مستي سودا يوړه

ما ځان باچا ګڼلو — دَ بل غلام اوختم

ما يو درياب ګڼه ځان — دَ خاورو جام اوختم

خو ستا جادو ګړه رڼا — د خمارونو درياب

څه شو ستا ډک خمونه — د ليونتوب دَ شراب

بس هيڅ جواب نه کړې — کمخواه ته ځې زمانه

سترګې مسکې مسکې — مړاوې خفه حيرانه

# نوے بلا

کله کله را پیدا شی یو دا رنګے بلا
ژبه ښکلے او پسته سرے ډک دی د رڼا
هر یو سوال کښې ئے معنی هر جواب ئے فلسفه
هر دلیل ئے ښه پوره پوئے په هره مسئله
فکر تیز او ښه روښان علم خور لکه آسمان
د ړوند په عقل هر بیان د منطق په تول پوره
دا په شکل فرښته ده بلا توره بلا
زړه کښې قهر او تیاره باهر[1] سپینه تجلے
د ده هر خیشت او نیت یا ورانے کې یا علت
دا سکرو[2] تکه د نفرت سوز ولو له پیدا
د ده هر زور د کمال هر لطیف او مهین خیال
بس یو جال او یو جنجال ستا د خود او هوش پرکه
د ده دا ښکلے ګفتار دے یو دام د منګلی تار
د لو مېږه هسے ملګا را ګیرې دی په رضا

(۱) باهر: بهر۔ (۲) سکروټه: سکروټه۔

لونے غازي مست په اسلام ‌ ‌ ‌ ‌ لیونے په ننګ دَ قام

تاجوري دخان غلام ‌ ‌ ‌ ‌ یا په زور یا په دهوکه

په هر چل په هره لار ‌ ‌ ‌ ‌ د کمبکارۍ او ته ښکاري ے

دغه ستر ګے د ښلمار ‌ ‌ ‌ ‌ ستا د دره دیکښ اسره

سپین کمبت کښ دَ جمات ‌ ‌ ‌ ‌ دي پراته لاتَ او منات

دا په شکل آدم ذات ‌ ‌ ‌ ‌ په هاړونیه اژدها

دده دا شیرین ګفتار ‌ ‌ ‌ ‌ کفر کفر او انکار

پروت زړه ته دے زنار ‌ ‌ ‌ ‌ دده هوش توره لمبه

دغه علم دَ جهان ‌ ‌ ‌ ‌ ورته ښودلے شیطان

دَ ده دا رنګین بیان ‌ ‌ ‌ ‌ اروے بسم الله

دغه ښکلے سپین صورت ‌ ‌ ‌ ‌ مقبره ده دَ نفرت

دغه پند او نصیحت ‌ ‌ ‌ ‌ دي د زهرو پیاسه

دا دلال دے د تیارو ‌ ‌ ‌ ‌ د سکرو تکو د سکارو

دغه سپینو منارو کښ ‌ ‌ ‌ ‌ اررونه دي زرها

دا په شکل فرشته ‌ ‌ ‌ ‌ ده بلا توره بلا

هم آفت دے هم وبا

غني خدائے د ے ساته



# دغنمي تپوس

غوښتنې ماشومه کوکې　　　　　د که د خیښت سینګاره
الله ته پورته کړله　　　　　　خفه او بې قراره
وې اې د ګلونو خدایه　　　　اوربې که نااوربې
وې کړې ما ګلاب　　　　　　او ګلاب خاوربې
ما بنام د باغ مالکه　　　　　لیلی په سیل راغله
وې واه دا زیره غوښتنې　　　پریکه وینبستوله زما
ما بنام د ساز او محفل　　　تول دخوانئ غوبل
یوازې ناست و غني　　　　　غمګین غمګین نې کتل
لیلی نې خواوله لاړه　　　　وې سترګې ډېرې خوږې
وازې دې ماته اشنا　　　　　بل خواه ، بل خه لورې
غني دغمه رکې　　　　　　　سترګې وروارولې
هم هغه سوال نې اوکه　　　چه سار(+) غوښتنې وکړې
سترګې روښانه لیلی　　　　غاسکې غونډې شو
وې دد سوالونو جواب　　　چرته منتانې(*) د دې چا

---

(+) سار: سحر، سهار. (*) منتلې: مونډلي.

جانانه بس دے دا　　چه ښته د خیښت په دنیا

د عقل تور ځنګل کښې　　نه ښته ګلاب نه رڼا

ستا دَ زړه ها سوالونو　　رنګین جواب زه یم

چه به تا مستے جوړکه　　هغه ګلاب زه یم

د دے وړے جهان　　دالا جواب سوالونه

بس د رب شکر کوه　　او مه کړه ګیلونه

شکر او باسه چه چا　　خیښت او ځوانی کړه جوړه

زړه ها شکرونه په دے　　چه ئے فانی کړه جوړه

د زړو کالو لیلیٰ　　او وسل کلیز جانان

د ځوانے خیښت د دغه　　چه ئے خلاصین ی ستان

چه مستی خیښت ښی خلاص　　شکر چه ښته مرګونه

شکر چه خاد د ځوانی　　تو کوی زیره ګلونه

دَ وړے وړے تپوس　　ئے د مالیار او کړه

زه دیو سات سیلانئے　　پو ئے مسکے شه یاره

جانانه کی (*) ځوانے کښې　　خوند د مستے او رونه

دے فلسفوله د ښته　　داپاسے تول عمرونه

راشه د سره شونډو کښې　　سوز او سازونه دی

عجب رنګین خمار ی　　د جوند (+) رازونه دی

---

(*) کی ـ کوی.　(+) جوند ـ ژوند.

# حساب کتاب

په ژړا ژړا مې عمر په سجدو مونځونو تېر که

نتیجه ئې بس مرګی یو. تور لحد را ته چاپېر که

د قسمت او د تقدیر دغه قانون لاړه کو دره شته ؟

د ځوانئ اور ته مې ولے، بیا وے او سوزېدے ولے؟

لاس او خپې مې دی تړلې. او وے شا به کله شکله شه

هر انسان دې د اتڼ ته، زنځیرونو کښې بللے

د مسکو سترګو جانانه لږ د خپو مې که دا پرے

بیا مستي د خادرے کوړه. او تو پو نه د آدم

کله شرنګ د حواخوا کښې، کله زیر وا او کله بم

د تقدیر ګړی که سسته، بیا زما ګله ته کوړه

ستا د عرش په مناړ کښې. لیونئے خندا ته کوړه

چه زه مست شم په هوا شم، اور شم تند شم، رڼا شم

چه یو ساز مست او سرشار شم. نور شم برق شم، پخلا شم

روښان تور د مرګي سورے، برنډ سترګے تکے تورے

یو نظر راته را واړه ، یو نظر کښې روک تالا شم
رڼا نوره مستي لا موشي ، مُتې خاوره د صحرا شم

اے زما د زړه د نوره ، د دنیا او د خیال رتبه
د خوانئ د سرور نشکونو ، د مستئ او جلال تبه

اے چه زه جوړ تش د خاورے بس د خاوره ومه سیال
ولے تار اکړه سازونه ، او ښکلونه ، او جمال

دا انصاف دے مُتې خاوره ، د خپل تخت پایوله یوسے
بیلئ د روز ملکے له راولے ، هسې کار بنایسته یوسے

دلیلي نه بنایست وا خلے خوان بو دا کړے بو دا خاورے
نور دیرینه دِ راروان دی ، د مُلا هغه چه واورے

مستي خیشت کمال م وا خلے ، خپل یو تور دِ سینه پرېږدے
زه دِ لوټ تالا کړم دلته ، ته به تله کښې دِ خه بږدے

د کلاب په شان خوانی دِ ، را له خاورے کړه تباه کړه
ترمغے به م اِ مجبورے ، چه مړ کړې م واویلا کړه

دا الزړ وند پورے احساس د ښي مرګي له غلے غلے
چه آخر به را نه جور کړے ، یو تو پکے شان د خزلے

حساب؟ ستا به څه حساب کړي ، جناب را وسپره رد کړه دِ
لوټ تالا برباد دِ زه کړم ، خو کمزورے دله پر دے

# دَ زنے خال

په سپینو ګوتو ایږے کړے پورته
په ښکلو سترګو په کښې تلاش کړے
لا لونه ګورے ته په دیران کښې
لیلیٰ دا ته ئے دا چه مجنون دے
چه دے مړ باغ کښې ګلونه کوړے
دا ستا مستی دَ، او ستا جنون دے
زه؛ زه یم څه، ستا تخیل یم
ستا خوبونه، ستا ارمان یم
بے خودی زه ستا دَهوش یم
ستا چشمے له نږه طوفان یم
چه ستا زړه مئین په نور شو
زه شوم شمع زه مشال شوم
چه تا ځان سره ورله وړکه
نو زه ستا د زنے خال شوم

چه ستا خود دَ ساز ليوال شو

زه سرود شوم زه بلال شوم

نه چه طمع دَ سبا شوے

زه سبا شوم زه هلال شوم

نه خفه چه د ايرو شوے

زه يو مست او د روک جلال شوم

چه تلځان په عشق کښې ډوب که

زه مستی شوم او وصال شوم

نه چه وږے د کمال شوے

زه همه کمال کمال شوم

چه تا يره (+) دَ تيغ وکړه

زه قلا شوم زه ډمال (*) شوم

چه نه وږے دَ دولت شوے

زه الماس شومه زه لال شوم

چه نه وږے دَ مستئ شوے

زه منصور شوم زه بلال شوم

چه تا نيت دَ کټے وکه

کله دام شوم کله جال شوم

(*) ډمال = ډوال . (+) يره = ډيره

چه تاواغیستم جانانه
زه بنا ئست شوم زه کمال شوم
چه تاولیدم دلبره
زه هلال شوم زه مثال شوم
چه ستا زنه په کم لوره
بس زه ستا دزنه خال شوم



# دنیارو غلام

وې ماله د نور که په خوا د اور — د شغلو په بستر وې خوب راځي

وې ماله په جنګ کښې خواني مستي — په آرام کښې فنا بلها توب راځي

وې ماته دلرو په نسورې کښې — د جبلونو اخانشت نمایان شولو

وې ماته هم کال مستانه او مست — په مابنام، په مابنام دزخان اشولو

وې شورې د وجود زما ساز شولو — وې ماته ارمان خپل ایاز شولو

وې ماته د ژوند همه نور او رنګ — یا شکرے یا شاهین یا شهباز شولو

وې ماله د ژوند ګل سوب ضرور — نه نیاز شولو نه انداز شولو

وې ماته خانشت د هر شهر او تال — د غمونو د ردونو آواز شولو

وې ماله دې نور که په خوا د اور — وې وې شو سپین هم مرګ د تور

وې ژوند بس پیغام او مطلب د ګور — زما سوې ګلاب شو غلام د اور

وې ماله همه خوشحالی د ژوند — یو ټک تورې مطلبه تصویر شولو

تش په خان په جهان پسے ژړا مه — زما ساز هم مرګ هم ویر شولو

کمزورې د وجود او خیسکر زما — زما خود شو قسمت شو تقدیر شولو

او زما د دنیا هو تاریکو غلام — زما خان شو امام شو او پیر شولو

زما مینه دعوه د ډېر غرور شوه — زما حُسن لیدل د راندو شولو

زما زړه شو غلام د وجود ټها — نظرونه بچي د لیدلو شو

توږے لړے، او لړے او کړے خوب — نه اُمید شولو نه ئے راز شولو

زما ژوند، یو سلګے د شکست شولو — چه نه سوز شولو او نه ساز شولو

خپل وېجاړ ژوندون پسے ژاړمه — زما ژوند هم مړ کړے هم ئے وېر شولو

چه د عقل رڼا مِ یو برق وکه — هغه هم د تیرو یو تصویر شولو

ځکه ماله هر تال او سرو ړه ساز — د غمونو دردونو یو راز شولو

ځکه ماله دِ نور که په خوا د اور — ځکه ورځ مِ د شپے دروند آواز شولو

د ژوند هره شغله، شوګلمبه د اور — هر اُمید، ارمان، یو دوکه د دُخان

زه غلام د تیارے په پنجره کښ پروت — که یکے وام(*) چه نو یم د کل جهان

زه چینغے په ویران کښ غنزیږمه — رنګ ستړے م رنګ د بهار نه وینی

زما ونه کښ اورکے خواورد ویران — د یار سترګو کښ مړ کے خمار نه وینی

زه لونے شوے صحرا او تیارو کښ یم — دغه شکو کښ ستوری ملال کړم دے؟

زه یو تور او او بنیار شان کونګت یمه — شمع چرته دِ، سپین دِ مثال کړم دے؟

دا اُمید، دا خیشت، یو دوکے د ځان — ژوند تیاره ده او مړ سمندره دِ تور

زما سر کښ سپوږمۍ او کلونه شته

خو هر رنګ دِ تور، لکه کوږ کور

۱۹۶۵ع

(*) وام: وهم.

# یورپ

دَ مغرب دَ سوی زړه نه یوه سوے کوریکه وځی
جنګ دې داسے درد ولے اوس هم رپی اوس هم سوزی

ماشومان کلونه ښکلی
امیدونه نیاز ولی

دَ سبا خوبونه خاورے
پردنی سازونه غلی

دَ یو بم په شور انګار کښې تول ذره ذره هیره شی
دا تورتم چه په چا تیر شی ورته تول جهان تیاره شی

ژوند یو توقه بے مطلبه
رګ دَ درد دَ غضبه

څه ثنا به دَ رب واورے
په سرو تیلو کښې دَ کبه

دا راندهٔ په بقو کوری، لمبو سوے ئے نظر دے
دوی بیناؤ ته راندهٔ وی، او چغرے پیغمبر دے

هر ماښام مغرب راوړي، شپه راځي د ده د کوره
د مشرق رنګینې خاورې، تا نه تل ختلې نمرې
پاڅه پاڅه راپیدا که یا یو بدهٔ یا مسیحا نن
ګنې لاړه تیارو یوړه دا ړنده شمله دُنیا نن
ورته او وایه چه مرګ بس د ژوندون د لیدو تول دې
د ژوند سره ګلاب بې بیخ دی، مرګ که تور دې ازغو ښیو دې
که مرګ نه وې ژوندون به نه وو هر ماښوم به د پوهیږي
بند لخکه په وځ پوه شي، چه ماښام کښې تیاره کیږي
انسان نه ده تنده خاوره چه په خاوره کښې شي خاورې
ده کښې ساز یو ابدي دې، که لږ چپ شې ته به یې واورې
ده کښې سوز ده کښې مستي دې، ده کښې مینه او خمار دې
دا به کم لحد کښې بند ته، ده له کم قبر تیار دې
اې غلامه زنځیر د تیاره کښې پروت، خان که هیر لږ پیدا به یې خوار وګړې
د جانان د خاییشت او د مینې نور، په هر خوا به سیر خوار او کړې
هره بانه کښې ژوند لا زوال زړه، هر ګلاب کښې دریاب سره وړې
بدلیدل د ژوندون دوام ده لاره، ګوره هر غوټۍ کوي لحور دې

۱۹۶۵ء

# اے زما وطنه

اے زما وطنه د لالونو خزانے زما — ستا مړه ذکر یې دي د تورے نبانے زما

ستا سر چه وي ټیټ نوزه به شان و شوکت څه کړمه

ته چه خوار و زار یې زه به مال او دولت څه کړمه

ته چه روان وي بیگار زه به خواب او راحت څه کړمه

مسته به دِ خاورو کړم په وینه مستانے زما — اے زما وطنه د لالونو خزانے زما

عقل مِ ایر شه ستا د پاره د فکرونو نه

سترگے مِ قربان شه ستا د پاره د سوچونو نه

زارشمه قربان شم ستا د خاورے د کورونو نه

ستا زړه کښ پړدي تورے تلے نہ ما زما — اے زما وطنه د لالونو خزانے زما

یا به دِ زه سیال کړمه وطنه د جهان

یا به ستا په خپو کښ تورے خاورے کړم خیل ځان

ځان به درکړم درے کړم خو تا به کړم ودان

نورمه پښتونیم تا ته یاد افسانے زما — اے زما وطنه د لالونو خزانے زما



# جنت او دُنیا

چه مستي وي او ځواني وي او جانان وي او ډک جام
ډېر کلونه، لږ یاران، او غمګین غونډې ماښام
عشق څه او روي او څه نور وي زړه لمبې لکه تنور وي
په دې ژوند به زه ور زار کړم جنتونه ستا تمام
خو دا کته په دې وګړې چه هیڅ رنګ له قرار نشته
هر ساعت. هر رنګ د ژوند. ستا دوخت دې کس غلام
او جنت کښې مُلا وائي وخت به وي زما غلام
د چه روک شي او زه شته شم. تول به وران م شي تمام
چه زه تول غم زلمے یم. نو لمے توب به یو عذاب شي
ځکه اوس را باندې ګران دې، چه ئې خیشت شي زر تمام
تل سپوږمۍ د څوار لسمے، تل جانان دَ شپاړسمے
تل ځواني. سپیند د شرابو، دا دوزخ دے که انعام
دے دنیا پسې به ژارم. دا تیاره هلال به غوارم
هره ورځ به یادَ و مه. نرے لره د ماښام

تمنګ د حورو وفادارو ـ بې وفا جانان به غوارم

ستا آدم په ذلت ښکاری دی . د ښکار خوند ګوری هر ګام

د مستۍ د سیند په غاړه ، ثوابي روږدې به نیسم

اسویلي به کوم یادوم به د ساقي نیمګړې جام

هر څه چې ابدي شي ، یو آفت شي یو عذاب شي

بس یو تا سره مزه کا دا ازل ، ابد ، دوام

بند نوې رنګ محل کښې نوې نوې جانان غواړي

بیابان کښې سره ګلونه ، توره شپه ، چراغان غواړي

تل تیاره کښې د روکیږي . تل رڼا کښې هم ړندیږي

دې بچې د تغیر دې . یو حالت کښې نه ټینګیږي

که ده ستا جنت له یوړه . دا فطرت او دا وجود

یو څو ورځو کښې به سوزي . په سره سترګو به ږړیږي

اې د لوی فضل مالکه ، ماله دا دنیا جنت که

فارموله نې ده آسانه . د درې توکو نه جوړیږي

لکه ویلي م دی سر کښې ، بس جانان خواني او جام

چه زما لیونې سر پې کله کله مشغولیږي

او هغه بل د مرګه پس م ملاجان ـ پسې خیرات که

تش د حورو په خوبونو که د خوار ګذاره کیږي

ماله دلته يوه راکه غونډه ، مستۍ تکه سپينه
مينه ناکه ، سپينه شمع ، چه لمبې وهي بلېږي
شل رنګونه نې نظر کښې ، شل مزاج په خيال کښې
د سپرلي هسې خوبونه ، کله نمر کله وريږي
يو څرمنه کښې د ننه ، يو حرم د جينکو دی
کله مستي او ښادي ، کله غلې شي شرميږي
او زما د ستړي زړه کښې شل رنګونه او لمبې کړي
چه د اور هسې سوزيږي ، دلبرتو هسې کيږي
چه په يو بې تاب نظر مې داسې مست د نشه کړي
ميخانې ورته حيرانې او ساقي ورته پسخيږي
دمغې زړو بدل کښې ماله دلته يوه راکه
د ابد تروله خوانۍ مې ، د خوشالو مشغلا[1] که
که دانه کړې اې جانانه ، سرې خوږ د سبا که
نه مې هغه لته پکار دي ، نه مې دلته کښې ياديږي
غنې غنې ، سپينې سپينې ، چه نه سوال نه منت غواړي
ارتې بيرتې ، او زما سترګې ، په څمڅلو به لغړيږي
رښه ! اې جانانه رښه ! دغه يو سوال خو منظور که
کني لا غني د مرشو ، ور پسې نې ځنې[2] کيږي

(۱) مشغلا : مشغولا . (۲) ځنې : زړې .



# مینه او حسن

ستوري ته اَسمان کښې یوه ورځ وویے ملال
خدائے آدم له مینه ورکړه مونږ له تش جمال
زه به په خندا ورکړم دا خپل ښائست دکمال
مالِه که یو څاڅکے مینه راکړې خوږ په سوال
مینه حقیقت حسن سایه د حقیقت ده
حسن له زوال شته مینه نه لري زوال



# ریدی ګل

یوه ورځ یو صحرا کښې په ښکار وتے ووم روان
یو ګلاب مې ولاړ ولید، پر قید د خیشته خندان
زه خفه ئې خوا له لاړم، ما وے، اه! زما په شان
ته هم ګل ئې بد نصیبه، روک د زلفو د جانان
نه د جانانې سینې کوتے، نرم مخ له به دې یو سی
نه به ښکل دې کړي سرې شونډې د یاره نازک لبان
هغه غلے شان مسکے شو، وے خان مه کوه خفګان
زه به دا صحرا ونکړم، د ایران په ګلستان
دلته زه یو او یکتا یم، هلته زر زما په شان
چار چاپېره سپېرې خاورې، زه یواز یم روښان
دلته د تورې ریګستان کښې زه د رنګ او نور لمبه یم
د خالق چپه نغمه یم، کرشمه د لامکان
ستا په باغ کښې به زرګونو، دي ګلاب زما په شان
یو بې نومه سوړه دریاب کښې یو بې نوم څاڅکے روان
ته دې هم په خپل صحرا کښې خفه مه شې زما وروره
آخر به شي دیدن له دې خوک سوے غني خان

# دُنیا

دا په خپل خود کښې دے دنیا ته کتل
ګرانه ده، ګرانه، ډیره ګرانه ده
دلته شل قسمه دهوسان(*) ګرځي
ډنګ د شهباز کښې تیوسان ګرځي

ګیدړو بریت د ببر شیرو ایښی
غر مباکوی لکه شیران ګرځي
خوک د غریبې خوار لګه زنګ کښې
آدم خوارهٔ او شرمښان ګرځي

یو غټ پټکے، سپینه همسا لاس کښې
په اوږ د ډیره کښې شیطان ګرځي
زړه خو سینه کښې د پټ پټ پړو وي
نقشه ئې سترګو کښې رو ښانه ده

دا په خپل خود کښې دے دنیا ته کتل
ګرانه ده، ګرانه، ډیره ګرانه ده

(*) دهوسان = دیوسان.

یو خواته کند کښې د ملنګ سامړی
دَ فقیر نوم نے سپک بد نام کړلو
دے ملک کښې داسے وخت تیر شوے دے
بادشاه به سوال د خپل غلام کړلو

فقیری هیڅ جامه لباس نه لري
بادشاهی توره اوالماس نه لري
دا خو یو نور د ذره په زړه کښې بل وی
دَ روح مستی ده. نه لباس نه چل وی

دغه بو بل چه جونکے چا ښه شو
منکاری دے خوږے تاته دام کړلو
داچه هو هو لکه ګیدړ کوی
دا ذکر نه دے تاته خان یاد وی

یزید دے ناست په چغو چغو تاته
په کربلا کښې شهیدان یاد وی
که یو که لس ؤ مابه منولے ؤ تول
دغه شمار خو بنه آسانه ده

دا قسمه قسمه پیژندل منتریان
ګرانه ده ګرانه، ډیره ګرانه ده

اوګوره دغه دے یوصیب راغے
بریت ئې جنډ الکه قیصر نیولے
سترګې ئې سرې دي دَ شاهین غوندے
څومره مغروره ئې دَ سر نیولے

دَ دیرشو زرو په موټر کښې ناست
څومره ډولے ئې ډرائیور نیولے
سوټ ئې دَ زرو روپو لاندے نه دے
شمله ئې نیغه ده په سر نیولے

والله که سپے دے دَ ګیدړ بچے
هر دله توب ئې ته تهیت سر نیولے
نه دے په لوړنه دَ په ښغه حیران
لوړے ښکاریږي مینه ارزانه ده

دا قیصر شکله دلالان پیژندل
ګرانه ده، ګرانه، ډیره ګرانه ده
دغه دے یوځه شمله نیغه لری
ګورے خبرے په لاسونو کوی

دوه غلچکی ورپسے روستو روان
نغتے خبرے دَ خونو کوی

څه معجزه اوږد کوټ تک تور
دَ مولانا تور وقبا ښکاري
سپین پرتوک تور وبوټا نو سره
خیشته سپین ستورې د سبا ښکاري

دادِ بهیا[1] اتۀ[2] او ښکې ده
د پلاو رنیکه نوم او عزت خرڅوي
تا خرڅې، ما خرڅې، آشنا خرڅې
چه څه تې غواړې په دولت خرڅوي

دغه روښ غم، دغه بت شو شمله
په ټش دوکان کښې شان شوکت خرڅوي
څه چه ته غواړې، ښه داده په وچه
دَ ده سودا تول ارزانه ده

دغه چه سپین لکه ګلونه ناست دي
دا دَ رنا ورځې داکوان[3] کې تول
ژبې نې تیزې، چلولي ستر ګې
نیم ازمري، نیم لومبړان دي تول

څه ښکلې ښکلې مخونه او ښیار
بلا د خبرو سپین قارغان دي تول

(۱) بهیا: نیل، مالګه ګوړ وغیره (۲) ہٹۍ: دوکان. (۳) ډاکو: داړه مار، داړه اچوونکي

دوی په خوږه خوږه کښې مارو کوی

دانسبې باخه ښکاریان دی تول

پښتنې ته دولی قبا پرته ده

مسکو لبانو کښې بلا پرته ده

کرځی دنیا کښې په لکهاو تکان

هر یو د ځان له یو ښه اوږد داستان

که زه تول عمر کښینم، خلاص به نه کړم

دا تعارف ددے قلم په بیان

خو په انجیل کښې دی عیسیٰ لیکلی

دے د بنده دلید و یو امکان

ستر کې کړ کنے دی، د روح رنګ ښائی

ستر کو ته ستر کې همیشه ښائی خان

دُعا کوه، وے خدایا لاؤ (*) م نه کړی

خو ر په دنیا د د هوسے دے طوفان

چه سمه دمه ده نو کرانه ده

او چه آسانه ده نو درانه ده



(*) لاؤ: لاهو.

# چه آدم
# خاورو کښی کښینی

سر یتوب چه لوړ او چت شی لیونتوب شی
چه خودی د خوده وځی نو خمار شی

چه فولاد د وینے موږ په مینه مست شی
نو حیران او پریشان تار د ستار شی

خو تر ے عشق او جانان دواړه وخت فنا کړی
هله پوئے سړے په شان دخان او یار شی

چه آدم خاورو کښی کښینی څه زرغون کړی
منجیله چه په دولت شی نو بنا مار شی

ماته حُورے غلمان مه څنډوه بس دے
په والله که بے له تام په چا کار شی

دا چه نن یکښی زه مست او مغرور کړ خم
سبا خدائے خبر د چا به دا ګلزار شی

ستا د مرګه نه یریږمه پښتون یم

خوم تش جسدون او خوشې مرګ ته تیار شي

زړه کښې ډوب د وسوسو دریاب بهیږي

جوړ به کله د اُمید رنګین آبشار شي

دا خپل زړه ستا بې پروا نظر ته ګوري

کله کله په ژړا ځکه شاه تار شي

ساز ژړا ده که مستي ده نه پوهیږم

مړ آواز کښې کله سوز کله چغار شي



# قسمت

ملاجان وائي ازل کښې تالیکلې هر یو کار دے
یوله سترګو کښې شفق د کبل له مسے کلیخار دے
ستا تقدیر هره لمحه کښې د هر یو وینښته واکدار دے
یوله ګل یوله دلدار دے یوله اوریوله انګار دے
یو به تول عمر نالان وي، او بل تل بے پریشان وي
یو نیاز بین به په غنملو بل به پروت په بیابان وي
یو به ترېخ د سپي غپار کا، بل خوړل به لکه مارګه
یو به ښکلے ښاپیرۍ وي، بل به باوُوي توراباڼ وي (*)
مُلاجان وائي اے ربه! د هر خون ته ذمه وار دے
داتول ظلم تالیکلي، ستا د ګوتو دا آزار دے
دا بے رحمه افتونه، دا بے خایه رحمتونه
د حسین په مرګ توره، او یزید د ملک سردار دے
ملاجان وائي تا ایښے په آسمان کښې یو کتاب دے
چه هغے کښې تالیکلې هر آدم له هر یو کار دے

(*) توراباڼ دي چه د شهزاده بهرام په فولکلوري قصه کې یاد شوي دي.

نو چې دا سې انتظام دې اے زما منصفه خدایه
ما نه څه له کې تپوس، نه م واک نه م اختیار دے
ما کښې دومره طاقت کم دے چه ستا لیک د ابد وران کړم
نه د زړو ذرو خانې زه بې وسه خوار غلام
که زه خاندم که زه ژاړم، ستا یو تکے نه بدلیږي
دا بتان دي ستا د کوتو. دا کفرونه ستا الهام
دا حساب کتاب به څنګ وي. دا تپوس جواب د څه شي
هر کلاس چه د ما ځکلے ستا د کوتو وو اکرام
مُلاجان وائي ساقي هم د تقدیر د کوتو جوړ دے
مُلاجان وائي دا خیشت هم تا جوړ کړے د تمام
نو چه زه د ساقي سترګو ستا د کوړ ځان له بو تلم
ما کړه سپینه را وچته په آسمان ماه کلفام
چا نه تبکیل کړمه په دام کښې د سرور او درنا
چا کړه جام کښې راته ګډه په شرابو کښې خندا
او هغه راته روښانه سپینه شمع بلیدله
زه جلبل لکه پتنګ شوم. د د شمع په لمبه
دا به ته په کوم قانون کښې را کوے ماله سزا
تا آسمان کښې بره لیک کړه. او ما اوکړه په دنیا

چه اختيار نه وي جانانه څه ګناه د چا ګناه
راته ښکاري ملاجانَ چرته تللې دے خطا
که قانون وي که رواج وي که منطق که فلسفه
دا ګناخواے تقدیره توله ستا راوخته
که اختيار روي ګنهګار يم، که اختيار نې ګناه کم دی
داخو لاس دبري کار دے ته په هر څه کښې ټکره
وايا وايا ملاجانه که اختيار راځي قسمت ځي
د قسمت سره دِ واړه آرامونه او راحت ځي
د تنا ی ليکلې روک شي. بس ستا دخان مالک شي
که په باغ کښې دِ آرام ځي. که په لار د مصيبت ځي
بيا کيدے شي حسابونه دَ جزا دَ ثوابونو
چه سړے په ښه په بد په خپل وس په طبيعت ځي
خو قصه چه دَ قسمت شي، ملاجانه زه بري شوم
تل به ځم په هغه لار چه په کمه م قسمت ځي
زه موټر، هغه ډرائيور دے ځم په کمه چه م بيائي
که جات که ميخانه وي که په سمه په صحرائي
که موټر کنده کښې پريوزي، نو ګناه د موټر نه ده
دا چه هر قسمه سزائي د ډرائيور سره ښه ښائي

که ګناه ده که ثواب دے، زه به د واړو کښې بے وسه
مُلاجانه دا کتاب دِ خوخه برغے ژبے وائی

زه بے وسه ګناه اوکړم، بل بے وسه ثواب اوکړي
به دِ دواړو کښې به کم یو قسمت سور دوزخ له بیائی

ښهابوتله خوسړو پ جفا ده دغه بل کښې لا ځاے شته دِ
دے جهان کښې خو به ئے عمر سبه تیر کړے به خندا ئی

ما دیو بے واکه اوره بیائے بل بے واکه اوړته
بیا دا سا خویو غضب دے، که دا بعیه ددے سائی

ستا کتاب به دے کښې څه وی لبزم پوئے که ملاجانه
یاخو راشه کو د شروع که قلاړ کښېنه د آسمانه

یاخو تله مله نه ده، دجبات کړه دینګرے ده
یاخو تا څه اکو بکو ایجاد کړي دي دځلنه

وران او سم د بل د لاس دي که ده وران که ودانه
اوړ او ددد او مېنا ماران به چاپیره وی زمانه



# مرګ

ماتم وُ د خانانو د میاګانو ډک کمونه
پخې پخې خبرې وې او کلک نه دَلیلونه
ټولو په نظر کښې یوه لره یو ارمان وُ
روک شوې تر منطق کښې وُ د حسن امیدونه
دَ مرګه یریدل داسې چه ژوندُو ورته اوُده
غرې دُ پلاونو ښکاریدې ورته قبرونه

دَ ټولو سترګې وازې، لکه اسپې تریدلې
· نغه خغه خبرې او پاسته نه آوازونه
چه زه شوم ور ښکاره یو یار مې بیا ته لګیا وُ
لا له ډیرې مرې شم چه دَ مرګ مخ را ښکاره شي

چه فکر مې ور سا نه شي زړه مې ولویږي خوږیږي
د ژوند هر یو امید مې د هیرو ذره ذره شي
یو تور غوندې ښامار وازه خُله ناست خړې عَلمونه
هر چا ته چه شو په هر چا دده حمله شي

نه خوان کوری نه زور د قصر او رد دم څه سیزی
که فکرو رته وکړے ژوند یو توقه مسخره شی
او توقه هم بے رحمه. توقه نه ده سر لمبه ډ
داخه مطلب د ژوند شوچه خاورے خاتمه شی

وے وایه لا له وایه څه به پته خوم یوے که
په کم هنر به جوړه د ژوند ورانه ماشومه شی
که تا پکښ څه خوند مطلب لیدلے وی نو وایه
زمونږ په خیال خو ژوند یو د ډیر ورو دے کاروان

کوم بو دار بستیا دے" چه پیدا سو نو تباشوے
دا داسے جوارئ ده. هر یو داو د ده تاوان
یا لس کاله یا شل سره به او ران تے کښ تیر کړی
آخر ے چرته تورو تار خانو ته کړی روان

د هغه خاخبرے قیاسونه دی دعوے دی
په عقل چه نے کوړے خرافات هر یو بیان
لږ عیش. لږ خوانی. مال مجبوبه. بس دغه وایه
بس یو خیام خبرۀ نور راندہ دی شاعران

زمایه خوا کښ ناست یو لیونے ؤ په خندا شو
وے واوره دا خبرے د باچا د دسترخان

وے دا ژبه د پیریانو، دَ دښتے دَ بیابان
دا نشته په کتاب کښ دَ منطق او دَ امکان
نو تول ترینه راتاؤ شو ښه خیشته او ښیار مخونه
په سترګو کښ تیرے وے، خو ستندئے وو روښان.

وګوایه لیونیه خلق وئی ته مرګ ته خاندے
دادګے کښ دَ خندلو څه خبره ده آشنا
لږ مونږ هم خبر که کنه، یار چه په آرام شو
که تا چرته کښ پته وی مونږ له مامله

هغه پاڅید په سپین دیوال ئے سپینه کرښه راښکله
وے خان دغه جواب دے دے ښتے دَ مرګ او سا
هغوی چشمے کړے پاوے "والله که مونږ څه پوهیږو
په سپین دیوال سپین خط چرته لیدے شی بابا

هغه وے که مرګ نو ژوند به هم دَ غوسے روک وو
چه عقل دانسان کی بس دَ فرق اندازه
چه سورے او تیاره نه وی رڼا نشی لیدلے
دروند نظر کښ تل وی یا تیاره او یا رڼا

چه دواړه یکښ راشی رنګ خائشت حُسن ترے جوړ شی
که مرګ نه وو، دُنیا کښ څوک به څه پوهیده په سا؟

تول حُسن د جمدانو د مرګ د تورو سترګو نور دی
دا ده په تور جهان کښې تول رنګونه د دنیا

که مرګ نه وُ، ژوند به نه وُ، که بڼ وُ سبه به څه وُ
که توره بلا شپه نه وې چا څه کاوُ سبا

راځه زما ګلابه، ژوند او مرګ دواړو ته خانده
په دواړو کښې یو هم نه دے لایق ستا د ژړا

که خواه مخواه ژړا د هغې انسانانو، خانانو ژاړه
چه دغه په رښتیا، او که ګُلا کے دے د ژړا

یو حُسن رب ورکړے د چه ژوند له معنی ورکړی
او د غریب تے خانانو جوړه کړے ده بلا

خزان که نه وُ، نو یو ګلاب، یوه میوه نه وه
که مرګ نه وُ جمانو به یو رنګ خوب وُ په دُنیا

که نه وے سمندرونه، به جهاز نه به بیړۍ وه
که نه وے بلا توب خواني به څه کوله چا

یو زهر دی خوائے له او مستئے له اور نا له
د ژوند چینه د خضر چه یادیږی په دنیا

انسان دریدی ګل دے، د ده کور د بیابان
بهار د ده خواني ده، خوږبانو نے د خزان

که یو مځی خطا شو، شي به ورک م ګلستان

او ورک شي هغه سات دَ ده دهغو دَ احساسه

کم شي چه ورته شي قایم، دانسم، او جاویدان

دا اتروند کښې چه خه خوند دمرګ جوړ که پیدا په جهان

که مرګ نه دَ جهادون به وَ، د ورکو ورک جهان



# یوآن

قسمت کښېنه په آرام کښېنه
سبا له ولې که چې څه د خوښ وي

د سپین سبا په مخ خالونه کېږدې
چرته او چرته تور لالونه کېږده

تر اخره برخورمه که تر اخره د خوښ وي

خواوس م یار لږ مسکې شو یې
قسمت چپ شه ژوند شه په قرار

وخت د خدای دپاره سا واخله
دغه لمحه م که د کال مقدار

سبا شو ستا خو نن که یار د واکدار

ټول ژوند دِ ستا د یو بخرے زمونږ
ټول ژوند م واخله خو دا سا پرېږده

نن دِ دفتر که بند او سترګې پټې
قلم دِ ما ته که دا سے ما ته پرېږده

واوره ، اوره ، واوره ، دوه خبرے زمونږ

په توره شپه کښې دغم غاټکی دننګ
پرېږده چې رنګ پکښې ټول جهان که مه زه

دخزان سترګو کښې تصویر دګلاب
دمقبر په مېنځ کښې شرنګ د رباب

جهنډ دخزانې قسمت م ستا دی واخله

قسمت ما ته دا یو آن پرېږده

سباله تور که ټول جهان په تېرو
خو دا لمحه ما او جانان پرېږده

بس چې زه ولیکم دزړه په کتاب
دخزان سترګو کښې تصویر دګلاب

# رنګ

سبا دے په رنګونو کښې زرکیه دخوانئ رنګ
مرګ او غم له ورکی دَ جمدونو چاودانئ رنګ
هن هن په ممبر او محراب کښې بقبور کوی
یادشو ملاجان ته دَ کوکۍ جمدانئ رنګ
زیره شوه دَ شرمه دَ یبرس مسته بیبا نه
وے لید چه دستر کو دخړے پاکستانئ رنګ
سرلنډے تے جوړکړی چنجرک او قولنګی تے کم
توپ چه کله ووئی په بډا کښې دخوانئ رنګ
وربے شوندے وخاندی په تش لاس شمله نیغه کی
کله چه شی پوره غنی خان کښې دَ خانئ رنګ



داخوستا په دربار کښې قبلولوله
کله شین، کله سپین، کله تور شمه

داخوستا قدم په ارمان کښې زه
په ازغو د قالین په شان خور شمه

داخو تا ته خپل خان بنګارکولو له
کله ساز کله رنګ کله اور شمه

داخو زه دَ جمدونو یو آواز یمه
خکه خکه یاشرنګ شم یاشور شمه

# کله وړے

جنګ د دسمبر کانو، چینه خوبی بی نے یوړه
ورانه په وروشی چه د غتوشی جګړه
سرله د غوندے چه د سیلاب چپه نه هواشی
کندو، دنده و کوکښ به نیزو خوره کړی خړه
غم د سبا کوه به سبا، نن د نن مزه واخله
خانده خوشحالیږه، وارا کاره غوړه زیږه

داخو بس بو عشق دے چه ګنبل کړی بے غرضه
هسے خوک ناری کښ چاله نه وړ کوی ګوره
هله به خبر شے چه د کند ے مینځ له ورشے
زاړے به محل کښ یاد وے به دی جونکړه
بے سره سر د غنی نه دے د خر شول سر
خکه مدام سپوره خوری نصیب کښ نشته غوړه





# تصوّر

زه یم ناست خان له جانان یو تصور کښې جوړومه

کله ئے سترګے تورومه. کله ئے شونډے ښکلومه

زه یم ناست د غم په هار کښې د درنا بخرے پیمه

خُم د رنګ کښې لا خمار شته، زه ئے لپے ډکومه

د ښنځي کوتو دِ ځار شم. څنګه ښکلے ویش دِ وکه

زه یو څاڅکے خو ځګر کښې دریابونه ګرځومه

زر او زور او تخت دِ واغښت. خیشت. نظر او خیال دِ راکه

دَ سرور په سُور طوفان کښې دِ کړه ډوبه لوئی لمحه

دا یو غم دوړیشه پاتے چرته بیت تیاره کښې ناست وُو

رو رو بیت مِ زړه له راغے لکه مار د ښکار په سمه

په ګرځه دې رضا يم د لالونو زړو خانه
غم ځه، مرګ م هم قبول دې په خندا نه قبلومه
داخو تا اور اور ګړے يو د سرور ماته بښلے
ځکه زه دې تور محل کښې خپل خوبونه بلومه
خلق وائي لاړ بلا اشنو، غنی خپلے مستۍ وخوړه
زه يم ناست د يار ويښتو کښې د نرګس ګلونه ږدمه
مرګه نه چرته ګرځيږه زه لا نه يمه اوزګار
خُم د رنګ کښې لا خمار شته زه تے لپے ډکه ومه



# دَسامري محل

شمع نشته دِ رڼا نشته   وجود شته خو سرور نشته

رو مِيدل او ترقيدل دي   لمبه نشته دِ اور نشته

عجيبه د رند و ښار دے   ستر ګے شته خوليدل نشته

دے کوڅه کښې دَ مليانو   ښلنګونه دي جام نشته

دا مکه دَسامري ده   خانان ډير دي خيام نشته

ياداکور وُو دَ منصور   دلته خاورو کښې مستي ده

دلته هوش يو مست جنون وُ   دلته مرګ خه وُ هستي ده

دلته حُسن د وحدت يو   دعاشق بت پرستي ده

عبادت دَ ستار سُر وُ   بند کې خه ده دوستي ده

يا خو دا تا تمام ژوند   هم آخر و هم تمام

دلته دا زما خوبونه   هم اَبد وُ هم دوام

اوس دا ښار په ورانيد و دِ   جمات شته دِ امام نشته

هسے نوم شته دَ ګلونو   د باغونو سمام نشته

هاے افسوس چه جمدُن وشتمدِ   سُر سُرور د جمدون نشته

محل جوړ دے ليلیٰ نا سته   مجنُون نشته مجنون نشته

دے عجب دَ رنګ جهان کښ     سپین غالب دی او تور نشته
روتیدل او ترقیدل دی     لمبه نشته دِ اور نشته
عجیبه لار م نیولی     نه پړاو شته نه مقام
نه جنون نه بےخودی ده     عجیبه زما ماښام
نه ښانست شته نه رڼا شته     عجیبه ساقی او جام
نه خندول نه مستول کړی     دا زما ماوِ ګلفام
او زما په دِ جهان کښ     دَ رڼا خوریدل نشته
ستر ګے شته واز او تشے     دَ خوبونو لیدل نشته
دلته او ګوره جانانه     ستا په غم مستیدل نشته
دلته او ګوره دلبره     ستا د نور بلیدل نشته
دلته رنګ نه رنګینی شته     نه شراب شته نه خیام
دلته شرنګ او غورځنګ نشته     تور او سپور او نسکور جام
دلته چغے دی دَ نن     نه سبا شته نه پرون
دا محل د سامری دے     نه منصور شته نه مجنون
دا جهلون د تیرو ډک دے     دلته رنګ د خیام نشته
دلته تول تشویش تشویش دے     اُمید مړ دے آرام نشته
دے تک تور دغم وطن کښ     اور بلیږی اور بل نشته

عجیبه دَ رندو ښار دے
ستر ګے شته خولیدل نشته

# کږوړے ځي په شا

چه زور په مخه وکړي سخته اوږدي ډېره
مازغه ورله کږوړو کړي خپل رقیب کاندي اوتره
ډلوے راشغله شي، توپ وچت وکړي په بره
یو تنله د ځوانے په زور د خپل طاقت نشته
کږوړے ځي په شا

کږوړے ځي په شا چه بل له او لګوي شا
کږوړے ځي په شا

وي مړ خپت مړشي ته په غصه داسے په قار
په مرچا دده دق دے که وي موړ او که وي خوار
بل زور خپل ورته ښکاري خاص د ننګے (خپلے) یار
خپل زور ته اور آفت پردي ته نه لري نشه
کږوړے ځي په شا

یو تنله په خلوړي، اور د زور، آفت د جنګ
په ځان دے نه په بل، لیونے کړے د خپل ننګ
که ځا دي که بے ځا دے د بس جنګ او جنګ له جنګ
غیرت یولا مثاله په خپل جهل کښے نشته
کږوړے ځي په شا

# جلال

چه زه غواړم د مېړونه مستي سره ګلونه جوړ کړم
د سرو اوښکو نه سرې شوګلې، د زړه سرونه جوړ کړم
د خزان تیاره کړم ړوبه، د امید په سمندر کښې
د ګنجګونه لالونه د غلو پلونه جوړ کړم
چه دا روح مې په ښکاره اوځي، د رنګونو د خوبونو
که نور نه وي د تیروزه رنګیني نور ونه جوړ کړم
چه د خیشت شم زه لېواله، د صحرا مره ذره کښې
په زړه او بوستانونه، په لکها ګلونه جوړ کړم
چه زه ورېږم دا رمان شم د سپرلي په سپين سبا کښې
بې حسابه ما ښامنو، بې پايان غمونه جوړ کړم
تور او سپين زما دستر ګو، کله تول کله تلل دي
شپه او ورځ زما نظر دي، دواړه کول دي او موښتل دي
که خندا ده که ژړا ده، دا زخمګر مشغولول دي
که وصال دې که فراق دې، خپل سره ورته ګډ يدل دي

چه زه مست شم د دیران سره خیشته کلونجور کړم

د سرو او سپکو نه سره شوندې دجراسره نه جوړ کړم

چه زه نیت د کتے او کړم د پریوتی د شکست نه

د فاتح د سترګو کبر او د شونډو غرور جوړ کړم

دا چه زه ځان له یو تخت د رنګین بادنه ودان کړم

د غلام خواری بدله د پادشاه په رنګ سرور کړم

دا چه ته ئې اے جانانه، دا چه ستا مستی رنړا ده

دا زما مینه ارمان دی، دا زما ژړا خندا ده

د ملا خبرے خوشے، معامله ستا او زما ده

دا داستان د لوګے نه دے، دا قصه د عشق او ساز ده

دے زما سره رکښ پټ راز ستا د حسن او کمال دے

دا زما کمزورے سترګے ستا د خیشت جاه و جلال دے



# دا زموږ غونډے
# ډُرکو کمه لاړ؟

خوش نصیبه خوش قسمته وے منصوره
خلقو جوړ که دِ له دار څه مزیدار
مار او ړے دے زړګی کبن له ازله
هم منصور هم نے سرور او هم نے دار
وایا وایا د رندانو بابا وایا
دا زموږ غونډے ډُرکو کمه لاړ؟



# زما محترم رور سردار علي خان

## (امير جماعت اسلامي) ته

دا چه ته په سجدو پرېوځې او زه ډک د مېو جام کړم

دا م زه غواړم فرار، دا هم ته غواړې فرار

ته لټې مغ جهان کښې حورې سپينې کل اندامې

زه جنّت دلته لټومه. نشم کولې انتظار

تا په قرض حباب ورکه، زه ترې نغدو سودا غواړم

دلته سبه شي په بيو پار کښې، که ما سبه اوکه بيو پار

شيخه راشه ميخانې ته، چه مقصد زمونږ يو دې

ستا د مرګه پس قرار، زما دلته کښې قرار

نور د سوال مقام مو يو دې، دغه خاموشي يک دې

يو ارمان د دواړو زړه کښې کړې جدا جدا اظهار

پتنګان د يو شمعې، که بينا دې که شمکور دې

دا غني ده حاجي صيب، ليونې دې د زړه يار

# بینوا ته خط

بینوا په هشتنغر (*) کښ ستا یو رور دلته اوسیږی
هر سړے پیژنی ستړے، پټ پټ شونډو کښ مسیږی
ستا قلم چه ژړولی او بنکے د هغه ستړے کیږی
تا چه خپل درد په ژړا کړی، هغه دلته کښ ژړیږی
دلته ناست په هشتنغر کښ ستا یو یار دے په رښتیا
په خانانو کښ یو خان خو، ستا په شان دے بینوا
خلق وائی لیونے دے عجیبه کوی کارونه
سره او سپین د خانَ ولی چرته گوری زیړ گلونه
د شرابو جام په لاس کښ او زده وائی حدیثونه
کله غواړی په مسجد کښ دَ الله نه شرابونه
تول بے توله شان تلل کړی د مرگی او دَ دُنیا
وائی که ستړے د مرگ نه وے ژوند به نه لیدلو چا
چه نه روغ وی چرته جمع دے به ناست پکښ حیران وی
خپل غمونو نه بے غمه، او پردو ته پریشان وی

---

(*) د هشتنغر یو کلی اتمانزی دی، چه د خان عبدالغنی خان پلرنی ټاټوبے دی.

په غرمه کښې به يوازې چرته ښروکښې روان وی
د ملا د ذات دښمن دے، دير خوانه وته ډمان وی
مات تو يک د منطق داخلي نسبه ؤلې پرے د رسا
عجيبه ورانے خبرے، مرچکی سره حلوا
ستا په شان د ده زړګې هم د م خوار سره خوږېږی
په وجود ئے خرمن نښته په بخرهے اور سوزيږی
زړه ئے دک د ميو جام دے، که لږ رقی نو توئيږی
تمبه وکړينه ئے اوردے په لږ تاؤ سره لمبه کيږی
ستا د هر تنک سره هنګ کې يو ستار دے بے بها
نه د نوی قندهار دے د زوړ (۱) دے باشنده
ستا دم سر سره رپی، يو شا تار ستا د رباب دے
نيم او ښيار نيم ليونے دے، مرا و شو شان گلاب دے
از غي دير شو خا ئشت کم شو، وائے دا انقلاب دے
زه طوفان يم سمندريم، په دغه که څوند حباب دے
زما خاوره کښې دير نور شته، تشه نه لری دا سا
زه غرور ننګ او سرور يم، سره رنځ عينه م زړ ا
ته چه کم رنګ کښې غوبه شے دے هم هغه رنګ کښې نغښی
ته چه مست بيا تن ورشے، دے ګنګروشی په ښه رنګ شرنګ شی

(۱) د وادی پېښور زوړ نوم قندهار ؤ. لکه چه باد وفی بابی د خان مطلب قندهار نه، بلکه گندهارا دی. (مولف)

ته چه غم فریاد شروع کړې، دې بې خوبو اکه نهنګ شي

ته چه توره کړې راپورته، د یوسف نرتوب په جنګ شي

بل د ده په شان به کم خاخان له رور کړې راپیدا

یارانې له داسې یار، داسې بل د زړه آشنا

ستا په زړه کښې چه کوم نور دې، ما کښې هم هغه ځلیږي

ستا د زړه چینه د رحم، دلته رورد دې چه بهیږي

ته چه وینې کم خوبونه، زما سترګو کښې غړیږي

ته چه زانګې په کم تال، په هغې غنچې زنګیږي

بینوا په هغه شعر کښې ستا او رور دلته اوسیږي

بېرسره پټې سترګې، خان ته خاندي او ژړیږي

کلمنګ کله تکور شي، کله ساز کله ژړا

کله وو دو کښې لړلې، غیر تو نه فلسفه

دیر خیزونه رټب ورکړي چه منا دیږي په دنیا

چه څه غواړې هغه نشته ستا په شان د بینوا (*)



(*) مراد د پښتو ژبې لوی لیکوال او شاعر مرحوم استاد عبدالرؤف بینوا (۱۳۹۳ هـ ش مړ) دی چه پښتو ژبه نې په نظم او نثر کې ډېر خدمتونه کړي دي. او خصوصاً (...) یې هم نوموړي د ده په علمي کېدو او ... کېدو کې نې پېلمه شوي. استاد عبدالرؤف بینوا (خدای دې وبخښي) تر څو شعر یات مستقل آثار او لیکنې تر ... مقالې موږ ته پرېښي دي.

# پلوشه

هوش دِ دَ علمونو نه جدا جدا روان شو
خدایه ولیونیه جوړ سم لیونی کیږي
مرګ کښ دا ښکاره راته جمدن یو جاودانشو
زه ورپوري خاندم دنیا، ته وېره ژړیږي

# پلوشه

ن ربابي د خیال دنیا جوړ ــــــه بدله ده
نوې دِ مضراب دِ نو لاهو کښ غــــــړیږي
هغه دِ رباب هغه پرده خوښ نه شان دِ بل
داد کل تال دی، یاره پاخه که کیږي





# نقاب

داچې زه ځان لیونی کړم، دا زه تنګ شمه د ځانه
شیخ بابا ته لګیا دی، مسئلې کې د عذاب

زه خو دلته په عذاب یم، د دې خپل خود او احساس
ځکه کله په سجده شم، کله او څښمه (*) شراب

چې بې حسه شم رو کېږم، چې احساس لرم سوزېږم
نه طاقت شته د سکون او نه همت د اضطراب

چې حیا پېږه نظر او کړم، همه پټ او ښکاره زه یم
دا شراب دې ما جوړ کړې، ما جوړ کړې دا محراب

مذهب څه دې څو رسمونه، مسئلې او منطقونه
او د هغې سوال جواب دې چې نشته د جواب

(*) وڅکم، وچښم.

جانان تش د عاشق مينه، د خپل زړه وينه خټمل دی
چه ديروړے شو مجنون، ځانځے که ځان له کباب
رباب څه شے د مرګله ورے او د توت او چه تنه ده
خو چه سوز د آدم راشي ملهنګ وکړي رباب
کله نو کله رنا شي، کله غم شي او ژړا شي
دا ځيګر د رباپي دے، چه هم جام شي هم شراب
خو دا زړه م راته وائي، دا ملهو کی م کونيزړی
چه آخر به څوک او ځت کړي د جانان د مخ نقاب



# اختر

غنی او خور داسے غم نه دارو لری نه دم
کل جهان دِ ستر کے ستر کے نشته ستر کے دصنم
خلق وئی اختر اختر دے ماته ښکاری محترم
چار چاپیره سازاو شرنګ دے ماله سوز ښېرا او غم
چه جمله ون په کمید وشو شوهر خیزو به سره کم
د شهوت نه وحشت لاړ د نیکئے سرور شو کم
د ګناه نه مزه لاړه پیکه خوله شوه د صنم
نه په بام د لیلیٰ مست شوم نه سایه کښ د حرم
خلق وائی اختر اختر دے
ماته ښکاری محرم



اختر خو سترګے دوه د دلبر دی مسکے مسکے شان پکښ نظر دی
ایماں چه زړه یو ړک د درنا دی مرحبا کعبه دی مرحبا کوثر دی

خوارہ د شعر همه احساس دی — چه ځیګر تش وی تش د اثر وی

حُسن خو ستر کو کښې دَ عاشق وی — رڼا دَ ډوی روښان دِلبر وی

رنګین ګلونه، شګے صحرا شی — تش دَ رنګونو چه دَ چا سر وی

جهان دِ یوا ور شی توره بلا شی — چه سېرے نه ئے مانه یګړی

جانان په ښنګ کښې خمار به ستر کو — د وصال مخت اختر اختر وی

خو نه دِ لډا ښته او نه خوا ښته — دَ داسے ژوند به ښه سقر وی

لا اربابا شوے جور دَ غني خانه — د کونئی تاو دِ آخر قرار شو

دَ رنګینئ وار دِ لاړلو تېر شو

تره سامان دِ اوس به سفر وی

زه نه یرېږم دَ سفر و نو

دَ جمدون هره لمحه سفر وی

خوږ دې وی م داشوم قسمت خپل

چه یا سبا وی یا مانېګر وی

ځوانی مستی م چه کم خوا لاړه

ورپسے خدا یږدهم هاتځمه

لاړ دَ عالم وی که دَ تورت وی

که تور غمونه که سور سقر وی



# تپوس که جواب

وایا وایا ملاجانه — ژوند تپوس دے که جواب

ژوند وصال دے که جنون دے — که آرام که اضطراب

ژوند امام دے که غلام دے — که ممبر دے که محراب

که یو مست غوندے جهان کښی — رنګین خوب دے د سراب

که لمحه د نور کمل دی

د دے تور تاریک جهانه

ژوند تپوس دے که جواب دے

وایا وایا ملاجانه

ژوند فرعون دے او غرور دے — که جنون دے او سرور دے

د نمرود د زر و تخت دے — که رنګین مرګ د منصور دے

د احسینؑ مسکے مسکے دے — که یزید مست په غرور دے

دا بهار دے، که ګلاب دے، لږ پټ شو د خزانه

ژوند تپوس دے که جواب دے، وایا وایا ملاجانه

ژوند یو مست د میو جام دے — که یو مات د غم کچکول

لیونۍ د خیام دې — که اوبنیا رخ د بلبل
یو رنګین باغ د ګلونو — که د اور د ازغو شپول
که یو تیښته او فرار دې
تښتیدلي دي له خپل ځانه
ژوندی توپیر که جواب دې
وایا وایا ملاجانه

ژوند یو خیشت دې چه خوړېږي — که جمال چه خاورې کیږي
دا ساز خپل مرګ ته کړي ساندې (*) — که یو اور دې چه بلیږي
د دې تلو، مقام، دمه شته — که د سا نه سا تښتیږي
منګوټې که د ارت دي — څه ډکیږي څه تشیږي
که یو نور دې چه خوریږي
نا خبره د خپل شانه
ژوندیتوپیر که جواب دې
وایا وایا ملاجانه



---

(*) ساندې: دمرې یا ستاینې.

# تلے مرګ

به لګما کاله اوده وي — یو ساعت له دا بیدار شي
خو لګما به نور او ده وي — چه روان د مرګ په لار شي

شاته تور یو سمندر دے — مخکښې لا توره بلا ده
مینځ کښې یو د شبنم څاڅکے — په غورځنګ لکه آبشار شي

د آدم زړه د کتور دے — د ده توره دریابې ده
دا سے تلو دا سے راتلو کښې — دے خوږ شي خمار شي

وو پکار چه ساعت ږدو نه — په ژړا ژړا تیر وے
که دے ډیره په لیلیٰ مست شي — خو آخر به د مرګ یار شي

نه په تلي مرګ ستومان یم — نه راتلونکي نه پریږدم
زه به تل د غمے خاندم — که به اوږ شي که به دار شي

پاتې پاتې د قیصې شوې — د دوزخ د حسابونو

دغه شي د ملاجان دې — زه خو ستا د سینې یار

اوکه وې چه سوزم، سوزم — عشق کښې نشته انکار نه

زه خو شیخ مُلا خو نه یم — چه نه کار کوم نه انکار

خو د سولو د جړه نه یم — ساهو ښانکه د ښا توت یم

رانه جوړکه یو دنګین — او او نګین غونډې ستار

که یو تنګ دی که زورتنګه — سبه په سُر کښې بغږېږم

یو قطره ستا د دریاب — یو ښکالو ستا د خمار

اې زما دستر کو توره — دا یوه خوږکښې واوره

دلته سوې یمه دیره — نور دې پرېږده په قلار



# لټون

غرمه د اوري
لکه شپه د ژمي
یو خاموشي
او قلار ے خور دے
د کور کور کو کو کو
او چپ چاپ عالم هو
وخت خپه نیولے
په رکاب سور دے
دُنیا دِ خپل زر کی ته غوږ نیولے
د مرګ او ژوند حساب کتاب اوري
فضا کښې کړ یو مسکے توب شان دِ
لکه په خوب کښې ځوک رباب اوري
او زه یو اځے
په خیالونو کښې ډوب

دَ خپل ارمان
تلاش کښې کرځمه
یو روک
مجبوره
مسافـر
یم روان
په مزکه پروت
په آسمان کرځمه
ما دِ هم خپل زړکی ته غوږ نیولے
د ژوند څه وجه څه نساب لټوم
درد له او مرګ له څه سوب(*) کوم
ابد کښې خپل د هوش حباب لټوم
دَ ولے ولے
په دریاب کښې روک
جام کښې شراب
او په شرابو کښې
په سُورکتاب کښې
دجمات د تاخ

(*) سوب: سبب .

زه مرګ اوږوندله
یو تړون کوم
چې چپیا
او خاموشۍ
کښې زه
شرنګ دستار
د تال مضمون کوم
چاپېره رنګ کښې
شنو کمترو کښې
ځان له جواب د چل جمدون کوم
زه لیونۍ یم، لیونۍ یم، د ښتیا
په میخانه کښې افلاطون کوم
ځان ته چه ستر ګې م را وارولې
بس
مرګ
او نیش
وږ ینمه
زه لیونۍ یم، لیونۍ یم د ښتیا

د مرګ په سترګو کښې جمدون ګورم

غرمه دَ اورې

لکه شپه دَ ژمې

یو خاموشي

یو قلاردے خوردے

چرته کښې لرے

یو بخرے

دَ نور

ستورے ؟

که لرے د صحرا اوردے

ما ته ورو کو

پلوشو

کښې وائی

که غردِ لوئے

په سرئے لار خوشته

څه ؟

که جمدون

یو روک

ساعت دِ

دهوش

یو

ابدي

دَ دهٔ، دلدار خوشته

زړګیه، ځان ټکے که ماټکے

ښنګه ځان خلاص د هر جنجاله کړے

زړګیه، اے ته زړګیه زما

ځان کښې مشغول او ما خوشحاله کړے

خوستانه منم

غرقیږمه

سم، په رښتیا

لیونے کیږمه

د اضطراب په تور دریاب کښې زهٔ

او س سرسری یم بیا ډوبیږمه

په تورو ویرو کښې ګرکیږمه

دلته په خپل اور کښې سوزیږمه

په جمدو ن تورے خاورے کیږمه

په خپلو وینو کښې ډوبېږمه
غرمه د اوړی
لکه شپه د ژمی
یو خاموشي یو تلاړے خوړ دے
چرته کښې لړے
یو بخرے د نور
ستورے، که لړے د صحرا اوردے

ماته ورو کو پلوشو کښې وائی
که غرِ د لوئے په سرکے لاړ خوشته
څه که جمود یو گړون ساعت دِ دموش
یو ابدی د ده دلدار خوشته



# کاروان

یو نیم ژوندک د مستۍ وی، یو سهر دی چه شرنګیږی
پردې توله په خپل ځا وی، پاکې ښې په سرغږیږی
هر یو تار مست بورا وی، چه کلونو کښې بو نښکیږی
هر یو تال ئې جنت په تول کښې، زیر و بم پکښې ګډیږی
خوشحالی په چورلکونو، په شاډولو[*] پکښې دانګی
یو هوش مست په خپل سرو رکښې، د خمار په تال ئې ځانګی
یو نیم ژوند خوږ او بې نوره، ګډ په شلو ځپو[**] روان وی
هر قدم ئې یو تیندک وی، تور په غم ئې کل جهان وی
هر آواز ئې د درد چغه، په خپل اور کښې بندیوان وی
د آرام په ارمان سوی، لکه غرڅه ته میدان وی
د غمونو سیلابونو کښې روان یو ګنګهر وی
په جهلون دوزخ کښې پروت، نیم ژوندی او نیم مړ وی
یو بل ژوند د شمع ژوند وی، لا به مړ لا به سوزیږی
هله نور او رڼا راشی، چه په سر ئې اور بلیږی

(*) شاډوله: یو ډول ملی نڅا ده. (**) ځپو: پښو.

ے یو اور دی سوز دل کړی، لاس د چم په سوزیږی

پل د ښمن د بل غلام وی، ځان سوزی بل ته ځلیږی

نه نور دَ ده انعام دے، دَ قسمت گوتو وړکړے

نه اور د ده جمدون دے، چه جمدون دے لګولے

ومره قسمه دَ ژوندون دی، خو بچي چه د آدم دے

وک په یو ځائے کښې لړز لوئے دی، څوک په بل ځائے کښې لړز کم دے

د کاروان کښې هتول روان دے، که راندہ دی او که سم دی

وک په چغو څوک مسکی دي، څوک خمار کښې څوک په غم دی

قافله یوه روانه، یوه لار، یو ے منزل دے

ترمخ کښې څوک روان دے، سپین مشال دے او وړ پړبل دے



# نه کیږي

چه په خاخلکی کښ مستي ددې یاب راشي
لکه ویر کښ سُر او رنګ دې باب راشي
صحرا لاله شي سمندې کړه خنداله
او چینې سره یارے له سراب راشي
لکه غم د خوشحالئ کړه میلمه شي
یا په مرګ قبر باندې وله شباب راشي
لکه خوند له د ایام د اوربه ستر کو
په جمات کښ بګل، ساقي، او شراب راشي
لکه اوره . اور زرګے په نمر منبین شي
او دغر زور او پښتے له حباب راشي
دا زما او ستا یاري ده دے عجبه
په شبنم کښ چه طوفان او سیلاب راشي



# راکه ساقي راکه

راکه ساقي راکه، شراب نا(+) اور م په کار دے
زړه م تورے خاورے ها(*)م تا ورانه انګار دے
پرېږده چه نے وڅوم، دا زړه نه د يو سزا ده
ساز سرور دے ژر کشو، بس يو څو نور بې قرار دے
ده په زه ګرځولم، مئينولمه، مستولمه
اوس م دِ سينه څکي، بس تش يو د هغه ديوا زار دے
ميړه توب کډا شوه، اوس نه تال د نه شرنګار دے
راکه ساقي، راکه، شراب نا اور م په کار دے
نشته هغه زور سرور ساقي ستا په شرابو کښ
باغ نه حسن لاړ، رنګونه کم شو په ګلابو کښ
واچوه سور اور د جام کښ راکه چه مستي شمه
مست ليونے نه شوم هسے شمار شوم په خرابو کښ
دا د خه جهدون دے چه م هوش پکښ په دار دے
راکه ساقي راکه شراب نا اور م په کار دے
بهار راغے، بهار لاړه، زمانړ ولد سوے ګلزار ووُ
يو تباه تالا ګلشن ووُ، په څپل اورکښ ګرفتار ووُ

(+) نا. نه (*) ها صر، بهر = د باند ے

یو بې کوره، بې آرامه، سرګردانه مسافر دم
نه زه یار جانان د چا دم، نه زما چرته دِلدار روُ
جهان تش د جهان دردوو، هغه ښکلې جانان نشوُ
هر نظر چې د سترګو، نوې رنګ نوې خمار روُ
زړه م توره ادیره ده، د تیارو تاریکو ښار دے
راځه راځه ساقي راځه، شراب نه، اور م پکار دے

یو بې حسه، ډوب قرار دے د مرګ ښکلې مکان
که ساوړنی، اور م وړنی. د تیارو دغه جهان
تورو سترګو کښې نشتر چرته یو د اور بڅرے
یو بې خوده چپ قرار دے، د ده کور د لا مکان
نه د اسوز، نه د ناټالاش شته، بې جانانه فراق نه
ابدي وصال، وصال دے، مرګ دے داسې ښه جانان
د ده کور تورے لرے د غملونه ښستې دي
تورو لاسو کښې نے رحم په غریب سوی انسان
د ده ملک کښې ډوب آرام دے، یو بې خوبه د خوب دے
روک جهان، روکې احساس، یا صلیب لیونتوب دے
راوړه، راوړه چې فنا شم، زړه د ژوند م بې زار دے
راځه، راځه ساقي راځه، شراب نه، اور م پکار دے



# دیو داسي

په کوکوړے کوکو شتکے، تورانئے په تنانه

په چپو چپو مستي به د نسیم چپو راوړه

سحر راغے لکه زېړے، د خندا او د رڼا

غنچے تولوے مسکا کښې، نن نسیم کښې ده نشه

وخت یو بل پړاو پوره که، یوه بله شپه په تلو شو

چاکړه تېره د چا غېږ کښې، په چا تېره په سلګو شو

ملغم تیز کړه په ناستے، د رنګونو په جهان کښې

هوش او رنګ به مې یو ځائے کړلے، جوړول مې تصویرونه

د زړه غم به مې ورخور که، د ځانګلے په احساس کښې

مړاوے مړاوے نظر شو، سوي سوي نښان ړنګونه

که تصویر لیلئ جوړ کړمه، د شیرین که د منصور

دے په سترګو کښې ځایم، زما درد، زما خوبونه

تور او سور دوه رنګه واخلم، د چنګیز[1] یا تیمور[2] جوړ کړم

د دوی سترګو کښې دا قهر، زما اور وړمې توپونه

---

(۱) چنګېز خان (۱۱۶۲ ـ ۱۲۲۷ ع) (۲) تیمور لنګ (۱۳۳۵ ـ ۱۴۰۴ ع)

دَ دې رنګ لیونتوب لورته، یو پرې راغله غمګینه
نه لیلی وه، نه مشتۍ وه، نه هیرا وه نه شیرینه (*)

خیشت ئې نه وو یو ارمان وو چا شاعر خوب کښې لیدلې
مراد ئې سترګو کښې ئې غم وو، خمارې دَ چا په مینه

هر نظر هر حرکت کښې، لیونې د ځوانۍ تال وو
ټول وجود ئې یو سرور وو، یو رنګینه ځوانه مینه

ما ته وګوره اې مصوره، ما ته اوګوره زه څه یم
یو خوار او د بت ریزه، دَ کمینو نه کمینه

ما وته د حسن لورې، ته رنګینه شهزاده ګئې
ستا په یو سوي نظر به، زر تختونه شي قربان

ما ګوره دَ غم مینې، ته د ګلو بناپیرۍ
د ځوانۍ په مست بهار کښې، دا رنګونه د خزان

ستا د اسوېلو شړیکې، سوزنګې نه دي، ارمانونه دي مستې ډکې
یو په مینه میخانه، ستا هر ښاخکي کښې طوفان

د نازک نیاز بین جهان کښې دومره توره او درانه غرونه
اد سترګو کلابو ښائسته نګې، ستا خولې دې خزان

نور دې شل پردې پریږده، دا پرته د غم کره لړې
چې خندا راشي ګلشن ته، چې روښانه شي جهان

---

(*) د لیلی مجنون، د مشتۍ، هیرا رانجها او فرهاد و شیرین د قصو مینې.

بت ته نه ئې د بت وینزه، ستا په سترګو کښې رڼا ده

نه ساقي ئې نه شراب ئې، نه خمار ئې نه جانان

دومره خیشت ئې آزدیدلی، دومره مینه بې جانانه

ستا خانشت چه ئې لید نشي، نور روند شو ئې دے جهان

وفا، مینه او ارمان، لکه نور تا کښې ځلیږی

یو غمګین ارمان پټ کړے، ستا د شهد نه رنګین ارمان

راځه خوا کښې ناکښینه، نه هم ستا د ارمان رودیم

نه هم ګل د بیابان ئې، نه هم ګل د بیابان

زه هم ژوند مې خوږ کړے، درد ولے، ژړولے

وینه مینه د واره ژاړی، غواړی مینې لجانان

ما ته ئې او ګل مسکے شوه. سترګې ئې ډکې شوې له اوښکو

تورڅادر ئې خپل راغونډ که، ځان له غلے شوه روانه

خپل امید او خپل ارمان ئې ورته ستوري د کاروان شو

د سوري ګلو په تلاش کښې، په صحرا کښې سرګردانه

د رقاصې په قدم کښې، د ګل څانګے په انداز کښې

یو دنیا د سوز او حسن، هوش کښې نه که شو نه مانه

راته ئې زړه کښې یو بل درد، یو رنګین شان ارمان پېښو

یو زرین د نور بڅرکے د نورو نو د جهانه



# منم

ولاړ وم په اور کښې ما لوے اور زما قسمت
لمبے دے قسمت نه وے ولمبے زما دمیّت

نه بخت او نه کمال منم نه توره نه جلال
یو ستا د سترګو خیال منم او ستا د شونډو وست

نه ګل نه دلربا منم نه حُسن نه بهار
یو ستا د خندا راج منم بے تاج بے سلطنت

نه چل او نه تدبیر منم نه عقل نه تقدیر
یو زیړ د سپرلي ګل منم ضامن د یار د بت



# ګلونه د ورخاړي

ګلونه د ورخاړي — د رنګ ښاغلي ولاړي
سحر په خندا تېر کړي — ما ښام تولي د خفه مراوي

ګلونه د ورخاړي

اغښتي[*] ئې سل زنګه — خندېږي ښنک په ښنګه
سحر ځواني مشر ننګه — او ما ښام ولاړه وي ژاړي

ګلونه د ورخاړي

ځواني د ئې سحر د ه — جم دون ديوې وهلې
بيا هم مانه نژان دي — چه هر سحر خندان دي
او نه يو پوسته غم ته — دلبن ساعت تور تم ته
آدم دا ونه کوم دے — په ګلونو پسے ژاړي

ګلونه د ورخاړي

څه ښکلي ښکلي خاندي — رنګينه دي تابان دي
ښائست د ګلستان دي
غني ورته هميش حيران حيرانتيان ولاړ دي

ګلونه د ورخاړي

---

(*) اغښتي : اغصے

# ځمه، ځمه، ځمه

په رڼا باندې مئین یم خو، تیارونه نه یرېږم
که پښېمان په ګناه نه یم، په ځونه غادره کېږم
پرون تخم وم، نن ګل یم، سبا بیا به خاوره کېږم
زه د بادیو څپه یم، په صحرا په باغ تېرېږم
کله باد کله باران شي، کله اور کښې او سوزېږم
خو زه ځم به مخه ځمه
که اودرېږم مه رو کېږم
چه ورپېښ شم په ګلونو، کړم ځوځلې د عطرو ډکه
خو رو مه ئې چاپېره، ورته خاندم خوشحالېږم
چه د رنګ په جهان ورشم، یو رنګین د بودې تال شم
ډنګا رنګ رنګین جال کښې، سپینه شمع شم ګډېږم
چه د مستو په محفل کښې، په ساقي او په جام ورشم
لیونۍ شانې خمار شم، په خوبونو کښې خورېږم
چه جهان تیاره تیاره شي، اور شي تنده شي عذاب شي

زه پښتون د پښتو غرشم ، نه يريږم نه نريږم
چه د علم په جهان کښ ، د اوښيارو خوا کښ ښينم
هم معنوي پوره خند اکرم
هم په خان پوره خنديږم
په فکر و نوليونے شوم ، په لټون ، لټون شوم ستړے
خو آخر د غے له راغلم ، نه پوهيږم نه پوهيږم
خوزه ځمه ځمه ځمه ، تل روان يمه په مخه
يو مقام ته ور روان يم ، يو مقام ته به رسيږم
او په لاره چه څه راغله ، که تياره دی که د نا
زه رڼا کښ يم خوشحاله
خو تياره نه نه يريږم





# یو ټکی

دا لکه زړه ګڼتاسه، موږ دا یو ټکی زده کړے
که تک تورو دی هم خیشته شی، بار چې ستا د زنخ خال شی

خسته خسته زړګی خسته ، بے دېره که بے زبان
د ګلال ګونے چه وښی ، د ګلال د ستر ګو خیال شی

یا د چا د زړه دیوکه ، یا ګلاب ګوتو ګښ جام شی
د خیام لو نګین خیال شی ، د ساقی رنګین جمال شی



# باميان

یو خوا د قدرت جمال ، بل خوا د انسان کمال

زه ئې لیونی کړمه ، چار چاپیره نور دی

نه دی بامیان نه دی دا (٭) ، دا خو کوه طور دی

دلته د فطرت کمال ، دلته د آدم جنون

دواړه په ضد شوي و ، جوړې کړه ترخه افسون

هر خوا چه د لار نظر ، غرونه ، ناکلونه دي

هر غر دی دریاب د رنګ ، یونا په زر رنګونه دي

بل خوا د آدم د ژوند ، مینې او ایمان قصه

هر غار کښې نغمې د عشق ، هر خوا د جانان قصه

هر یو غار کښې پروت خاموش ، ساز یو د نورونو دی

دا روک او ویجاړ جهان ، کودم د نیکونو دی

دی تالا جهان پسې ، دی د پښتونستان پسې

دی تباه دوران پسې ، دی شهید جانان پسې

دی سوی ګلشن پسې ، دی روک ګلستان پسې

زه د زړه په سرو وینو ، ژاړمه ربیعمه

زه چه دته کومه ، سر لمبه سوځیږمه

---

(٭) باميان د افغانستان په ... يو ... ولايت دی چې ... آثار لري . د بودا د دوه سترو مجسمو له امله ... يا کلا ... دی .

# سپرلی

اوګوره جانانه د تیارې نه رڼا جوړه شوه
نوې سپرلي راغې د ګلونو دنیا جوړه شوه

ځمکه لکه شاړه اوبې بوټه، وړه که سپوږمه وه
چرته مروړه مستي تلې د خپل کوره وه
یا ئې غوټۍ نه وې په هر بوټي د مرګ سورې و
شرنګ د ژړوندو نغلې، میخانه نې تشه توره وه
یا ساندې او ونګې، یا تې سپینه خندا جوړه شوه
اوګوره جانانه د تیارې نه رڼا جوړه شوه

یا جهان ؤ ارمان و، یا رنګین نشه رنګونه شو
مینه زوي مسکې شوه، په خندا وړه ته ګلونه شو
مست شو ساقي د آسمان، کل جهان مست بې هوشه
هره سا امید شو، هر نظر کښې خمارونه شو
هر قدم کښې تال په هر خُله کښې مُسکا جوړه شوه
اوګوره جانانه د تیارې نه رڼا جوړه شوه

بیا سپوږمۍ کاسیره شوه ، په سترګو اشارې کوي

ښکلې ، نوې مسته ، شرم شرم کښې نخرې کوي

مرخوا مینه مینه ده ، شیرینه ده ، رنګینه ده

رنګ اد حُسن یو شو ، مست شو خاندي مسخرې کوي

خوب نه جوړ خمار شو ، د فراق نه لیلیٰ جوړه شوه

خاندي غني خانه بیا د ورانه دنیا جوړه شوه



# ماښام

اوښکې راغلې په ماښام مې کښې — خوږ وه غمګين خدايه دا تور ماښام شو
او کوږ ساز بيا . مهين مهين شو — رنګين رنګين شو . را ښکلې دام شو
هوس نړلي شو . شوده زړګي بيا — خان کښې رنګونه د مستۍ کوري
زه په ژړا شم . چې ورته ګورم — دا ژوند خو مې لا نور تمام شو
د خوانې شرق او د آسمان تندر — زوړ نې مزه کا . او رنې مزه کا
زه سم راوينس لا . نه وم د خوبه — چې نمر زيړ شو او د ماښام شو
نظر کښې لږې زړه کښې ارمان — خود کښې خوبونه د بل جهان
دغه يو چونګ ازغي مې لاس کښې — نيم د ساقي دی نيم د امام
خو د خودۍ نه کې [1] مستونه — سوزې ورېتې مې داخل او روينه
ما خو يو خاځکې خمار کښې ډوب که — خانه مجانانه . او چت کړه جام
خوده بې خوده همغه سرور — چې ستا علاج د . نشه په جام کښې
ناپيمانه [2] کښې د ساقي شته دې — نه په خندا کښې د دلارام
خو راغلې او اوښکې او ساز مهين شو — اميد روښان روښانه په تور ماښام شو
راکه چې وڅکم اوليونې شم — د نن ثواب نې تول د خيام شو

(۱) کې : کوي . (۲) خان خانې خانې - نه ده - د - نا - په بېنه راوړې دي .

# سپوږمۍ مسکۍ شوه

سپوږمۍ مسکۍ شوه وے دا، تول دَ ځمکے .

مینه کښې مړه ، څوک تلل نه کوي

په سوو بهار کښې دګلونو حساب

خاندۀ مستېږه او چرچے کوه

دَ دے لکها سوالونو دے جواب

څه کښېنه کوډے دَ غانځے کوه

دَ زړه وطن کښې دَ سرالاړه نشته

د فکر تول، لکه بالول به څه کے

دَ یار حساب دَ خپله یاره نشته

سپوږمۍ مسکۍ شوے وه دا تول دَ ځمکے

خاندۀ سپرلی کښې خوندِ ژړل نه کوي

مینه کښې مړه څوک تلل نه کوي



# چینجی

پېښې مِ د بابا کړې اُمېدونه د خپل ځان

کړه جوړ مِ ځان له کور

یو باغ تې نه چا پېر په کښې مېوې د کل جهان

کلونه د هر لور

په هر قسمه مېوه کښې نوې نوې ؤ قسمونه

انځرؤ که املوک ؤ، که انارؤ که بادام

عجب عجب نمونه، لا عجب په کښې خوندونه

خرما هم ثوابونه، جنتونه په آرام

خو کاله مِ خدمت ورله د کور د سرې وکه

ما وې د دې بدل کښې به مېوې خوړمه مدام

ما وهم یو آشنا ته به د کې د شکورونه بڼ د مه

سه شوی په غوږ وکښې کړېنلی کچه بادام

یو کال ئې خرڅ خړ او اِنشار غوند شروع کړې

چا دوه دانې چا شل او چا په مخه انبارونه

بل کال ئے نقشے جوړے ذجنت دنظاره کړے
هرخوا ته بس گلونه او گلونه او گلونه
سپرلے نه وجنت ؤ یار وعدے ذ وفاکولے
هر گل یوه وعده هره غوټۍ دعا سلام

باغچه د بوټونه ده، منارډوه ذ امید
هر شاخ د میوو ډک دیار ذ مینے وؤ پیغام
چینه وه، که چرډوه، بابا سیندؤ، که لښتے ؤ
هر څاڅکی ذ اوبوکښ راز د حُسن و دوام

هر څاڅکی ذ اوبوکښ رنګ ذحسن دجذبوؤن
ارمان د هشنغر، د ځارچین ماچین او شام
اود انصل نے کوړه، د ګلونو نه میوے شوے
اول نے خمار بیا ذ طاقت جوړکه نظام

چه ستر ګو ته رنګونه ؤ، نوژبے ته مزے شوے
هر څوک پوړه ساقي که وي خیام او که امام
او دائي ملاجان، شا به که او باسه شکرونه
دا شکر خو زما نیکه هم نشي پوره کولے

رنګونه او ګلونه، ته بخښے خوچها نونه
خوزړه م خوتکنهی ده، او مضبوطه دپے بڼی نے

او اے د ښاخکو ته ستا مړخاښکے دریابو نه
سیندونه ستا بیشماره زه بس په شم د کولے
او ستا په سنځې دره کښې خوورېږي امبارونه
دِ تشو په کچکول د سرو مهرونه دِ لکولے

داوارو غنی باغ ته دا په کمه باندے لاړے
میوے چه دِ بخښے شوے نو په چا دِ او خوړے
او دا ښکنه میوے چه کربورې د نړۍ شو
په ښت دِ لګیدلے نه کړے منرے زیړے

هغه وکے یاره واوره چه میوے په بخښیدو شوے
او بنګلے دا مے بنګلے وړه ته صبر کول ګران
په دوتو کښ پیغلو کو د وصال سترګے وهلے
په مرګ پورے خندل وه، کیدیده وړه ته خزان

نو راغلے پرچینې . یاره پهر غمه کښ دیو شو
په رحم کښ دا کوان، دغلا او چل پروفیسران
په ناکو په پېښکو، په هر څیز وړه حواله شو
د ددی په کور اختر شو . او نڼا په کور تالاون
الغرض، که شلتالو وو، که مڼه وه که املوک وو

کده دَ آبے باج

ؤ پوست لکه ریښم خو دَ ښېرلو تېره ؤ دوک ؤ

او ډېر نازک مزاج

دا زکبن چه دانه وی دَ ده موړ یکبن لنګېږی

نیاز بینه دَ جهان

دا ابد . د آفت خم ئے میوو باندے غتېږی

دَ سېلے نوابان

سړی م ورخواره کړو ماوے غوارم دا ساعت

بابو صیب دَ داره

که اَس، که موټر غواړی، پکښ زړګی دار خصت

سره دَ پچکانه

سړی به تله را ته دَ بابو کرم وو دکان

منت . زاری . سوالونه

دے مینځ کښ لکه ناوې ترے چاپیره باغوانان

کول ئے منتونه

بائیسکل به تانګه کښ، کله بس کله موټر کښ

سړی به م روان ؤ

منت ے منځ رته، صبب دو لے نواب زادګے ؤ

مونږ ته ئے نغیه ان

آخر م ورې سړيته د روپو نوټونه بوزې

د افضل ربّاني دې

ايمان ئې بس په دغه شين تصوير د خپل بابا دې

سو چه پاکستاني دې

چه راغې بابو ګل، په رنګ او فکر ښاپيرې وو

پوره په کمالونو

په عقل لږ ميخين وو او کړ بوره وکښ نرې وو

خوښکلې ئې پتلون وو

چه دار مدار وشو، د ښه وايه کنه خان

چه تا ته څه تکليف دې

قسم دې په کار مرو شو بګرم ګوخې افسران

خوزموښ سړې شريف دې

سړې خانداني د ډيرې خوښ وي شلتالان

په واوره کښې آمونه

په ګډه کښې لم لګي او په چړګو کښې پستان

پاسته پاسته ورنونه

ماوې اې بابو ګله، شلتالان خو دا دي ډېړي

خوړک دي د چينجونه

که دې خورې آوازونه په دنيا پورته کيږي

بيګاله د بينجونه

مادې د بوډ زوبه کوړه څکوړه چه غونځيږي

څار به لګه سيټهان

په خيټه ښه ماره دي غوږ خيتې نه ځليږي

تازه پاخه توتان

ميوې پېښې شوې د دوي زمانې تش کړاو تاوان

لنګيږي او ديريږي

چه رزق ترې دوي او خوري زه به څه کړم بيابان

سرې پکښې پريږي

ماوس په زړ ورله څه راوباسه علاج

فو خونې ديريږي

د باغ نه م شوه جوړه مقبره د سکه د راج

قبرونه دي زياتيږي

هغه د داچينجي نه دي مچان دي د ميوې

دي عام په کل جهان

د ديرو باغيچونه دوي کړې جوړې اديرې

کړي ننغ پکښې باغوان

چه پوخ شي ورته او کړي په هوا کښې الوزيږي

ماوې د بوړې ز وبه ګوره ګوره چه غوغيږي

د دې دپاره زمي کښې موښ والي پچکاري وي

دارونه وو اجل وو

لمبولې په سبه شان موږ خانګي غټې اونريږي وې

هم علم هم اکل وو

چه داتې خڼکه پاشو په د باندې حيران يم

خو د د دله شي کښې چه په ژمي کښې سا نه وه

ماوې چه څه کښې سا وه آخراول مال د رب شو

او سبه دوه چه د خلاص کړل په نصيب به دنيا نه وه

اول غل چه راغلې نو د چه ګوينه د خلاص کرم

چرګ مې م خسمر دې ، پوار او نقصاني دې

اې اې ګمرزې سبې او پيشوګان د واړه يو پهل

بنګله کښې بس يو زه يم او يو فضل رباني دې

او ياد دې شي چه راوستل جيانه ونه د امداد له

ګڼي دغه خطا شوال خود موټ راله خروب کړل

د ميښو د کتا کتو د غمه د کرم خلاص

غوايان د ته دعاګۍ تا د مه دې په خوب کړل

---

(۵) واړه د هيلې.

دَ سوتونه اوزګار پاکې بنګلې مودیرې شوې

پخپله کاږدیران

خاموشۍ په غوجلوکښې دَغوامېنبونارې شوې

څه خوند وکه جهان

څه دَمزې کارشو چه دَدولسونه ډېرې شوې

اے پلاره دلقمان

دا کمال دِګوره چه، چه دَنوونه زېږې شوې

کامل دِاُستاذان

په بلځل چه پېراغلے، نولندے بوچې دِیورل

غوکټې کوم پخپله

بخوا به غله زماله کوره لرے تښتېدل

اوس زه تښتم له غله

بوچې په اندېرینو اولنډې په مالتان

دمېږو دارو خلاص کړل په میره کښې پېشوګان

خاني شوه دَ منګوټو(*) بربیتوستوکښې خان

څه بنګلې بنیادي جمهوریت ئې کړه روان

څمبې ئې پټې یورے، بهر بنې دي امانې

اوس قبض دي دَلوګې نه دَ فضل ربّاني

---

(*) موږکو.

بابو عالي مقامه یو خو پښه وکړه نور

د خپلې پچکارې

چه نه کئ راته خوګ دا دنیکه د مال سپغوې

او خلاص شوم د خوارې

دا خوړکي ډي پاتې، صیب د دغه م خلاص که

او ګار یم لکه خان

چړکان ډي بیا کښي شوي سړي بنکته خپي پاس که

خیشته لکه د خان

بابو صیب وګچه دانوي دارو امریکني دی

په نوم جمان صفاء

د مال خیراتي ډیر شه انګریزي شه جرمني دي

خو دا پکښې اعلیٰ

دارو نه دي دا خان، بنډه بوتلو کښ وباده

یو اورد یو انګار

یو ماشې به کئ بل ته دا قیصې تر کل اباډ

او تول به شي فرار

وروکي صاحب وبنې بنې پچکار دي موږ د ګرکړي

یو ځل نا خوږ خو واره

---

دا د ایوب خان د وړلو شعر دے او صفه وړلو کښ نواب

کالا باغ زمونږ ګورنر دو.

خونه راځي قابوکښ، داخه شي دے بنځه مړے

خوارې به دوه بیکاره

بابو صیب وګے بس بیا خو علاج ئې تبر کړے دے

خشاکخه غېږي تړان

میوه دِ او خوږې سرداد لکما روپو لړګے دے

قبلئی ئې افسران

اوخانته میوې خه کړئے تیپېړ دیر قبض کُشا دی

مزاج به دِ تازه وی

سهګے وی سبه خوشحاله چه نه تش وی او نه ډک

او باد به اندازه وی

ورځه خان به تیپرو، رنګ شه روک دَ آلوچے

تراوه مر دار انار

خوږئے به کئے به خپله نه ګنډلے شته نه بوچے

بیګاله دِ دے وار

چه ګله کړې به توپیر وکښ مرچکي شي لونګین

خه دیرے ئې مزے شي

دَ لوے نه توبه جوړه کړي، دَ روګي نه غر بین

او غږئې نشے شي

واوا، کرکمانے تینګے لیتهٔ دَ کچالو

قربان تے چرګو تے

لا د نن کښې پوست مهين کړي په نکو د ده تا لو

او کوتے په ځيتے

بے کا ږدي مخ ۰ خوږ ماتې او ناشپاتې

امرود زوئے د نمرود

منسوږ کښې مستی ده ځانے قربان ئے د پيتے

کلکين ږي بے وجود

غلے په ترنم کښې کچالو ته نه رسيږي

شته ډال کښې تنگ تکور خولې ادپټ سر کښې غړيږي

وږځه په کچالانو تنگ شه روک د آلو چے

بيکاله دے خوږ کړے ده ۰ نه لنډه شته نه بو چے

چه خور شو به باغچه کښې د بابو صاحب بيان

چينجي شو را بر سيره

دو لکی سرونا تے مځکښې بنجلوس عظيم الشان

زمونږ نه شو چا پيره

يو غټ پکښې را مخکښې شو په شکل معتبر وو

سپين روے د ړنډ مزاج

د ارمان چه ستا مخکښې ستا را غلے خو خبر وو

ليدوه به د خراج

خراج که خزانه نه د تحسين او آفرين

چينجے که حلالږي ده تا پخپو کښې به سرزي

(۱۰) عدس په شرقي افغانستان [illegible] [illegible] [illegible] بولي په خوست کښې ورته منسور وائي په هند کې [illegible] مسور بولي .

شاباش ستا پچکاری او آفرین ستا سکنجبین

زمونږه روک نسلونه ستا په علم شو ژوندی
که ماشے که میږے وکه ملخ وُکه دمبر دؤ

دښمن زمونږ دَ ذات
یو هم د هنه بچ نشو که په سمه که په غر دؤ
په بچُ (*) وَکه په سوات

هیله مو په آرام باندے سرا و خورے میوے
ماره خو ښه مار ه شو

هیله مو قام شو خور او ږدے او ږدے مو سلسلے
نسلونه مو زاره شو

نور هر خه لره مرګے مونږ له ژوندے او رحمت
دَ ډنګره دِ قربان

په کمه ژبه کم قلم زه وکرم ستا صفت
ای پلار دَ لقمان

مونږ تول ستا سو زیارت او عبادت له یو را غلے
حکیمه بے مثاله

دا خان د میوو غل دِ دادے ګرځی ژوندولے
بے علمه بے کماله

(*) مطلب د چچ هزاری سیمه ده.

بابو نه ئے بابائے محافظ مدد ګار

سخی مشکل کشائے د نامے نه قربان

بس د غلو باباچه شو قربان ستا د پیزار

راځئ چه تبرک له سنګل کړو خپل مړے خوان

یو غر شو، او د غر سره بابو صیب بوساره شو

بابا د سکنجبین

د خپلو مریدانو سره پیر غریب کانه شو

او بندے شو مشین

ماوے اے بابو ګیه، خوار شے لاس که پچکارے

چینجوے د جناب ګیرکه، که تا دی نه کے نو مړ دے

او اے د بوړے زوبه ګوړه ګوړه فکر اوکړه

یواخ چینجي زیرنه دی چا پیره وطن زیږ دے

ورو کی بابو ګی یو سیلۍ د اوړ کړه جوړه

په خپر ګښ خوړه شو

چینجي مینجي خوځه کړے مونږه نے تول کړ لوبے جوړه

په سترګو موتیا ځه شو

د تورو تیارو مونږه چه واپس راغلو په هوش ګښ

وغښپر تش میدان

چینجي وباغ ته تلے بابوګے ولاړ وجوش کښې

خپل علم ته حیران

زمونږه بابو کل قلار، بے غمه او خوشحاله

په مزکه پروت و خوار

دارو په مخه بوته دَ جنت تو دے حلواله

په یونانه بېن ګزار

مثال دعلم مرشو، شو بیتیم زمونږه قام

اوس ځوګ به کي خدمت

ډیرو کښې دَ میرے خپلوانو منبخ کړلو مابنام

په شان اوّ شوکت

دَ علم برکت و لوئے بابو شو بابوګے

افسر شو د پښتون

یو لاس کښې څپکاړي کوځي او بل کښې تبرګے

او ښکلے نے پتلون

شو مور اوس په بیخو کښې نے مست زیرا وم غږیږي

پش پش دَ څپکاړه دے په آسمان نه ماچلیږي

چه نه ویم بابو خانه کوره کوره چه غوغخیږي

بابو صاحب په ناز په انګریزے کښې او خنایږي

وی خلاص که شو ځینې نو محکمه زمونږ خلاصیږی

ابنې م دَ بخملو نه بیا چیت الوان ته کیږی

او زمونږ ه دا سې بنګلې بنګله کلی کښې جوړیږی

بی بی م ده خوشحاله په جاموکښې نه ځائیږی

او پرېږده چه ډِ خوړی ، خان ته یو شئے دَ خوراک

چه څوک ډِ خوړی غټیږی

او ته که ګرګ شوے څه پے ، بس خس کم او جهان پاک

پیسے ډِ نه زړه کیږی

مچیان که افسران دی ، څه خو غواړی دَ ژوند زواک

په اَس هر څوک سوریږی

او جوړ که دکیکر نه یو مضبوط غوند ے مسواک

چه خوله ډِ نه خوږیږی

قیزه دَ قانون خُله کښې او بارونه لس منی

غوږ ونه ډِ که مراوی او ډُلکی بلخشانی

او "کاڼ" تا سو کښې نشته پو ہے مینه وطنی

وطن شو تول آباد سپینې بنګلې شین چمنی

خوند چاڼے" اصفهانئے ، کښې کی تری امریکنی

دا ملک چه مونږ کړو جوړ لکه جاپان یا جرمنی

او باسے به شکروته او ور کئے به شیرینی

خانان دی تول شومان تلنګ زمونږ و نه منی

هیڅ مینه د قام نشته، بس ګنی، ګنی، ګنی

په خان باندے پوهے نشوم، صیب م (٭) نه وکښ ورځوندی که

تو کوے م ترے کوچوړه په او بو کښ م نسکور که

پوره په فلسفه م پوهے د مرګی او ژوندی که

او د به وے، بوګ بوګ، چه ما به لوږ غوندے زور که

خو خاتوران خلاص که وے پهانسی او دوزخ دواړه

د بابو صاحب په نوی خښت پورے ترلے

بابو به د لکے لار سنه کرندے د نهر به غاړه

نو ربوش نے افسری وو خښتک نے ولړلے

شو باغ زمونږ ویران تا کی م رګ کړله ګنی

جوار غنم م لاړل مالیه کښ اما نی

ډک ډک د غلے را غلل انګوټان امریکنی

ښار به شو افسران خو چرته نه ښکاری غنی

هغه چینجو که مړ، که ژوک منی که نه منی

یوازے اوس ښکله کښ ګرځی فضل ربانی

---

(٭) نیره نهر.

# دلندن معشوقې

| | |
|---|---|
| دلته خوا ته ازغي دي | بل خوا غاټکې دَ نرګس |
| دَ هنر علم سايه کښې | ګرځي ګل لبانه مس |
| هغه نوي نوي چال کړي | خو همه به نه کښې دا خيال کړي |
| چې له ګلو بوړا واړي | په ازغو کې نوي زړه غس (۹) |
| ډېر ورک کړل ډېر به ورک کړي | ډېر سپک کړه ډېر به سپک کړي |
| دَ دنيا لښتي دي پټې | دې الکو کښې دَ تاوس |
| غني خان ملا باده کړه | عقبا، دے برابر کړه |

بلا ګانو کښې ډېر وسے

چرته مات نه کړې اودس



(۹) غس : غوخ

# عجبه فلسفه

فلسفي د ملک ولاړو، وچاپېرو ئې علم
د خود سپين مشال په لاس. جدا کوائې زيات او کم
فکر تيز. نظر باريک. دليلونه کلک ميخونه
د منطق په پاټکو. پاټکو وو روان به برو سم
ماوے آ د هوش او عقل د دنيا بله مثاله
يو بے خوده ليونے دے. هر يو سازے د ماتم
ستا د پوهے د دریاب نه يو قطره د رڼا غواړي
خو سوب د خندا غواړي. څه مطلب غواړي د غم
فلسفي کړے ستړګے پورته. خُله مے کړے ستړے د دنيا نه
خرپے خوړے د غم لوے پکښې اِ غلے ناګهانه
وے آ : زما غمګينه زړيه، خيشت وجود اے نه؟
د ده نور به هله وځي. چه په پټو ستړګو ګوري
علم سپين روښان مشال دے خو پړتني ليا ستړي
د نور ستړګے د ئے په زړه کړه. د نور نو دنيا ګوري
سمله د خيشت خو ګله ګوري د منطق په ګوټ ...
د غم باد د چاپيرو له. تول د سټا او د ...

وے دخود په میخانه کښې ستا دَ ښلو شراب نشته
چه دَ مینے ساز پرے اوری ، دلته هغه رباب نشته
ستا نظر جدا نظر دے ، ستا جهان جدا جهان
تا کښې وینه دَ مجنون ده ، ستا نصیب کښې بیابان
ستا مستی ومی تالونه ، په سندا دبوری تال کښې
دَ ملال په نوی خط کښې وینے شو نلے دَ جانان
لیونیه ، لیونیه ، دا ټول عقل زما واخله
خو بدل کښې راله راکړه ، یو قطره دَ خپل ارمان
ستا دا وبنکو نه قربان شم ، ستا درد د ولوته پښخیږم
چه په دوا په کښې خمار دے دَ خوبونو دَ جانان
نا چه څ دَ دنیا واروو ، دنیا چغے کړے پاګل دے
خو تا تاوان کښې ګټه وکړه ، مونږ په ګټه کښې تاوان
چه جهان دخیشت تالاشی ، غم تش غم شی دَ دلبر
خو مره مستے هر قدم شی ، هر نظر خومره روښان
راوړه ، راوړه زره دِ راوړه ، چه زړه په زړه کی ښکل کړم
هر ارمان خماری دے ، مستے هره وسوسه ده
راکه راکه چه ژوندے شم ، وی[*] دَ مرګه یره مرګ دے
ژوند ارمان دِ او جانان دے ، که امید که تلوسه ده
وایه وایه خومره مسته ، دَ دلبر دَ شان قیصه ده
دَ جنون او دَ جانانان دا ، څه عجبه فلسفه ده

---

(*) وی : وائی .

# کوکوشتو

همه بحث ئې فالتو        نه بس کې اشنا قرتو

په چل خانان ئې پوخ کمان        دا استاذ د ارسطو(۱)

بنده کړي ذرې ذرې

دا بې واره تر ترې

پېرې خان کړي بنا پېرې

دا د دوزو ازمرې

کې مزه د یوه مزه        صفت خُله کښې د بلحيا

لاچه وشي پښې شا        شي مزه ئې لا سوا

خوند خبرې کې د وار

غاړې غلي په قرار

خورب خر د قند هار

چېچه خُله ښکارې اوښيار

پوسته دې پوره تهرتو        دا اوچت آواز قرتو

خان ئې کړی پوخ جرګتو        دا د خټو کوکوشتو

---

(۱) ارسطاطاليس د افلاطون شاګرد مشهور يوناني حکيم او ...

# ترجمه د اقبال

زهٔ په زړه پردو کښې پټ یم[1]
تهٔ په زړه کښې دننه[2]
بس یو زړه دے چه نے غشے
نیغ د سلو وارو وخی

په هر وخت په هر مقام
د هر شي شکل جدا وي
هر ساعت جهان ورانیږي
هر ساعت جهان جوړیږي

د ژوندون راز بس سفر دے
دابد راز ورانیدل دي
داچه خوا اقبال[3] زمانه
دیر خیشته رنګ کښې وېلي

---

(۱) زم (۲) ته ئې زه هم، ته هم. (۳) اقبال: ته اقبال لاهور ۲۳-۱۲-۱۹۴۰ع)

# دُعا

ستا د مینې په صحرا کښې زه سور پرق د لاله نه شم

ستا د باغ کشمالے نه شم، خور لوګے په هوا نه شم

ستا د سترګو مشغوله، ما کچکول ګنګرو وانغښت

سودائي خپلے سودا کړم، مجنون ستا په سودا نه شم

یو کوټ سیخې اوبه نه شم، چه غرمه او کربلا ده

هر خمار جانان جانان شو هر خمار بلا بلا ده

زه د سرو ګلو غوړ ریشم، د ګرلو بوستان نه شم

ستا د کوتو په پردو کښې، لکه سر بندیوان نه شم

راشه او ګوره دلبره، دا ما څه په څه بدل کړ؛

څه دې راکړه اے جانانه، څه دې راکړه څه مې درکړه؟



# میلادِ آدم

عشق کړه چغه چه پیدا شو لیونے ځیګر پیدا شو
حسن ورپېد ډیرے، چه د تول نظر پیدا شو
یو چغه له دے خاورے، د ازل تیاره ته لاړه
اے پردو کښې ستروا ورے، پرده سوز بشر پیدا شو
و فطرت حیران خفه شو، چه د دے خاورې مجبورے
ځان جوړونکے ورانوونکے، ځان لیدونکے سړے پیدا شو



# يو بې مهاره اوښ ته

ته اول هم زملو ورو ې — مړه راشه بیا م ورور شه

یا م سُور دَ پټکي ګل شه — یا م نر دَ وینې اور شه

دَ پښتون دَ ځګر رحم — دَ پښتون دَ ورو خوتوړ شه

چه ذَده په سَرغومې وي

ته ذَده دَ مټو زور شه

کنې لاړې او ورکیږې

سر په کندو دې کاروان شه

ته خو دې بنګلو ته رپې

بنیریه ! کور دې وران شه





# سینده خه سینده بهیږه

دا قسمت دی د دریاب | چه بهیږه او بهیږه
چه په کتو ورشی او ړنه | په آواره کښی روکیږه
چه یو ځای کښی آغا نشی | او بل ځای غلام نشی
نه خوراک د کل مخلوق شه | پلاړ د ویل موړ دکیوړی
زه دائی شه موړ او پلاړ شه | دبنا مار او ده چر کوړی
زه چه چړی شه خوړ شه | چه د غاړی شنه توشی

او با غمچی او چمنونه او کلونه از کلونه

چه ما بنام د ډاچی خواله | عاشقان غمګینی ستړی
چینګی د ړنه کیږی بلی ستړسړ لاسونه

کله ډوب لکه د غم زه | کله مست زلمی کیږمه
سیند خه، سیند بهیږه | سیند خه، سیند بهیږه
بس هم دا دی چه نه یکی | دیو سین او د بل سین

وار وغږ سره جلا دي آمو او اباسین

د جیندي او اباسین

چه خیالے زه په کم خیال کښ

په قلاره جیندي کښ کم دے

چه راوي (*) په کم خمار ځي      د نوښار لنډي کښ کم دے

سیند څه، سیند بهیږ      سیند څه، سیند بهیږ

د مره سیند وي خپلے لاره

هر یو خپل کوته روان دے

د مره یو خپلے دشوارے      زه چرے چرے شه اود

چه د غارے شنه پټي شي او باغچے او چمنونه



(*) راوي : د پنجاب له پنځو مشهورو سیندونو څخه یو سیند .

# بادیوه

څنې دې پرېږدي څه مستانه دې رفتار دے
کوږ د کاغذ نه چا جوړ کړے خپل خمار دے
باد ته د عاشق په شان خاندے خوشحالېږے ته
مسته، سولۍ ماره د طاؤس مسے ګډېږے ته
بے جوړه کلا به په آسمان کښې زرغُنېږے ته
زړه دے د قسمت په تار تړلے ګرفتار دے
ټول رنګين خمار دے خو مجبوره هر خمار دے
دومره وېره آسمان کښې د خپل رنګ ښاغلي ښکاره کړے ته
باد بانده و سهور د لاندے خاوره ښنداره کړے ته
چونکه خاوره وجود یو لیونتوب یو تراره کړے ته
ته د بنیادم د بخت او تېښتې یو تصویر یئے
یو رنګین خمار په تار تړلے د تقدیر یئے
زه هم ستا په شان کله کله په هوا شمه
پرېږدم خاکي ځان بس یو ارمان یوه دعا شمه
خوب شم د امید، د زړونو رنګینه مشغولا شمه
څه قسمت وُدی (*) راشه سر م ستا پکار دے
اے د آدم نیه ستا د خاورو سره کار دے

(*) وُدی : ودهی

# تالئ

ژوندم تال دَ ژړې ژړانګم
زړۀ دَ خیال په نیلی سوړې

دَ قسمت پرې آکوړه دی
خېژمه پرې تالئ

څه ډېر څه دی بد که ښه دی
دَ دیواله اخوا څه دی

چې محراب دَ ملاجان دے
که خمار دَ ملائے

زړۀ دَ مستو په زور پرېږم
زړۀ په وړې نظر پرېږم

زه دَ څان سره سیالی کوم
زه پرې نه یم په سیالئ

زه دَ خیشت مقام لټومه
رنګ، آواز، خیال او نظر کښې

لکه څاڅکے تله واخلی
تلی زور په سمندر کښې

که د فکر نظر تیز دے
دَ قسمت دیوال محکم دے

دیخوا، دیخوا خو به سم کم
خو دا غم دا خوا غم دے

زه پوهے در نه څاڅکے
په یو تور او روک جهان کښې

دَ خپل خرد په رڼا ګرځم
دَ قسمت کوڅے لټومه

دَ تال پرې که پاخه وی
که نرې وی که روسته وی (٭)

زه تالئ خو به خېژومه
زړۀ تالئ خو به خېژومه

---

(٭) روسته ۔ وړسته .



# خیام

اے خیامه ته تش غم یې، تشه تیښته تل فرار
ته د جام او ساقي یار یې، یو خیشته رنګین انکار
عجیبه غونډې جنون یې، نا امید او بې قرار
ستا احساس د ننه بند دے، په یو ښکلي رنځ بیمار

ته لمبه یې د تالاش، د لټون او د ارمان
ژړا او فکر د خزان، ښکلے ژبه د بهار
سر د بحر سرے چپے وي، ډوب یې وېخ کنړي قرار
ته کښتۍ د کلو ړکه، سر سري د کښتۍ لار

آسمان پلاړې د سبا، هم بچے دے د پرون
دا هم جام د هم ساقي دے، چه وصال او خه بېلتون
دا یو ساز دے چه روان دے، د آواز د سرو کمال ته
یو د ړنګ ښاغلے چه خغلی، ښا هسې (*) د بلې تال ته

---

(*) رسنۍ : رسونی.

دا ستا غم خو څه غم نه دے، چه ډوبوې به یو جام کښې

د امید سپوږمۍ دې پټه، تورې ولږې د ماښام کښې

په دے مست بنګلي دماغ دے، تو خوږ شوے د مرګ جال

د ساقي جمال پټ کړے، ستا د زړه نه بل جمال دے

یوه مسته او شیرینه، عجیبه د غم نغمه یئے

د سرو زیړو ګلو ډکه، یوه نګینه مقبره یئے



# روره قلندره

روره قلندره (۱)

څه په پټه پورې شوې چه دا ښکته ځې که بره
دې کښې څه داره شته چه سړې وکړي خبره
لسو بلا ځکانو کښې ده، کمه بلا غوره

او روره قلندره

مانه خفه شوې، که خفه یې دا شنغره
کله کله مونږ له هم راځه د پېښوره
سبه وې چه یارانې وې د سړي تکړه غاړه
نوم، ناموس، او خوې او همه خونه معتبره
خو یو په کښې پکار دے دا زما غوښتنه بے سره
دا په کښې کښېنجکه چه ساقي مو د نظره

او روره قلندره

دانا تا رخبره

---

(۱) زما محترم دوست قلندر مهمند چه په ۱۹۷۰ع کښې د شهباز اخبار ایډیټر وو.
د شعر کښې هم د دغې کال الیکشن ته اشارے دي. (غني)

کټې د زندان او قلا دواړه د یو غره

اوروره قلندره!

دا خو څوک د متهٔ غواړي څوک یئې د څکره

زه کمزورې ښه یم وي کمزورې بې ضرره

مونږ نه بل وژلے شونه خان له لرو زغره

اوروره قلندره!

ډیر وکښ ضرور چه رته کښ ورانه شي خبره

بس د نور به چپ کړم خو بس دا یکښ د سره

داڅنګه سپیلنونه دي هم ښکته خي هم بره

مغه صاحبزاده (۱) ته وایه یا پیره کافره

خلاص د مور یدان شه د تاتار د بربره

ستا قیمت به ډیروي هم یاران د بے لمبره

سر د آشنا نه خاري یار، خو د ګناه د سره

اوروره قلندره! (۲)

نوره که څه ورانه وي نو ته نے کړه برابره



(۱) صاحبزاده فاروق د کوټې . (۲) استاد قلندر مومند [illegible] ۱۹۹۳ع [illegible] استاد قلندر مومند [illegible] د کلام [illegible] صاحبزاده [illegible] استاد [illegible] به پښتنه کړے ده .

# نوے سیاست

دَ اوښیارو لاړے مِ ډیرے زده

خو زما دَ شان دغه لاړ نه ده

زه د زړو صحرا وو ارمانی یمه

زما بخت کښې کوخه دَ ګلزار نه ده

زه یم خاوره خو دیره بے تابه یم

ما مو نشتے لمحه دَ قرار نه ده

دا دَ دړغو منډۍ ده دَ سود او زیان

دے زمونږه دَ ډُکر یو بل جهان

دلته ښئے(۵) به یو او خرڅے به بل

دا بازار تنګ او کړته سامان

دلته مینه وفا او غیرت او رښتیا

چه بے سوده ئے کړے نوځهتوب دے

دا قصه بس دَ چړګ او ویران ده

خو پرے نوم دَ اوچت سړیتوب دے

(۵) ښیبې .

# زما لال

(د مور قبر ته)

زه د هغې لال زه د هغې د سترګو تور ؤمه

زه به د هغې په سینه تل اوده نسکور ؤمه

اوس ئې ښکته ښکته د مزار کانو ته کوږ مه

خاورو کښې پرته ده چې ئې زه د زړه ملال ؤمه

هغه لاله شوه خاورې چې زه ورله لال ؤمه

لاړه مې آسمان ته مادرے اے د جهان مور سپوږمۍ

زور د مرګي زيات دے که دنيا د مينې زور سپوږمۍ

آورى په لحد کښې خوږ د سوي زړګي شور سپوږمۍ

مو تې خاورې ښکله پټ د حسن جهان کړے

يو پوکے آباد دا چمن ښکلے بيابان کړے

ګله م نه جوړيږي چه ظالم اوويم رحمن ته

مرګ چه د جهان بادشاه کړم څه وايم خان ته

ولے دروازه د علم لو نه شوه انسان ته

سيال ئې د خان ولے کړم چه زه د خاورو سيال ؤمه

هغه لال م څه شو چه ئې زه ورله لال ؤمه

# کنی دنیا ښه ده

دَ سِغیمے لږ خوب — لکه دُنیا ښه ده
نیته سے لږ ده — کنی دُنیا ښه ده
خوَل وانی څه ښه ده — خوک وانی دا ښه ده
چاله زما ښه ده — او تاله ستا ښه ده
چاله زرا ښه ده — چاله خندا ښه ده
زړه دَ مجنون له — خپله لیلیٰ ښه ده
زړه دَ مُلا له — تو ده حلوا ښه ده
چاله مستی ښه ده — چاله سودا ښه ده
چاله محل ښه دے — چاله بیدیا ښه ده
دنیا هغه ښه ده — که دنیا دا ښه ده
چاله هغه ښه ده — او چاله دا ښه ده
ژوندی ته ساز ښه دے — مړه ته دُعا ښه ده

بڼيا له سود سره دے — ماله سودا سره ده

د ملا عقل له — خله د ملا سره ده

زما اوتک نه — ملا د لاله سره ده

مزدور وے خانته — خبره دا سره ده

ماله تيره بد دي — تاله حلوا سره ده

د جرمن توبه سره ده — د صيب قلا سره ده

زمونږ تمتو سره دے — د بنلت غوا سره ده

جنګ سره د ګاندهي (*) — خله د جنا سره ده

چاله هغه سره ده — او چاله دا سره ده

ماله زما سره ده — او تاله ستا سره ده

نيته ئے لنډه ده

کنې دنيا سره ده



---

(*) ګاندهي . کرم چند [illegible] (۱۸۶۹ - ۱۹۴۸ ع) [illegible] مشهور [illegible]
او سياسي رهبر .



# پلوشه

په غمونو کښې خندا کړه      په خندا کښې غم هیر نه کړې
او د دیر و په سودا کښې      چه قیمت د کم هیر نه کړې
د وصال په لمغرو کښې      د فراق ستم هیر نه کړې

دا چه ته دې ستړګو تنخا ندې
د دې سترګو غم هیر نه کړې
د الله الله په شور کښې
چه صنم صنم هیر نه کړې



# دعا

اے خدایه عقل راکه — اے خدایه پوهه را
زړګے مضبوط راکه — او سینه لویه را
سترګے د نوړ راکه — رحم دَ ځان را
بیا تول غمونه دے — دَ دے جهان را
ما تئے په سر که — زار درنه شمه
زه به ئے اورمه — زه به ئے اورمه
یاړ بهادر راکه — که همت نه راکے (۱)
غیرتی زوړ راکه — که غیرت نه راکے
دَ سکندر بخت را — دَ دارا خیال را
مت دَ خالد کښې — توره هلال را
اسلام دِ پرېږده — زار درنه شمه
زه به ئے کتمه — زه به ئے کتمه
دَ شپے خیمه کښې — د عشق شراب را
پاک مل دَ لاړے — لکه ګلاب را
دَ سپوږمۍ نوړ راکه — لوبو کولو له
دَ بوډۍ تال راکه — جوتو وهلو له
جهان دِ پرېږده — زار درنه شمه
جنت به ئے کړمه — جنت به ئے کړمه

---

(۱) نه راکے ـ نه راکوے.

# هو بر کیه هو

پینس په لیونی باندے شو پینس لیونے یو
وے رورہ په یورپ کښں سړی کی دَ سړو لو

بانگ کښں د سبا پرون نوے تپه وا و ریده
تلے وم خالصه ته راته ئے اووے "نهکے ناوه"

پرین ده باچا خانه دا دَ جیل قصے دِ خوشی دی
دال م نه ضمیری نه عادت یم په پولاو

وا ورہ دَ یورپ نه دَ انصاف خوږے خبرے
وا ورہ مرے وا ورہ دَ پیشو بی بی میاؤ میاؤ

یو ټهنگ غټ شے سوړو کبان نے دیر خوړلی وُو
بل ټهنگ پرے راغے او به سرے شوے دَ تلاؤ

یعنے دَ قسمت کوتے مروند کله مړی نیسی
خپے که خان له ماتے گډاکی کړی په داؤ داؤ

محبت بې وفا یار دے دیو غیږ کښې راته خاندي تل

وېرون غږ سوسن دَ صیب سرو

خاپه خبر شا به چا ته خاندي خندوي به خوږ ک

مونږ نه خو خفه بو ته مُلا شلی داو داو

دلته چرګوړي دَ ګُرګه جنګ ے په آلو(*) اوشو

ورکړو دَ چاڼې(+) موتر له بیا فبر ګکي تاو

کوړکښې دَ قصاب غویان په او چوتانتو نښتي دي

هو لندیه، هو برکیه، هو چرکیه هو

جنګ عظیم ۱۹۴۳ع



---

(*) آلو: هګړه هګیو. (+) چاڼیے: کلی.



# پلوشه

ځمې د قبلې ته ليونی ترې خبر نه و

سترګې وې وازې د انسان په تماشه

عکس د سپوږمۍ دې د شبنم څاڅکي کښې او لیده

ځکه په سجده شو ارمسکې شو د جانان په تماشه

نښتنې د ژوند د خوب تعبیر کتاب کښې نښتنې

سترګې د که پورته د آسمان په تماشه

خدای مکه کښې نښته د منصور د خلې م داوریدلی

ورشه لیونیه، مشه د ځان په تماشه



# حقیقت او مجاز

دا دوه حورې دَ جنت دي دې شرابو کښې لامبو

که مې سترګې دَ جانان بیا شولې دکې دَ اربو

چه دَ مینې په مذهب کښې شک کول کافري دي

که منم دي کافري یم خلاص به نه شم په توبو

دَ نرګس بوی کښې پیلې دَ سپوږمۍ دَ شغلو جالې دي

په کښې پروت یو لیونې دی چه مجنون دی که بلال دی



# اوه، چه تول عمر ماشوم وې

بې پرواالکه لولو وې په ګلونو ګرزېدلې

او چه تول عمر ماشوم وې، په بلا نه اوړېدلې

د دنیا د اوږو ستړګو، بې خبره ګرزېدلې

چه په خُله د جانان نه وې، د فراق وړته غزلې

بې پرواالکه لوټې وې، په ګلونو ګرزېدلې

بې خبره چه آدم وې، د رازونو د هوا نه

نه آشنا مجنون اوده وې، د غمونو د لیلیٰ نه

او چه حُسن خبر نه وې، د خپل حُسن د غرور خنګه

دا زما زړه ناآشنا وې، د دې ښو بلو د جنګه





A .S.K B



# پلوشه

اوږد بنده مشال لکه د خس دے

تود شی لوګے ورکړی رڼا کړی جوړه

لمبه شی وسوځی خاورے ایرے شی

بوده ائی پرے ژړا کړی جوړه

# ته او زه

مجنون وے لیلیٰ پوے نه شم — چه ته ښه یے او که زه

بلبل ګل ته په خندا شو — وے دا خه وائی دا خه

ګلاب رو په نیاز مسکے شو — وے که زه یم او که ته

ته یے زه او زه یم ته — فرق زما او ستا د څه

هغه چه فرق لري زه موږ — نه پرے پوهیږو ته او زه

لیونی که سر راپورته — وے جواب وے لے دَ څه

صوفي خان که ډیر کړے ستړے — که د ښو نه ښه شے ته

خو دَ عرش پایوله نه څې — د هاؤں هاؤں چغے دَ څه

لیونی ستړے کړے ښکته — وے لید شین رو کے وا ښه

وے زما دَ روح خاونده — چه دَ ښه دے او که زه

د نسیم یو چپه راغله — خُله زما خُله دَ وا ښه

تے په خپلو شونډو ښکل کړے — دواړه خُلے په یوه خُله

لیونے لا لیونے شو — دانے وے برے کا ته

هیڅ په پته دے پوهے نه کړم — چه ته څه یے او زه څه

---

(٭) پوهیږو = پوهیږو

# د زړینې په کیدو

اوه یو ذره د نور وه — شوه دریاب کښې د خښتې به

په خوبونو د ځوانۍ کښې — یو شعله د نوې پېلې

دا نرۍ د هلال شونډې — دا د دوو ستورو رڼا ده

دا د هغې خوب تعبیر دے — چه وو ما او ربالیدلے

دا هم ګل دے هم بورا دے — هم سازونه د بلبلے

دا چه ستا نیاز بینو کوتو — د ازل ښانګے ته لاس کښې

دا ګلاب نے ترے رااغشت — په نورونو لمبیدلے

دا چه ما غمګینے سترګے — په ژړا کړے بره پورته

دا زما د غم جواب کښې — مسپوږمۍ ګل دې رالیږلے

دا اوبه د واورې چینو دی — د دریاب په طمع درومي

دا هم زه یمه هم ته ئے — هم زما او ستا خوبونه

د ربه جوړ ترے اباسیند کړے

په ګلونو کښې بهیدلے



# ګډې وډې

ورځ مې ورکړه زمکې له او شپه مې ورکړه ستورو له
خان له چې کم عقل شوم، شوم هله او بنیا نورو له

سترګو د جانان کښې کله کله د ګل پانو کښې
زه ئې هر ځائې وینم شیخه جوړې جمات نورو له

لوے جنجال ئې جوړ که چې ئې ویش د نصیب وکه
دومره رحم سپینو له او دومره عقل تورو له

واچوله نیک تالی ملا بابا په خیټه موړو
زړه د غریب سترګو په تلو جنانو سپورو له

دا عجب انصاف د ساقي ستا په میخانه کښې
غوړ و د غوړو د رباب او څاڅکے نه ځي نورو له

غني

# خندا او ژړا

د ساقي لاس کښې شراب کړ

یو د غم یو د خندا

ما پیاله تشه نیولے

ستا د فضل په سودا

اے ساقي چه کم دِ خوښ وی — په خندا خندلے را

لیونے یم کار مِ نشته — په خندا او په ژړا

زه یم ستا د سترګو تږے — تږے نه یم د خندا

دا پیاله مِ که لبریزه

که خندا دی که ژړا

خو چه تږے مِ پرېږدے

ستا د حُسن میخانه



# چه دَ مستۍ نه
# هستي جوړېږي

پوره سپوږمۍ چه رو رو کمېږي
ژوندُ ئې پخېږي غم ئې زياتېږي
ډېر ارمانونه پوره او لږ نيم کړے
چرته محل يو نيم ډېرے جونګړے

ستارګښ شرنګ هغه دَ ماښام نښته دے
سهور په سترګوکښ دخيام نښته دے
دَ نور شغلوکښ شفق غرقېږي
چه دَ مستۍ نه هستي جوړېږي



# وړه ملا

ما ته یاد خپلې ګناه که — تا نه هیر خپلې نیکۍ که

ما جانان که دلربا که — تا تکې او نا تکې که

ما د خپلې مستې تاج که — تا د خپل جهل لکۍ که

ما اوښیار د جهان بلا که — تا جولا د ویتکې که

ما ترې مینه مستي جوړه کړله — تا کا نه په دوه چکنې که

ما د حسن سمندر که — تا شوقي د مسلکۍ که

نو اوس وایه ملا ته

چې نه تخوبنې که نه وه؟



نه په لیونتوب ترې فلسفي کړل څه جوړه — نه فلسفه ترخه کړه جوړه لیوني

دا کوڅه وړه دنیا کې ده وړه وانده — بونیه دوه په بیه بوبخت د خوار

غني

دا دستور د وښمار، دوخت تلل د ساز لیند

نه خوښولا دے چه نے دیر اوشوکنی

# ژوند

ژوندم دوب دریاب د روږو خورشو سمندر کښ
خاشکے روک دریاب کښ شو په طمع د ساحل
بخت کښ د سیلاب دی په مستئ په چپو تلل
نه ورځي دریاب له غوندیدل او اودریدل
دے لهر د سازله تله ژوندون او دریدل مرګ دے
زیرے د ماښام وی د سحر راځلیدل
ګل دے دے چپے کړو د ابد مستانه تال ته
اوګرځئو سازے تار خانو کښ د ازل
لاړ لیو نے لاړ چرته د نور شغله کښ دوب شو
خاشکے روک دریاب کښ شو په طمع د ساحل



اے دانګور بچوړے | اول چه را غلے به ته
په قول عقل کښ به دِ | خندا بر سیره کړله



او اوس چه را شے ته | درد او تیارو راولے
دنیا دِ کمه کړله | ژړا دِ ډیره کړله

# عشق

سوز نه دے عشق ساز نه دِ عشق، آه او ګریان نه دِ عشق
مسته رنګینی دانه ده، غم دَ جانان نه دِ عشق
خوب دَ خوانے نه دِ، دَ خوبونو ارمان نه دِ عشق
مینه د ملیار دَ سترګو، وخت د خزان نه دِ عشق
تورتش دتیاره رګ، دَ تیرو بیابان نه دِ عشق
مست د امیدونو، یو دریاب روان نه دِ عشق
سترګو کښ که راشی دَ شفق سره دَ خمار
عقل له که راشی دَ سپوږمۍ دَ رڼا تار
دے مستانه زړه له یوه حوره دَ تاتار
دا دَ مستۍ حد دے او دَ حد بندیوان نه دِ عشق
مسته رنګینی دانه ده غم دَ جانان نه دِ عشق
عشق یو وجد دَ رَبّ دے په وجدونو دانسان کښ
یو دَ مینے ساز دَ زړه په سوی قبرستان کښ
روح دَ روکی ګل دَ سپرلی سترګو دَ خزان کښ
مرګ عشق ته حیران دِ خو مرګ ته حیرانه دِ عشق
خوب دَ خوانے نه دِ دخوبونو ارمان نه دِ عشق

# په مردان مارچ د باچاخان

راشه اې خوشحال بابا — اې خالده او ځوره!
پاڅه ځانه مه تښتی — دا تماشه اووینه

جنګ له دې منصوروان
توپ او نه ټوپک لري
نه د توره پرق لري
نه د زغرو شرنګ لري

زور د دښمن نه ویني — دا سې لیونۍ روان
دار او رسن نه ویني — دا د مستانو خان
دا د پښتنو ملنګ — څه بادشاهي رنګ لري

جنګ له دې منصور روان
توپ او نه ټوپک لري

سپین مخ د لیلی ویني — دشت بیابان نه ویني
زړونه د یوار مانه ډک — غم او ارمان نه ویني
سرې د باتور سترګې دي — مینه رنګار رنګ لري

جنګ له دې منصوروان
توپ او نه ټوپک لري

تاج ئے د ازغو پہ سر — مست لکہ مجنون روان
نوم دَ پښتنو کښې — زوئے دِ د پښتون روان
نز، داد نرانو خان — خہ غیرت اوننګ لري

جنګ لہ دے منصور روان
توپ او نہ توفنګ لري

سرے کینبود خاورو کښې — مرګ لہ ئے سینہ دہ کړلہ
دَ پښتون دَ سرحد نہ — خپلہ وینہ دہ کړلہ
وے هر څہ م دتام دي — واللہ، هر څہ چہ ملنګ لري

جنګ لہ دے منصور روان
توپ او نہ توفنګ لري

اے دَ پښتنو بچو — دامیدان م هیرنشي
سپین سرے دَ ونیو دِک — هغہ خان م هیرنشي
پروت دے دلتہ خاورو کښې — دا مکان م[۱] هیرنشي
پاڅئ ننګ پرے اوکړئ — خدایږو دیرہ ناسونګ لري

جنګ لہ دے منصور روان
توپ او نہ توفنګ لري
نہ د تورو برق لري
نہ دَ زغرو شرنګ لري

---

(۱) میدام . میدان مو ؛ احام ، خان مو ؛ مکام . مکان مو .

# پوښتنې

دَ سپرلي شپه وه مسته مستانه — ستوري کيدل د وريږو ښار رونبانه
سپوږمۍ وه لا ړه وه ښکلې حيرانه — ليونۍ سوال اوکه دَ خپل جانانه

دنيا م پوښتې له دَ لا مکانه را
مستي م سترګو له دَ خپله ځانه را
دَ خپله ځانه يارا دَ خپله ځانه
ليونۍ سوال اوکه دَ خپل جانانه

ناګاه برق شو د رباب د نور د راغې — خه په مستۍ راغه په سرو ږرو راغې
مستي شو ګونګه مستي ګويانه — ليونۍ سوال اوکه د خپل جانانه

او ليونۍ ورته زړه کې که لړې
ور به خوار پکښې ځا شو پوښتنې
نو دوړک دَ ځانه وُ دوړک دَ جهانه
ليونۍ سوال اوکه دَ خپل جانانه

رباب دَ نور لاړه خيشت او دنا لاړه — او دَ جانان مستي جانان له بيا لا ړه
ليونۍ پاتې شو خبرې کړ ليوانه — دَ سپرلي شپه وُ مسته مستانه

# سوال وجواب

لیونیه مکه څه ده　　　مُلا کوږ دیو عاشق دے

کوتهنی دی کنشتے دیرے　　　د موږ رَب خالق دے

لیونیه ایمان څه دے　　　مُلا دا دے پوخ گمان

دَ یو خوب په نشه لیدۀ دی　　　دَ وصالونو دَ جانان

لیونیه جنّت څه دے　　　مُلا ستا جنّت پیتی ده

او زما جنّت وصال دے　　　یو خمار یوه مستی ده

لیونیه حوره څه ده　　　مُلا سپینه لونګے ده

یوه کرښه دَ شفق ده　　　دَ خندا بُر بُره ګلے ده

لیونیه نشه څه ده　　　مُلا دا په سیل واته دی

د مستئ رنګین محفلُنه　　　دا واته نشواته دی

لیونیه چه نمونځ څه دے　　　مُلا خاورے ښکلولی دی

دَ جانان کوڅے ته تلل دی　　　دَ اُمید ارمان کیدل دی

لیونیه سجده څه ده　　　مُلا خان خاورے کول دی

دَ مستئ د ټکلو مار　　　دیار څپو کښے اچول دی

لیونیه ژوندون څه دے — مُلا نه یمه ژوندون

دا زما دَ خوب لیدلی — دَ سبا او دَ پرون

لیونیه وصال څه دے — مُلا خیښت کښے ډوبیږی

دا په ستورو کښے بلیږی — په سپوږمۍ کښے خوریږی

لیونیه حُسن څه دے — مُلا لږ دِ خمار دے

بو مُسکے مُسکے شان خیال دے — یو نرے دَ رڼا تار دے

لیونیه جانان څه دے — مُلا روغ ورته نه ګوری

لیونی سے هیلۀ (*) وینی — دَ تاو کړو بانو سوری

لیونیه ته سے څوک — مُلا نه ه دَ چا ارمان

نه یو ګل دَ چا دَ ګوتو

په قدمونو د جانان

---

چه بے خودی ډیره شی دَ خودے رنګ ورکی

یا د بوډاتوب لههم د ځوانئ رنګ ورکی

غم چه ډیر زوراوکړی د خوشحالئ نښان

د ژوندون تارکه رقصانه شي رنګ ورکوی

سترګے چه تشے شی خوبونه ډک وینی

په تش کاغذ مصور مستانه رنګ ورکړی

سحر له شپه ورکوی شپے له سبا ورکی

دَ فلسفیانو سر له ور رنګ ورنګ ورکی

(*) هیله = ایله.

# اے دَ لیونیا نو نیکه

اے دَ لیونیانو نیکه حسن که وفا ښه ده
برخه دَ مجنون ښه ده ، که برخه دَ لیلیٰ ښه ده
وے اے زما نجیبه ، دَ دلبر دَ خُلے هوا ښه ده
نخه نرمه لا ښه ده ، تیزه کړه لا ښه ده
تاو دمخ دَ پاره لوپټه ، سره رنګینه لا ښه ده
زیړه ښه ده توره ښه ده ، تکه سپینه لا ښه ده
نو اے زما نجیبه حُسن ښه دے هم وفا ښه ده
برخه دَ مجنون ښه ده ، هم برخه دَ لیلیٰ ښه ده
ښه ده فقیري نیکه ، که ښه ډیره دنیا ښه ده
ګل صنوبر ښه ښه دے ، که خُله دَ محبوبا ښه ده
وے اے زما نجیبه سور عقاب له دَ غر سر ښه دے
ګل دِ صنوبر له ښه ، او ګل له صنوبر ښه دے
جام له قلار دے ، او سمندر له طوفان خوند که
ستر کو له مستي خوند که ، او زړه له ارمان خوند که
نو اے زما نجیبه فقیري ښه ده دنیا ښه ده
تخت دسلیمان ښه دے چې نګرو د عیسیٰ ښه ده

آخري

# شهيد

اې شهيدهٔ! اې عاشقه اې بچيه دَ مصره

په خندا جانان له لاړې، دوب دریاب کښې شوے دوبې

نادانان دې پسې ژاړي ماشومان درته عجبون وي

ليونې درته پيغمبرې اې ابرې دَ کوهِ طوره

ننګيالۍ سرِ دې ورکړه د يار خپو کښې ډلوګه

اوس به کوره مسکے سترګے ښکلے ډکے دَ غروره

مار او ورے تاله نه دي دسرو ګلو امېلونه

د جنت بلبلان څه کې دَ دُنيا دَ باغ ګلونه

تاکړے خپلے سترګے خاورے چه زما پرے شي روښانه

تا قصه زما دَ درد بره یوړه تر آسمانه

ستا دَ وينے څاڅکے څاڅکے چه تا توے کړه دا ارمانه

ماته سرے ديوے بليږي په کوڅه کښې د جانان

دَ دنيا تاجونه خاورشه ستا دَ بخته ستا دَ شانه

د ليلي په ټټکون پروت نے د مجنون څيرې ګريوانه

مار او ورې تاله نه دي درامبيلو امېلونه

دَ جنت بلبلان څه کې دَ دنيا دباغ ګلونه

# منصور

منصور يو ليونے وُ د معشوق اداب ئے تعبير کړه
منصور يو ليونے وُ دَ مستئ شراب ئے ډير کړه
وے مستی دا ړ مانه ده دَ جانان دسترګو نور دے
زما دَ خُلے خبرے هم تورات او هم زبور دے
دا رنګ زما دسترګو نه دَ ړنګ دے دَ جانان
دا شړنګ ړما سینه کښې دَ خپو شړنګ دَ دَجانان
منصور چرته لیدلے دَ مخ نور وُ دَ جانان
دا مست چه پرے منصور شو دا سرور وُ دَ جانان

وے دَ حُسن ارمانی نه یم ړه دَ حُسن سمندړ یم
ړه مست لیونے نه یم ، ړه مستی دَ بحر و بر یم
دا رنګ زما دَ سترګو نه دے ړنګ دے دَ جانان
دا شړنګ ړما سینه کښې دخپو شړنګ دے دَ جانان
عالم ړا ته وایی چه ړه نور او ړه رڼا یم
ړه ګل یم ړه بلبل یم ، ړه وصال ړه محبوبا یم
منصور خو خپوا ډوب شو دا آتش نور دَ دَجانان
دا نه دے منصور نه دے دا سرور دَ دَجانان

خبر پرے ملیان(*) شو وے منصور خان ته الله وانی
دا کفر دا غرور چه ئے هر چا ته برملا وانی
ونے کافر دے شی سنگسار دچه پلیت نه شی جهان
بادشاه دَ لیونو ئے زولنو کښې که روان

منصور ورته خلقه واوری چه زه نور او زه رنړا یم
زه گل یم زه بلبل یم، زه وصال زه محبوب یم
منصور خو پخوا ډوب شو داتش نور دے دَ جانان
دانه دِ منصور نه دِے دا سرور دے دَ جانان



(*) ملیان: ملایان.



# څه و

دا په سترګو د مریم کښې چه ژړا وه که خندا وه

چه ئې سوړ په صلیب اولید د عیسیٰ د زلفو ول

دا څه او وائیه تا ته، چه رحیم ئې که رحمن ئې

چه په خاورو کښې کړې خاورې د ګلاب ښکلې اوربل

دا مستي وه که معراج وو دا جهان ئې چه روښان که

که د نور د یار د سترګو دریابونه بهیدل

چه دا کفر که ایمان وو، چه دا زړه ئې لیونې کړم

چه دا غم م په خندا شو که مستې م اوژړل



# پیدایش

او ما خان له ساز که پخپله جوړ
دَ خپل خوب نه دَ خپل خیال نه
دَ خپل غم نه دَ مستئ نه
دَ خپل تول نه دَ خپل تال نه
او ما خان له یار که پخپله جوړ
دَ خپل سوز نه دَ ارمان نه
دَ خوږونو نه دَ رنګونو نه
دَ ګلونو نه دَ خزان نه
او ما خان له غم که پخپله جوړ
دَ خندا نه خوشحالئ نه
دَ وصال نه دَ خمار نه
دَ بهار نه دَ لوئے نه

او ما ځان له ژوند که پخپله جوړ

د امید نه د رڼا نه

د تیرونه د بنیرونه

د غمونو نه د سودا نه

او ما ځان له مرګ که پخپله جوړ

د ژوندون نه د مستۍ نه

د سپرلي د زېړو ګلونو نه

د لالونو نه د ځوانۍ نه



# کړې وړې

## دا څوک دی؟

دَ چا نه خفه دې او چا ته پقار دې — په ژړې واوره شي په اور کې انګار دې

پلار نې ژوندی دې خو دې خپله پلار دې — پکښې وي سفر په نور اباد ګل او ګلزار دې

په بلې نې پیاز دې خو په سر کې دستار دې — په لاس کښې تیغ دې په خلکښې بنا مار دې

د شیطان مرید دې خو د خدای اتابعدار دې — خبرې نې یو نه منې خو ځکه یار دې

په جرمست لکه خر، په سر کلک لکه غر

په زړه سپې لکه سپې، مر پرا قرېرا

په خونې خون لکه کوک، تش ایمانې دپوک

یارانه نې لیقرې لکه سخا ایرېره

کله ماول د پیشو، کله غپ د خر — کله غرم د زهرې، کله برېر برېر

کله شنک د لیلی، کله رنګ د ملا — کله شپول کله زور کله ګل د لاله

کله پرېس سوندل، کله سویت د دحس — د ده شان دحاتم او ایمان د چروس

د ده ست د کونکت مر پرا قرېرا

یارانه نې لیقرې لکه سخا ایرېره



# لنډے

تو تو تو خر او تته تته

ارمان زما لنډی له فیرنګ شسنه جوړه کړه کته
خبرے اوس پسته کی شسمله ئے دو بے بته
یو نو ے اسلام راغے د خانانو دَ مالته
چه خو بن نے دے موتر که مجبرت دَ جاعته
تیز کرځی په پټرولو کله بره کله ښکته
په بلهه تماچه کرځی یرپڼ ی دَ پښله ته

اوه تته تته خرو، اوه تته تته

ارمان زما لنډی ښن په اسلام کړے دِ ننګ
ارمان زما لنډی سخکال[*] کرلی ډی بادرنګ
ارمان زما لنډی کبن دی چالونه رنګ رنګ
ارمان زما لنډه یه کله پلن شے کله تنګ
ارمان زما لنډے وی کله بره کله ښکته

اوه تته تته خرو اوه تته تته

ارمان زما لنډه یه لرے خیته دماتی
په نسل فتح خان او په خویونو جلاتی

---

(*) سخکال: سبز کال.

ارمان زمالنګے زړه کښې زړه کینه ساتي

ارمان زمالنګے نن کې کاروونه خیراتي

زمالنګے حاجي شو نه خپېروي نه لته

اوه تته تته خرو او تته تته

زمالنګے بنه شوے دے غیرت د مسلمانان کښې

مړه له جنت کښې ژوندي له دا جهان کښې

زوی له نوکري کښې او خان له پاکستان کښې

د استاد رقیب دلال به نن تاله جانان کښې

په بلبل تماچه کړه کښې ، یرېږي د پنډ ته

اوه تته تته خرو اوه تته تته

ارمان زمالنګه دے چه پښتو لکه زمرے دے

په لنډه کښې بنه ډهرند دے خوګر بوره کښې نرے دے

په فکر افلاطون دے په اخلاقو بنا پیرے دے

په عقل لږ میخین دے خو په ژبه چیچړے دے

ارمان زمالنګه دے د ډک د چل او د حکمته

اوه تته تته خرو اوه تته تته

الله زمالنګے نن د فیرنګ نه ګټو خان

الله زمالنګه دے کښې هم مصر ایران

وخت نیت م د کعبے دے خو لندن ته دي روان

هسې دي فیرنګو ته خپنے نه لګي هندوان

ارمان زما الله ے نه باکوکړ دے او نه بته

او ه تنه تنه خړو او ه تنه تنه

پرون زما الله ے چرته ولاړو په دیران

پرون زما الله ی چرته خوړل پړکی توتان

پرون چه جهان روان (٭) وو، ؤ زما الله ے ودان

پرون دَ چا په دین وُ چه دانن شو مسلمان

زما دَ بناد یُ مشره ستا وی غم کښی کمه پته

او ه تنه تنه خړو او تنه تنه

زما الله په واوره دَ بوند یُ لګے دِ خاړ شم

دښمن م دَ دښمن شه نو زه یار به ستا دیار شم

که ځے دَ جانان کورته زه به ستا دخپو غبار شم

ته زار شه په وطن نو زه به ستا دَ ستر ګو زار شم

تش منخوره قسمونه ستا شه توړه ژبه تنه

او ه تنه تنه خړو او ه تنه تنه

ته نوم دَ اسلام اخلے په اسلام پوړے خندا کړے

مستی هم دومره بویه چه دے تام پوړے خندا کړے

دعوه دِ دَ عاشق ده دیاربام پوړے خندا کړے

که سم نه شوے روان چوکه به دړ وُرمه بنسکته

او ه تنه تنه خړو او ه تنه تنه



الیکشن ۱۹۳۵ ع

(٭) روان = وران۔

# مسلمان

مسلمان هغه بنده دے، چه ئې شونډې تل مسکې وي

سترګې ډکې د رڼا ئې، د خُلې يو په سل مسکې وي

سپين ايمان ئې لکه تندر، بې د ځانه هر څه سېزي

د جانان د در ايرو تې نه لږې ول په ول مسکې وي

چه ئې زړه ډک د آرام لکه ورځ د سمندر دی

خُله ئې ډکه د ګلونو لکه باغ د صنوبر

داسې مست داسې سرشاره لکه مينه د کافر

اراده کلکه بې کړکې لکه څوکه د خنجر

د وجود هر څاڅکې وينه سره په مينه د دلبر

په سينه کښې ئې رڼا دي لکه څرکه د جوهر

په ژړا کښې ئې تاثير وي په خندا کښې ئې اثر

مست ئې بر په هر څه بر وي لکه مست د سکندر

د زړه نور ئې لکه شمع په اور ونه بل مسکې وي

د بلبل د خُلې آوازه د غوټې د ګل مسکې وي

# ساقي

دَ ساقي لاس کښې شراب دي، دَ خندا دي که دَ غم دي
چه دَ سوز او که د ساز دي، دَ مستئ که د ماتم دي
ساقي سترګې مهرباني، خوږې ګوړې په ستم دي
دَ ساقي شونډو مدهوشو کښې خيالونه دَ کرم دي
دا تپوس زمانه مکوه، چه دا ډېر دي او که کم دي
دا نشه هم دَ صنم ده، دا شراب هم دَ صنم دي
ميخانه هم دَ صنم ده، مستانه هم دَ صنم دي
زه ئې څکمه ستا په نوم، دَ جمدُن که د عدم دي
جام په سر سر په سجده يم، يو قطره دَ خمار غواړم
دَ دلدار وصال په کېږي نه، تش خيال دَ دلدار غواړم



نه خوشحاله دې وفا کړم، نه خفا(*) دې کرم ستم
ژوند يو تال دې چه عزيزې، کله زيړ او کله سم
دا يو دوه ګړئ ژوندون، په خندا خندا ئې تير که
دا جهان خدائي جنجال دے، کله ودان او کله سم

(*) خفا = خفه.



# نوے کال

خاوندہ بیا سپرلے شو دنیا یو کال وارَوُ
چا پہ ژړا وارَوُ، چا پہ وصال وارَوُ
چا د نشو پہ شان پہ ساک او دال وارَوُ
چا د صاحب پہ شان ډبل پہ مال وارَوُ
څوک پہ سفر لاړل بلخوا ئے مال وارَوُ
چا د جانان پہ سَر دَ خاورو شال وارَوُ
چا دَ ګُنګرو پہ شان پہ شرنګا شرنګ تیر کہ
چا دَ سپوږمئے پہ شان پہ رڼا رڼک تیر کہ
او غني دا هم پہ لکہ پخوا وارَوُ
خہ ئے پہ خندا وارَوُ خہ ئے پہ ژړا وارَوُ





# زه

زما بخت د شمع بخت دی یا به مرمه یا به سوځم
یا به وېخ له دَ دریاب ځم یا به پاس په چپو خوځم

عجب ژوند عجبه لاره عجیبه کاروان روان دے
مارسوتی پړاؤ له بیائی که ژوند ځمه او که نه ځم



# سپرلے خلاصیږی

ماؤ د غمے لاړه ما سپینیږے شو ‏ — ‏ لکه د منی یخ باد د سینے شو

سره د سترګو دیر خود زړه کم شو ‏ — ‏ او د فراق استازے یخ د صنم شو

ساز کښې سره نن د خاموشئ خیږی

د هوش جنګے په کور د بیهوشئ خیږی

د شفق سره رنګونه شو لړه توره ‏ — ‏ بادشاه شنګے د شو د خپله کوره

او ستارے کښې شرنګ هغه د مابنام نښتے د ‏ — ‏ سرے په سترګو کښې د خیام نښتے دے

چې د رقاصے سرے خو تال نے هغه نه دے

بانګ د بلال هغه بلال نے هغه نه دے

په جام کښې کوټ کوټ شراب کمیږی ‏ — ‏ سپرلے خلاصیږی ګلاب کمیږی

اور نا د شمع کښې د سحر نور راغے ‏ — ‏ باغ د بلبلو ته نوم د باتور راغے

د غمو سترګو له خیال د خزان راغے

لږ مستی لاړه او لږ ارمان راغے

او د فراق سورے په وصال پریوته

ستوری را وختل او هلال پریوته

# دجیلخانے خوب

(۱)

خوب وینم عالمه که ئے څوک راکړی معنیٰ

پروت یم سرم اېښی دخپل یار په زنګانه

خوب وینم چه پورته په هوا لکه دباز شومه

کیناستم په بام دَ محمود ستړګے دَ ایاز شومه

پورته دَ خاموش زړګی نه خوږ دَ مینے ساز شومه

خوشحال م په حورو کړه د دمو زمانه

(۲)

خوب وینم چه ناست یم دَ جیند ی (۱) په خیه غاړه

شاه م سویلوکبن لکه سره شمع ولاړه

سپے شونډِ مسکے شوماته ئے وچه ژاړه وژاړه

څکه دِ دَ زړه وینے دا شراب دی مستانه

خوب وینم عالمه که ئے څوک را کړی معنیٰ

---

(۱) "جیند ے" د هشتنګر د مېنځ هغه سیند دے چه نهوږ

اته وابه کلی ئے په غاړه پراته دی . (غنیٰ)

(۳)

خوب وینم چه باغ دے د گلونو او ما بنام دے

سره سترگے ساقی د ساقی سره گوتو کښ جام دے

لاس په ستار پروت لیونے مست لکه خیام دے

اړۍ پړې نرۍ نرۍ د مینے افسانه

خوب وینم عالمه که نۀ ښوک راکړی معنیٰ

(۴)

خوب وینم چه سپینه سپوږمۍ پاس په خندا راغلله

ماله محبوبا په شرم شرم ترخوا راغلله

شونډو کښ شراب او په کوکۍ کښ قضا راغلله

سُر خمارے راکه پیمانه په پیمانه

خوب وینم عالمه که نۀ ښوک راکړی معنیٰ

(۵)

خوب وینم چه پټ شوم په نسیم کښ بهر لاړمه

خواله دَ جانان لکه دَ مینے نظر لاړمه

سترگو دَ دلداره لکه خوب دَ صحرا لاړمه

یو شرنگ کښ مِ لوټ کړه دَ عمرونو خزانه

خوب وینم عالمه که نۀ ښوک راکړی معنیٰ

(۶)

خوب وینم چه زه لکه لولکه په سیل اودتم
پورته د نرګس نه شوم په خوا د را مېیل اودتم
نا زد سبب عارے د لیلٰی په امیل اودتم
پته م ورته ووے سلامونه جانانه
خوب وینم عالمه که نے څوک را کړي معنٰی

(۷)

خوب وینم چه پورته لکه چغه د منصور شومه
یا یو متے خاوره وم یالونے دریاب د نور شومه
خوبانک د صحرا و شو زه را وینښ شوم کوروکور شومه
خوب یوره خوبونه را جمد(*) ے شوه زمانه
وی ے پریوزه لیونیه تیره وه د جیلخانه

غني

حیدرآباد جیل - ۱۹۳۰ع



(*) جمد ے : ژوندی۔

# کړې وړې

واوره فلسفه د لیونتوب د لیوني نه
دا آیات خو نه دي خو قرآن کښې ما ویلي

مرګ او ژوندګي یوه ده، غم او خوشحالي یوه
ژوند چې چرته نه وي مرګ چا هلته لیدلے دے

زړه لکه د جام دے د خوشحالۍ غم ئې شراب دي
تږے به رخصت شي تا خو غم ته نسکور کړے دے

خوند که ئې جدا دے، ده نشه یوه د دواړو
دواړو کښې خمار لري د ساقي د سترګو تلے دے

مرګ کښې پټ دي راز د مرګ ژوندي پرې نه پوهیږي
دا آیات خو نه دي خو قرآن کښې ما ویلي دي



# قید

دسحر تیل او دال　　　دمابنام داڼ او تیل
نه کوټکۍ په ګټ کښې　　　قلپۍ (۱) دعطر او فلیل
دسحر دوه چپاتۍ　　　لکه زړے چیترے
داسے خوارۀ او پاسته　　　لکه دَخرو تغرے
چپاتے لکه یخه سنوروا　　　په تروے ګړے تورۀ
پیاله دَ زیړو دولچے　　　او س ړاشه خوندے ګورۀ

بستر د برګ ترپړی
سوزنۍ تورۀ کمبل
او یارانے لهٔ دَ شپے
خار به خار به کهټمل

محفل د بنګلو خلقو　　　قول بزرګان شریفان
یا متهیزک کسان کپان　　　یا اجرتی قاتلان
چه نور زیړے شی هیله　　　ما په پنجرو کښې کړی بند

---

(۱) د جیل چکلے کښې د بولو لوښه هم پروت وی.

لکه مرز په قطار
په بلاؤ کښې کړې بند
تمامه شپه ګرزي
دم په دم کې تفتیش

| | |
|---|---|
| ته به وې چرګ یمه زه | یو به مِ سې پناپیش |
| د بندیدو سره | همه دنیا دَ بهر |
| یو تور به لره شي | کښېني مِ ان په خُکر |
| دَ جهان قتول نمونه | لکه سیلۍ راشي |
| دَ زړګي سرله به دِي | لکه کولئ راشي |
| او چه ارمانونه پکښ | لا د لولئ راشي |
| لکه د مرې په کور | چه سره ږ ولئ راشي |
| او چه دے باغ دګلو | ماښام را یاد شي |
| لا چه دِ ډک دَ مستئ | سور جام را یاد شي |
| که دا خدمت وي دتام | زمونږ توبه ده |

دا دال او تیل مضمول
ګرانه قصه ده
او لا په دے کښ هم
غني غزلے وي

د عشق اور دے مزلے

په بلے بلے وی

ولے په تشو اوبو

شاعري کرانه ده

| | |
|---|---|
| چه تاؤ د اور نه وی | زرګری ګرانه ده |
| قاضی(۱)، صاحب قرآن وی | سحر، مابنام، ماذکر |
| خان له نے کینو آواز | او ماله نے خوږ که سر |
| که میله غوږ کوو | اوس راته وائی آیات |
| قهر په مست او هوښار | رحم په صوم او صلوٰت |

خه او کړو صبر به شو

دا د الله نه ده

ولے په تشو اوبو

شاعري کرانه ده

غني

حیدرآباد جیل ۱۹۴۸ ع



---

(۱) قاضي عطاء الله د وزیر تعلیم زیاد حیدرآباد سنده د جیل مرګ شوے دے. نامتو پښتون شاعر سیاسي شخصیت او لیکوال (۱۹۵۳ م) قاضي د پښتنو تاریخ هم لیکلی چې په څلورو ټوکونو چاپ شوے دے.

# خاورے

نه منم نه منم یاره مرګ انجام د هستۍ نه دے
خلا مېدال شراب په جام کښې اختتام د هستۍ نه دے

چه ماښام د ګمے شپے وي نو د مخے سبا هم وي
چه رڼا وي تیاره وي، چه تیاره وي رڼا هم وي

که یو نه وي بل هم نه وي، او چه وي نو وي به دواړه
دے دریاب له چرته شته دے لرے بله یوه غاړه

زر سحره د بهار دي یو ماښام کښې د خزان
شل خمونه د ګل د عطرو یوه دانه کښې د رنحان

چه یوه غوټۍ شي خاورے تخم وکړي روغ ګلزار له
د خپل رنګ او بوئ پناه ورنه شکرانه یوسي بهار له

دا جهان د نور او سوز، ولے روک شي چه ساز چپ شي؟
چه جانان په مستو سترګو ګورے وزړوړي ستار له

په قبرونو کښې پرتے دي لاس او خپے شونډے او ګوتے
خوک شي تېر جوړوے د دے سرو سترګو خمار له

جام ئې مات شو میخانه کښې لیونے تے غلے پاڅید

زړه مې دِک د رنګه یوړه دے روان کوڅے دَیار له

ساقي نوے جام را واغښت په سره شونډو کښې مسکے شو

بل عاشق ورته لاس ونیو شکرانه تولې د دلدار له

مُلا بې سره سروره تش کنډول دمرګي یوړه

خاورے خاورو له لاړه کنده او کنوئے خوار له

غني

حیدر آباد جیل ۱۹۳۸ ع



# دخوبونو جهان

زما په وینه دخوبونو لوی جهانه
په شپه کښې راشې په ورځ بیا لاړ شې له مانه
دَ ستورو باغ پیدا دخاورو دانسانه
ښیسته دګلستانه راځه ماله راځه

دا ینې عکسه ولې بل خواته ودرکیږې ؟
سوره لوګیه آسمانونو کښې پټیږې
دصحرا سینده چرته ځې کوم خوا غیبیږې ؟
وچیږې وچیږې راځه ماله راځه

دسیلۍ اسه دآسمانه غورځول کوے
اول دا روښے بیا دَ زړونو ماتول کوے
دَ یو کار نه ئے او په ما کارونه سل کوے
وژل کړے وژل کړے راځه ماله راځه



# اې باد صبا

ته څه خبرې اې باد صبا
څه دنیا کانړې تالا کړې مونږ

هېرم کړې زلفې خورې ورې
زلفې جانانې تالا کړې مونږ

هېرم که هغه د نور سبا
هېر مستانه لیونې ما بنام

هېرم کوکې مینه ناکې کړې
پرټوږ دې اړولې د مېو جام

ګړې دکې زولئې د نور
څه په خندل مونږ نو ستلې دي

سرې صراحۍ د رنا او ساز
مونږ په صحرا اړولې دي

سترګې چې وې د خمار ډکې
مستې د ژوند د شرنګار ډکې

پور د شرابو پیالې د ناز
ښکلې د سُرو او سینګار ډکې

روښو هېر ښو، خاورې شوې
یاد او ارمانان هم خاورې شوې

پاڼې ګلاب او غوټې څه کړې
غم د خزان هم خاورې شو

ته څه خبرې اې بادِ صبا
څه دنیا کانړې تالا کړې مونږ؟

هېرم(*) کړې زلفې خورې ورې
شونډې جانانې تالا کړې مونږ

غني
حیدر آباد جیل

---

(*) هېرم : هېرمو .

# مهذب

چه خراب م په سکروټو کړو پر پوس
او په مس م خرڅ کړو دین ایمان ناموس
چه م هیرے د پښتو د ملک قصے کړے
چه په مسلک م کړه بدل د وطن بوس
چه په نوم د پلار نیکه به شرمیدلم
شوم فدا د مس د خولے مرید د بروس
سوټ م واغوست جهالت ته په غضب شوم
مادر او پدر بابا اوس زه مهذب شوم

۱۹۳۲ ع



# سوداګر

عجیبه دا سوداګر دے　　　په لاس تیغ په سر قرآن
شنه قبائے دا امام ده　　　کلکے سترګے د شیطان
په خکر لکه چنګیز دے　　　چلولی لکه ماهان
په خُله خوږ د ګلو باغ دے　　　په زړه سخا لکه ویران
غرمبیده لکه زمرے کړی　　　غریده لکه حیوان
پنجے د وبے په سر و وینو　　　سرے بره په آسمان

—

ما ته وَی چه خُوانه راګه　　　ستا پښتو توره او ننګ
راته وَی غیرت دې پریږده　　　شه زما د در ملنګ
وَی سرتیټ که هم کنی کرم به　　　په تا مسلک د الله تنګ
وَئی زه او بنیار لکه ابلیس یم　　　زه خونخوار لکه پلنګ
ته راکوز شه ښکته کینه　　　ماله د یار پالنګ
یا ما خدائے که سجده اوکه　　　یا زما او ستا دے جنګ

—

وی دا تو به زما لاس کښ　　　ستا د ژوند اختیار زما دے
ستا خمار غیرت او مینه　　　درے ګوټو ښکار زما دے

دا شمله د ننګ کړه تینګه ... ډیر تیره عوزار زما دے

د فرعون چنګیز وار تیر شو ... اوس را غلے وار زما دے

شه غلام د دے غلام ... په ده ډیر اتبار زما دے

خاورو ختو کښې پراته دي ... چه خوړلے وار زما دے

---

که زما شوے زما خوانه ... ګوره دا د زرو تخت

پاس په دې د پاسه کینه ... خوشحالیږه په خپل بخت

دا جامونه د شرابو ... مسندونه د زربفت

دا سپرلے دا پیغلے مستے ... ستا د سینے خوانۍ وخت

دا جنت د عیش او زور ... بل خوا اور د اوره سخت

خوانه زه ساقي له ورشه ... کړه دا سره سینه بالښت

---

رتبه ښکله سودا کړدے ... ښنګ زړه د کرم جهان واخلم

ښنګ نظر دستر کو ورکړم ... او چشمے د مرجان واخلم

ښنګ بهار او سپوږمۍ ورکړم ... دالا لونو ډیران واخلم

د کسیر د طوق بدل کښې ... ښکله دین او ایمان ورکړم

د دیدار دیرے ښکله ... بے خودي او جانان ورکړم

---

دا د نور او مستۍ ډک سر ... په سجده کیږدم غلام ته

د قصاب د چیچرو مینه ... ښکله او بنا یم خیام ته

ښنګ د بل د تا لي یانے ... کړم چو که د مستۍ جام ته

خنک دلدار په دنیا ورکړم | رقیب او خیژوم بام ته
د جانان خیشته سر ښنکه | د فرعون په بڼو کیږدم؛
نه د لیلې سودا کړه | تا د سرې وینې غوړنګ
په تیټ سر باندې نه بنائي | دا زما شمله د ننګ
د سرو زرو تخت قربان شه | په آزاد کنډ د ملنګ
تیتو ستر کو کښې او چیږې | د سرو او مستې رنګ
ستا شراب د زهرو کوټ دے | خلاصول کړي د ایمانه
ستا ساقي د چکلې رمه | په دوه نیمو پیسو ګرانه

---

زه روکیږه سودا کړه | لیونی مونږ د دلدار یو
ته ئې اوږې دلالونو | مونږه اوږې ی ښکاریو
نه ئې دم نه ئې داروشته | مونږ په داسې ښخ بیمار یو
ته مغروره په خپل زور ئې | مونږ په مینه کښې سرشار یو
راشه او ګوره فرعونه | دا دوه د ملنګانو

په دے خاورو کښې خوږ دي
کیږي د بادشاهانو

---

غني
هري پور جیل
۱۹۴۷ع

# کوګل

دے کوګل کښې م د نه — هم دوزخ دے هم جنت
دے کښې قهر او غضب دے — دے کښې رحم او راحت
دے کښې پروت یو سمندر دے — د نشے او د خمار
دے کښې پروت یو تهترین دے — د لمبو او د آزار
دے کښې پراته دي دومره رنګ — د سپرلی او د خندا
چه یو یو ئې یو جهان کړي — د مستئ او د رڼا
دے کښې پراته دے دومره رنګ — د تیارے او د ژړا
چه یو اُف ئې تور لحد کړي — د خندا ډکه دنیا
دے کښې دومره شجاعت دے — چه د ټول جهان مرګونه
یو نظر ئې تار په تار کړي — لکه باد وریځې بوسونه
چه په یوه باندې راشي — زړه غښتے(۵) دے د منزک
دا سے رپي دا سے تښتي — دا او بو خاشکے تے کلک
او چه کلک شي دا سے کلک دے — لکه کاڼے د فولاد
نه پے زور ترے اثر که — نه پے زر کاله فریاد
دے کوګل کښې م د نه — هم دنیا ده هم قیامت
دا هم لار ده هم کاروان دے — هم تدبیر دے هم قسمت

---

(۵) ے : سړي

پروت په دے کښې قول داستان دے | دَ جزا او د سزا

خور په دے کښې لوئے جهان دے | دَ وصال او دَ وفا

دا هم باغ دے هم خزان دے | هم بلبل دے هم بهار

دے کښې سره نیازبین گلونه | او د شنو اوبو شرار

دا هم زهر هم زقوم دے | هم گبین دے هم نبات

دا هم تور د مرګ څادر دے | هم چینه ده دَ حیات

ده کښې پروت داسے شراب دے | چه یو څاڅکے د مغے

په بد مستۍ او سرشارۍ | کړی دا وارو فرښتے

که چه ځی په بره دړمی | شی جبریل ورته حیران

چه په بد و باندِ راشی | امان او غواړی شیطان

عجیبه دیم جوړ کړے | اے زما خدایه عجبه

بے د تانه نور دَ هر څه | دَ همه یم مرکبه

دا داور او نور دریاب | دومره لوئے لکه آسمان

دومره روکے لکه څاڅکے | دومره لنډ لکه یو آن

دا قصه دَ سوز او ساز | ولے ولے څه له څه له ؟

خیشت او غم راز و نیاز | ولے ولے څه له څه له ؟

غنی
حیدرآباد جیلخانه
۲۳/۹/۴۸

# جناب شيخ

زړه دې ډک دے دَ خپل جانانه
پہ کښ ځاے نشته دَ يار

دا سے ډک شي د نيکونه
لکه ډک دَ مرو بنار

دواړه سترګے ړندے دي
دَ بل بد دَ خان ښه وينې

تل آئينه کښ ځانته ګورے
د يار نه وينے سينګار

شُناسے ستا او زکارے نه دي
چه صفت دَ آشنا وکړے

د خپل نور قصيد سے واۓ
په کوڅه کښں دَ دلدار

دا سے ته په نيکے مست شے
لکه دُو فرعون په زور

د رِيا ښه دي نه تاو دي
لکه لوۓ او تور حِصار

چه په بل کښں بدي وينې
خو مره زړه دِ شي خوشحاله

د بل خيشت دي ته غلا ښکاري
ستا د تور تاريک جماله

دا شمکور رانده چه وينې
چه د غرکوي غُزيږي

دا م ستا په شان روان دي
دا چه پريوزي او پاڅيږي

دا چه ته وربورے خاندے
دا مجنون او دا ملنګ

ستا قبا د شنو رينمو
او دَ دوي شليدلے لنګ

دا هم زوے دے د آدم — د الله د کوتو جوړ دے

څه که ډوب دے په تیږو کښې — په شرابو کښې شور پوړ دے

دے مرغے په چغو چغو — دے هم هغلته روان دے

ته چه ئے د کم په طمعو — هم هغه دده مکان دے

اے چه ډوب په فضل د رب ئے — اے چه بړه سخے خوشحاله

دده شور چغے هم واوره — دا هم ځان له وئ هم ناله

دا چه دې پړ پړ غږ پریوزي — تا ته ښیئے تیندک د لاړے

دادې دے سرماتے ولیا — خکه ته روان او ښیارے

شیخ چلو د نیکو ډکه — ګنهګار دے ستا استاد

ستا دعا د خان د پاره — ناله دے د ده فریاد

ستا د بنو دیوه بلیږي — په سینه کښې خان د پاره

دده سرے لمبے داوردی — د همه جهان د پاره

دے تصویر دے د آدم — د ختو او پریوتو

او په سوو وزرونو

د پتنګ د الوتو

غني

حیدرآباد جیل

۱۹۴۸ء



# تاریخ

دخوبانو سره مینه
ده خوراک د زړګي وینه

چه د بانړے وي تندي کښ
تل په نخ وي ماه جبینه

زنګ وهلے توره چړے
تویوي نه ستکے وینه

قتل عام د مښے کار دے
چه ځلیږي تامه سپینه

دخزان رنګ د سره زرو
دغني یارا حسینه





# ساز

شونډو له خوند    اوسترګو له رنګ
پوزې له بوئین    دَ نرګس دَ لونګ
زړه له امید او    مستي او ارمان
غوږ له سرود او    شنا او شرنګ
ماله سرور او    جمدون او نور
دا څو آوازه    دَ ژوند دَ رنګ
تق تق دَ اور    تپ تپ د باران
اَخ اَخ دَ وصال    اُف اُف د ارمان
وَی وَی دَ جنون    وَخ وَخ دَ صنم
نانا، اَو اَو    هـــر وَخ دَ صنم
قت قت دَ خندا    پرق پرق دَ مستې
شرنګ شرنګ د پانزیب    چن چن دَ لښتې

شړ شړ داوبو  شغ شغ دَ نسیم
بس بس دَ دِلبر  بړ بړ دَ غلیم
هیں هیں دَ هنګ  شنګ شنګ دَ ګولئے

قړ قړ دَ چلم  پړ پړ دَ لولئے
دُم دُم دَ دوپړے  ټنګ ټنګ دَ رباب
غړ غړ دَ پیالئے  سخ سخ دَ کباب
چپ چپ دَ کوکئے  پس پس دَ دلبر
چړ چړ دَ تارو  کوکو دَ کمتر(*)
بس بس دآشنا  بد بد ے روان

ایش ایش دا قلم
هاں هاں دا بیان

غنی
حیدرآباد جیل
۱۹۴۸ع



(*) کمتر: کوتره کبوتر۔

# صاحب

زوړے مې راغے دیورپ د تربیته

جوړ سنبال لکه د ناوے پوره ښکته

تریو تندی پوړه دی مخ ئے وو نیولے

تا به وے وُ د لاتانو د محلته

د ډوډۍ او د فیشن سره ئے شوق ووُ

ډیر نفرت ورله ورته د جماعته

لګولو د پیسو کښ افلاطون ووُ

خو کتلو کښ غریب وُ بے همته

نن چه ما ورته په فکر نظر وکړ

خرمهره وُ بس نوئے ده کته

۱۹۳۰ع



# اور

ګنهګار یم ګنهګار یم | هم د خدائے هم د دلدار یم
بے وفا په محبت کښې | نفس پرست او بے اختیار یم
مینه مینه په خوله وایم | مینه نه لرم حیوان یم
نه مې لوظ نه مې قسم شته | نه مین په یو جانان یم
چه کم ځائے ځواني او رنګ وی | چه کم ځائے د ګنګرو شرنګ وی
چه د چا د تمبل ټنګ وی | نو زما ورته غوږ ځنګ وی
یو مکه د مسلمان وی | د کافر یو بت خانه
هره ورځ زه بدلومه | نوے نوے میخانه
هم مې مینه ده بے پته | هم ګناه مې بے وفا ده
چه مې کمه مخامخ وی | زه وئیم دا ځما لیلیٰ ده
کله لاړ شمه جمات ته | په سجده په زارے پریوځم
مثل سجدے مې کړے نه وی | بیا د چا په یارے پریوځم
یو سور اور مې د کوګل کښې | ما سوزی د ننه بهر
نه دوږخ خونه دے کم شو | چه دا اور دے که سقر
که ساقی د کوه قاف وی | که شراب وی د شیراز
بس پیکه مې تر زړه کښې شی | چه معلوم ئے کړمه راز

که ما ښام وی که سپوږمۍ وي  که وي راز او که نیاز
روح م تنګ لکه لحد که  که وي سوز او که وي ساز
دا زه څه پسې حیرانه  سرګردان پریشان ګرځم
دا زه کم خواته روانه  په باغچه بیابان ګرځم
ګنهګار یم ګنهګار یم  آدم خور یمه خپل ځان خوریم
خپل ښایست خادرے کومه  اژدهار یم خپل جانان خوریم
دے په زړه د ښه اور دم  رو رو تن لوګے لوګے که
د ضمیر(٭) ګرو سره کلونه  شین چمن لوګے لوګے که
دے دا اورمے خوراک که  نوے نوے امبار غواړی
نوے رنګ نوے محفل کښ  نوے نوے خمار غواړی
دے دغجن یم دے وغجن یم  داد قسمته کوم فریاد
نه یم تنګ زه د دے اوره  زه په دے یمه آباد
زه به ده له خاشاک ګورم  که باغچه که بیابان وی
زه به ده ته لوګے کومه  که خواني وی که جانان وی
داد ده په شنولو ګښی  زه او دبل د دلداروینم
داد ده په لمبو کوره  زه سپوږمۍ او ګلزار وینم
دے زما په وینه پاڼی  زه د ده په لمبو پایم
دے زما وجود او ساده  زه د ده وجود او سایم
چه دده پرق او شنار وي  هلته ژوند هلته انسان وي
چه د ګنۍ دخاورو توپ وي  پنډخزله د ویران وی

(٭) ضمیرے = ایرے .

لېونی يم لېونی يم
نه مې سرشته نه سامان

نه په مينه مستې پوهې شم
نه په سود او نه په زيان

عجيبه سپے زوره لار ده
عجيبه پټې ځي کاروان

که قدم اخلم غوړ خېږم
که او درېږم مه تاوان

عجيبه غوړ شراب دي
چه يې څکم لا تږې کېږم

عجيبه من او سلوی شته
چه يې خورم لا وږې کېږم

دا په زړه دننه اور م
که يې وژنمه روکېږم

که يې نه وژنم سوزېږم
لوګې کېږم ايرې کېږم

لکه شمع بدنصيبه
لا به سوزم لا به مرمه

لا به خان تالا کومه
لا به توږ درياب له ځمه

بس دې بس که لېونيه
دا د ولې ولې باب

جام که ډک سترګې که پټې
تنکوه د خوږ رباب

ور نژدې شه ور نژدې شه
چه د يار شونډې شکرې

رو په مينه مينه اوګوره
دواړه خوږې خوږې خبرې

توره سترګې بلېږي
لکه شمعې د معراج

دغه سرو شونډو کښې اوردې
اور د غم دا اور علاج

په سرو کوتو کښې جنت دې
که دوزخ دې که بقا ده

وي سوزه سوزه خاندل
ژاړه ژاړه دا دنيا ده

غني
حيدرآباد جيل
۱۹۴۹ ع

# آدم

عجیبه م وجود لا عجب م خکر
څه بې توکه بې توله دا سترګې او سر

یا په بام د حرم دَ مستئ ترانه
یا په شپه دَ وصال د نفلونو بهانه

یا موسیٰ ته قصې د فرعون دَ محل
یا فرعون ته بیان د ابد دَ اجل
یا د غم د بی بی نه سرور غوښتل
بُت خانه کښې پرتونه د طور غوښتل

کله روح د مجنون او ساقی او پیاله
کله نُسر د خیام او ژړا او صحرا
کله خوب د منصور د رنا دَ وصال
کله شوق د حبشي د کوکې او دَ خیال

کله روب بې پایانه کوسې د غم
کله هره پیاله کښې صنم صنم

یا دَ ژوند کاکوکښ د مرګ تصویر

یا دَ مرګ ساګوکښ د ژوند تعبیر

یا پیغام د فراق په خندا کښ دیار

یا امید د وصال په ژړا کښ دیار

یا دَ جیل کوټګۍ کښ خوبونه د ګور

او ایرو کښ ارمان د رڼا او دَ اور

دا بیخوده دماغ بے کماله وجود

پجاری د مندر او شوق دَ درود

هم غلام د ښایست هم مرئے دَ وفا

هم دریاب د تیرے هم مستئ او رڼا

بے آرامه ارمان بے قراره نظر

څه بے توکه بے توله دا سترګے او سر

یا په بام د حرم دَ مستئ ترانه

یا په شپه د وصال د نفلونو بهانه

غني

خان پور

# نه کېږي په عقل

سپين وليښته دِ تاو که سهو کې څنګه تږ جوړه که
قرض رنګ پرِ توی که قالين جوړ د خپله بوڼکه

نه کېږي په عقل تو کل غواړي د چرسيانو
نشته دے کلونه په کوڅه کښ دَ مليانو

دلته ښانګو نه دی تالې دی رکيبۍ دی
دلته شراب نشته پيکوړی او زلوبۍ دی

عقل له سرور کښ سره عقل کښ کور نشته
دا خبرے ماته مِ رو رو کړے آبۍ دی

مينه خو يو مينه وی نه سود وی او نه زيان
دلته په کچکول کښ خورے شوے نوابۍ دی

لاړه د هوښيار په کند وکندو په دردو
مينځ دلوړے ژوړے دَ اودکه دا سېږ دو

دا سے آواز کوړۍ چه نه زير وی او نه بم وی
خوښه نے رباب کښ خاموشۍ دمقبرو دو

اوبل خوارله یالوړ او صحـــراووياميهار وو
خـــرد هوښی دورد ے خومیں دے په جوارو

کور دَ طمع څه دے تو رمحل د بلا کانو دے
روح نا دے کول په دو لکی کښی دیېریا نو دے

تښ دکباب خوند له اسمٰعیل جلاّ و ل دی دا
مادا او ریدلے په کو څه کښی درندانو دے

زور او غـرور نه لوی عشق صبر او ارمان دے
ښرا و سه وړنه لوی سرخان دے او جهان دے

رحم نه انصاف دے يو تدبير دے دَ دوام
هرڅوک نے پکار دے که خپهو دے که خیام •

ښنک وی دنزدے نه او دو لکے ډلوے لوے
دوا ړه غزی یو شان او یو ډ نګے خبرے

دک دظلمه زوره دَ طاقته د باز پرے
جوړے دمهین او رنګین بوی دګل ورزرے

کومه لا رچه اخلے خومقام نے بس یو دے
دلته زر جماته دی امام نے بس یو دے

خکه لیونے دے مرور شی ـــکـــله کله
بل خواته ورتاوکړی داد هوش تمغه شله

پریوزی په پړاو کړی تغانه کښې ډیوه بله
خپے سپینے پولۍ طمع تا قتی دَ منزله

تاته او د سرور دے یو مار ولے وژنے اوکښې؟
اے د سپین او تور مالکه څه مزه ده تور کښې؟

ولے زما لال وی پروت په خُلے کښې دَ بنامار
ولے دے ګلاب له نه اوربل او نه بهار

ولے دِ بندی که ښاغلے تن کښې دَ ډنډ وکی
غواړے تر چپے د سیند سازونه دَ ابشار

ماله مرګ او ژوند دے تاله تش دَ ښخنے ول دے
اورکښې دے بل کړے ولے حُسن الول دے

اورته دے نبولے یم فولاد جوړ دے زمانه
سنه چه زه فولاد شمه نو څه زما جانانه

جسټو فولاد وله جوهر وله کمال له
بس خاورے کیږدی روکیږدی دَ دُنیا نه

ولے دِ ورانو لوله جوړ کړے سور محل دے؟
اورکښې دے بل کړے ولے حُسن الول دے؟

ډیره اسماعیل خان
۱۹۵۰ع

# اختلافات

پلار مې ورک په خپل وطن
زه د خپل وطن نه ورک

د هغه خوښ دے تعلیم
زما خوښ ساګ د پالک

د هغه خوښ دي ځوانان
ټول د قام په جنګ روان

زما خوښ هر ګلستان
هر چمن د لولو ډک

د هغه وطن جهان
دا بې نوره بیابان

زما ملک ښکلے آسمان
د ښیسته ستورو نه ډک

# لوږه

چه شي خُله د خوږو سپوږمۍ — د دنیا خوا ږه همه

نه ملام ملام یادېږي — غونزاخي (*) او تسلمه

چه شي خېټه ډېره وږې — د دنیا گُل خوراکونه

نه په سترگو ښکارېږي — سیخکي او کباپونه

چه شي سترگې ډېرې وږې — د دنیا گلونه واړه

ورته ښکلې ښکلې کېږي — تورې زلفې سپینه غاړه

چه شي شونډې ډېرې وږې — د جهان همه خوبانې

ورته ورانې ورانې کېږي — سپینې تورې سرې ورانې

چه زړه کې د مینې سپور شي — تېرې نوې خوشحالۍ

ښکلې د نه رپي رپي — لکه ناوې په ډولۍ

او نیم او نیم داسې وږې — په یوه کوکۍ ورکومه

دا جهان او جنت دواړه — په دوو سرو شونډو خرڅومه

ښکنېنه ښکنېنه لیونیه! — دا لختنه وهه کوکارې

دا مزې دې دي نصیب کښن — چه ته زوی د داسې پلارې

(*) غونزاخي: محبوبه

آخر خله به د خوږ شي — کښېنه وايه ګړه ګړه

د قسمت غا خا ورته کړې — راغوځي کندې ته تلو ته

که بهار کښې دي ګلونه — نو مېوې دي په خزان کښې

سبا دغه دې راوخوت — ستوري ښکاري په آسمان کښې

سره ګلونه شنو او بوله — بيا به لاړ شې هشتنګر ته

په نو توب عزت به ګورې — خوږو سترګو د دلبر ته

بيا په غاړه د تالاو به — د سرو مېو ډک کړې جام

بيا به ګرزې په مالتو کښې — د سحرا او د ماښام

بيا به او ترې په يوه — برګ او مست هندکي غوايان

بيا به نيسې په جينډي کښې — مار مهي او سره کبان

بيا به شور شغرب د ژوندې

د يارانو شتې مستې

چپ چپ شه مخکښې مه ځه

ژړا را غله ښتې ښتې

غني

حيدر آباد جيل



# ویش

باغ کښې ښکلې ګلاب شي ښکلي سرې ښکلي رخسارې
ښکلې د مینې غنچه شي ښکلي کښې د غاړې غاړې
تاج د چا د زړه د چا تاج شي د غمونو
ویش د بل په لاس دی که ته خاندې او که ژاړې



# دَغم لوَر

لنګه تياره شوه رڼائے راوړه
آدم چه مست شو حوائے راوړه

مرګ چه د خپل ژوند تالاش کښ بدوت
ژوندون ئے راوړه او سائے راوړه

توبے چه چغه د کفر اوکړه
د مال ئے پياله قلائے راوړه

چه او بنګے سره شے شو شراب تر جوړه شو
چه غم بابا شو خندائے راوړه



# زور

خدائے چه پیدا کړ دځان نه زور
کړل ئے ترے لاندے خیزونه نور

سړے او چت کړ تر نیم آسمانه
بادشاه د هر څه ؤ بے سړه زور

الله موسکے شو حسن پیدا شو
طاقت په مزکه پریوت نسکور



# بُت

دا ښوندې سرې د ګل غوټې
دا ښوندې سرې ورې ورې

دا ښوندې سرې قطرې د ناز
دا مجسم مکمل نیاز

تش او وچ زړګوټه دا
رنګ د مستۍ او ارمان خوري

ما بانډې ښې او خوږې لګي
ما ته نقشې د جانان خوري

دا خوږ ژوندوان مست شونډې
مرګ پورې مسخرې کوي

دا خوږ ګلاب خندا نه کړي
بل پسرلي ته آسرې کوي

دا خوږ د تور مرګي په مخ
رنګ او امید د دنیا خوري

دا خوږ د مجنون سترګو ته
ښیښت او سینګار د الله خوري

پوهې د مړوي د آدم په راز
پوهې په تللو د سوز او ساز

تولې قصې نې یادې دي
تولې قصې د راز و نیاز

دا د عیسیٰ د لاس په شان
ژوند او امید او خندا خوري

"بت" ورته ښکلې او وایه
ما ته چه نور او رڼا خوري

# پیژندګلو

هوښیار هغه وي چه خان ګڼي خر توب وینی
خر هغه وي چه چېل خان ګڼي هوښیار
عاشق هغه وي چه طمع د خه نه که
په شرنګار په مخه څي لکه آبشار
غوث هغه وي چه له خانه خبر نه وي
خو خبر وي له ژړا د غریب خوار
چه د قام د پاره دانګي اول اوربه
د هغه منم بریتونه ګوندي د دار
غني هغه د چه سر دې بې سر
کاله خر کاله نقلي کاله هوښیار



# ولې؟

ګل له بنده خاندښت　　سترګو له پسته رڼا
شونډو کښې دا بېخودي　　شونډو کښې نشه نشه
خیښت له دځل ځان پښان　　نور او سینګار او خمار
یار له دخندا په ځاے　　سپین دسرو ګلونو خار
مینے له دَ زور دَ سمندر　　زړه دَ بادشاه ورکه
ساز لره آواز، اثر　　خاندښت، تا دښنا ورکه
ماله دغمونو ارمانونو　　جهان راکه تا
ماله زړګے پوست او مستانه　　او حیران راکه تا
او سترګے خمارے دَ یار　　دحُسن د آرام ډکے
کله د سپوږمۍ درڼا　　کله د ماښام ډکے
کله دَ خوانۍ د امیدونو　　د اَرمان ډکے
کله لیونے ستا دخمار　　او ستا د شان ډکے

اے دَ دوزخونو قیامت — او د حساب رَتبہ؛

اے د تورو زلفو دلا لونو — دَ رباب رَتبہ؛

اے دَ مستو ستر کو دنرکس — او د گلاب رَتبہ؛

اے دَ مینے حسن دځوانۍ — او د شباب رَتبہ؛

اے دَ لولکۍ د حُسن — اے دگل دخیال رَتبہ؛

اے د راز او نیاز او — دَ نسیم او د ملال رَتبہ؛

ولے دے دحسن نہ

جوړکہ دا د خاورو ښار

خیشت لہ دخپل ځان پښان

نور او سینګار او خمار



# باچا

بادشاهي د جهان څه کړې؟ — خان له وې زیاتې غم
د انصاف تلل مشکل دي — څه به دېر کړې څه به کم
خپل غمونه دِ لالن دي — د جهان غمونه غواړې
واسې تخت بخښه کړې څه — چه پر شپه او ورځې ژاړې
د تمتوانو په حلقه کښې — غټ تمتو مخکښې روان وي
لوی باچا دَ ښنا ورو — د همساو لوئې حیوان وي
دا دنیا د سپي لکۍ ده — نه نیغېږي نه سمېږي
په وجود توره پیشو ده — چه ئې وینځې لا توریږي
بادشاهي حله جوړېږي — چه نیم لګۍ شي نیم مړو کړي
چه یو کس د بل په غوښو — د خپل کور کوترې ماړه کړي
دَ دې ژوندَه څه مطلب شو — چه یا مرې یا به بل وژنې
دا میوه ګلاب دِ څه شو — باغ ساتې او بلبل وژنې

رتبه ماله که ډیرا کړه | بادشاهي دکل جهان
زه به ئې وغورزوم له کوره | لکه سوے په ویران
دا یو دوه کړې ژوندون زه | په جګړو نشم تېرولے
ددے ظلم په کتوئې دے | رتبه بل کیږده بړغولے
ماله راکړه خو کلونه | یو نیاز بین شاتي جانان
یو ورو کے غونډ باغ | او په خوانے سیند روان
چه ئې زه په غاړه ناست یم | په یخ سوري دَخرولے
په مزه مزه لیکمه | د مزے مزے غزلے
کله سوال منت جانان ته | کله بد او رد مُلا ته
دساغر ساقي صفت کوم | د تیږو دک لاله ته
کله کله تا نه رتبه | دَ ورو په شان کیلے
کله تور جمشیدے (٭) امید | کله سوے اسویلے
کله تنګ کله تکور | کله جام کله دلبر
یو جهان کښې درنګ ډوب | د جهان نه بے خبره
بادشاهي هغوله ورکه | چه زغملے ئې شي زور
چه په لاس لکه قصاب وي | په خصلت لکه منګور
چه خپل خان ته شي کولے | قرباني د رود د دینے
هم مضبوطه هم خوږے شي | د غریب د غونبو پینے

(٭) جمشید ژوندے.

تاج ور لے هغه سرشی      چه وژل لکه وباکړه

لکه پړانګ داړل خپل کړه      یړول لکه بلا کړه

تخت هم نه پاتی بے زوره      بے دتورے د جلا ده

بادشاهان چه خوړه دین وی      دومره وی دنیا برباده

لوی بادشاه وی لویه ژوره      دے په وینو زوو پائی

بادشاهی لکه د اور      په روتو په سوو پائی

رتبه فضل په مونږ اوکه      مونږ ساته ددے آفته

چرته غت خرته په شاکه      دا دسرو لالونو کته

سفارش ورته دا وکه

صیب زمونږه د بابته

وے پام کوه د دله خره

غنی ونه وے(*) په لته

حیدرآباد جیل



(*) وے: ومے.

# دوزخ

د آدم د نظر تول دے | که دا تور دے که دا سپین
د آدم د زړه خیال دے | دا سپلمئے او انګبین
دا آواز زما د ګوتو | پوست مړوند تنګے مهین
دا زما د ځګر لوبے | ګل اندامه او شیرین
دا زما خودے جوړ کړے | دا وبو شراب رنګین
چا له خبر د شرابو | یو قطره ده د زمزم
چا له خبر د زمزم دے | یو غمګین ماښام د غم
چا ته روکے سپینه شمع | د سپوږمۍ نمره روښانه
څوک پیغام د جبریل واوري | د سرو شونډو دوه جانانه
چا ته سور په وینو تاج شو | چا ته تور په تیرو تخت
چا په سر د صلیب ولید | چا په سور ریښمین بالښت
د موسیٰ پښتانه څوک سم کړي | په محبت کښې مخ د یار
څوک تورے جوړ په ژړا کړي | څوک تر حُسن او خمار
څوک د ګل د ماشوم مخه | د آشنا شونډے کړي جوړے

چا په خوا د نرګس و منت　　چا از غوګنبس دکړو ړے

طوش نصیبه ځوک ولاړه　　په خندا غیږ ے د یاره

چا دَ ناوے دجوړے نه　　کفن او شلوو دلډا رله

ربّه : ربّه ! زما ربّه !　　لیونے شوم په فکرونو

ځنګه ځور قهر او غضب کړم　　په سپرلی او سره ګلونو

ځنګه غوږ کیدم مُلاته　　توراسے بلبله هیره

ځنګه ستا د نور او خیشت نه　　بد رنګی تیاره چاپیره

دَ خندا دَ سپین سبا نه　　تورما بنام او لحد جوړ کړم ؟

دَ انسان د مایوسئ نه　　سُره سرور دَ ابد جوړ کړم ؟

دَ فقیر دَ تلو سو نه　　د بادشاه خمار کرم جوړ ؟

دَ دوزخ د اور او زور نه　　ستا خایشت سینګار کړم جوړ ؟

ځنګه و منم تا جوړ که　　دا جهان او آسمان دے له !

چه خیام روان په زور کړے　　طوفانونو دَ کعبے له !

دَ مستئ دا دومره ډک زړه　　بس پیدا او وسوسے له ؟

جوړ دِ حسن یارانه کړه　　د جزا سزا قیصے له ؟

تاکړه جوړ د خپل خایشت نه　　یو حسین یو نازنین

ستا دَ بنګته بهو سوړے　　هرما بنام پوست اوړنګین

تاخندل چه دګلاب رنګ　　دَ لولکے وزد یوړه

ستا په لاس، خیام، په جام کښې — بې خودي او دلبري وړه

څنګه غم غني له ورکړم؟ — د قیامت او حسابونو

کړکې زړه کښې د بلبلې — د سپرلي او د ګلونو

څنګه شال د وینزې خوړ کړم — د لیلې په سپین جبین

د حبشي د عشق لیواله — ښاپیرې کړم د ماچین

څنګه لاس کښې محبوباله — خنجر ورکړم د غماز؟

څنګ دیرګوي کښې ډوب کړم؟ — د مینو سترګو راز

څنګ جهان حسن ډوب کړم؟ — په یو څاڅکي د تیرو کښې

او د شمع رڼا څنګه — کړم بدله په ایرو کښې

رَبّه! رَبّه! زما رَبّه!
لیونی شوم په فکرونو
څنګه خوړ قهر و غضب کړم
په سپرلي او سره ګلونو

خانپور خیل



# لیونی

یو منارے روان کړے د نرو نرو کوڅو دے
یو خیال ئے روان کړے د زړګی د تلو سودے

یو شے ئے روان کړے ټکے سوز او ټکے ساز
یو عشق د حقیقت جوړ د عشقونو د مجاز

یو کوړے روان کړے د خوبونو د رنګونو
د تورو تهترینو کړنګیدونکو شرنګونو

او خاندی لیونی سکرے ډکے د مستونه
وحدت ئے روان کړی د لکها بت پرستونه

او کله لیونتوب فلسفه ګل او صنم وانی
او کله د مستی خبرے ډیرے په غم وانی

سرے پانے ګل غوړیږی مخ د شبنم پرے پټوی
اوربل مست خوروی د سترګو غم پرے پټوی



# زه

زه یم زه یم رنګ سهر او د او شرنګار زه یم
دَ جانان سترګو کښ هوا دے خمار زه یم

دا تعبیر زما د مست زړه د تالاش دے
یار زما د زړه ارمان دے دلدار زه یم

دا زما زړه چه د خیشت اورنګ شی ورځے
سپرلے سره ګلونه راشی بهار زه یم

دا چه زه شم د مسکو شونډو لیواله
لیلیٰ جوړه کړم د حُسن معمار زه یم

دا خوږه د ځګر سوز په هوا سور کړم
روح، مطلب، معنیٰ، آواز، دستار زه یم

چه زه نه یم بے معنیٰ جنت آسمان دے
دَ جهان د سوز او مینے مختار زه یم

دومره پوی شوم په دے روکی غونډ ژوند کښ
یار زما کمال، کمال دَ دلدار زه یم

خاطر جیل

# اوښ

لکئ دِ دَ خر څوکی او غړانګه دِ د بتے

کوږ ووږ اووږان ویجاړ او دولس ئیم ګړه اوچتے

په غوږو کښې عرب ئې او په شونډو کښې حبش

که پادم خوګ دراچې ورته نه شې اخلتے

ډیر زیات بے نوره ښکاری ستا په پوزه کښې مهار

دے دومره اوچت سر کښې د پستے نیستے زنار

نصیب کښې دِ چنهه شته نه اور ښئے نه شلتے

بس لوښے درانه باروړنه، کجاوے تغرے کتے

ستا سترګے د شاعر دی تله د لچک د نواب

په شکل معتبر، معقول ملک ے د نیستے

خندا دِ زړه کښې نشته په بنیرو دِ تل خوله توره

بورا په هغه ورځ شوے چه پیدا شوے ته د موره

مستی وچه بے نوره او ځوانی دِ بے سروره

غوږ ونه د نیلی، تنش د نیلی د خیال غوره

او دِ لږ خپے دِ د رنګ د توپ او تله بے خبره

دَ قبر په شان ملا دِ د سرګی په شان مجبوره

تہ تول ناکام ناکام ئے نہ رنګ وینے نہ خمار
همت او جوش دِ نشتہ کورخہ او ژبہ تږے ئے خوار

پہ خیتہ دِ ځان ورکہ خکہ ډوب سپک او دروو شوے
مین پہ پیکوړ شوے خکہ پاتے د جلوس شوے

جنون خندا دِ ورکړه د زوزانو پہ بدل کښ
د حُسن بادشاهے کښ د ژوندون ویرے جاسوس شوے

تا خیشت دارمان ورکړه بلا نګی کښ دَ ژوندون
تا ورکړه پہ تیپرو فلسفہ دَ افلاطون

تہ رور شوے د خرو پرے دِ سبوه رودی دا زمری
تا غوړ موسیٰ ورکړو پہ کوڅہ د سامری

تا لے دیزید وینے وینے نہ مرګ دَ حُسین
پہ ژبہ دِ شراب تراخہ خوازه لګی تری

تہ نن پہ سبا نہ ورکے تہ نہ ئے جوارګر
داخکہ مهار تیپ کہ ، ستا د تولو اوچت سر

اے او سبہ غتبہ او سبہ ، تہ نہ روکے د میږی نہ
لس چنډه کہ زمرے شے ، خو میږے دلو ګی نہ

تر مغے بہ میږے ، او ژړیږے او کړیږے
تر کومہ چہ و نہ باسے دِ طمع دَ زړه ګی نہ

دَ طمع ستا نہ دیرا اوچت سړے نہ کړم را ښکتہ
دَ سپینے شهزادګئ پہ سر خوږے دَ د مے کتہ

داطمع مزے او نخے کاندی ستړے نړے نړے

داطمع خرخوی بازارکښ شونا نے کړے کړے

داطمع شهزاده کاندی غلام دکورد وینزے

داطمع دجنت حور له ستړے کړی بے شهے

داطمع شهزادګی کړی دمرنی سوه نوکره

دا ډیرغمی میرے کړی، کړی کونجکه ترے نه بره

داجوره دعقابه کړی دتور ککوی کمتره

دازره نه غم راغونا کړی او خندل خوانی دی

داجوره دکعبے نه کړی منډی دسوداوزیان

داکل خاورے ایرے کړی مستی پوسی دعنبره

داجورکړی دعیسٰی نه مقتدی دسامری

دا دے په خپو خورکړی نظرو نه دلبری

اے اوښه خوارہ اوښه بے بناستہ بے جاله

اے اوښے د زوزانو بے خبره دکماله

ته نے لوږه اوتناه نه سرورے اونه ساز

هم دغه دے داوښ اود آدم دفراق راز



# مرګی

مرګې دې راشي
چه کله نے وس وی

ګل به م لاس کښې وی
او یا به اس وی

یا به ټوپک وی
یا به قلم وی

د وب به خندا کښې
د دنیا غم وی

چه څه موبخت وی
دومره به بس وی

مرګې دې راشي
چه کله نے وس وی

# کمتره

د جنت مرغۍ کمترې — د غم درد وه بې خبره

که سپرلې وي که خزان — ستا دي مستې بازیګرې

شپه او ورځ په بقبقو دې — د آشنا په ننداره

د یارۍ مستې قیصې کړې — د جمات په مناره

دوه دانې کړې چرته پورته — بیا ستي غوړې شړ وکړې

د پیریانو په کومې کښې — لمغړې د بنا پیړو کړې

اې د مینې لیونیه! — بې ګناه او بې آزاره

د محراب د پاسه تاخ کښې — کوګې اخلې د دلداره

خپې دې مرګې سرې وي — هره ورځ په تا اختر دې

تل نشه نې بې شرابو — مدام خواکښې دې دلبر دې

خوش قسمته بې خبره — د دوزخ نه د مُلا نه

د نیکو د ثوابونو — د شرمونو د ګناه نه

ده کوکوله جوړه شوې — ستا صبر که بې آزاره

ستا سره سره نرۍ نوکونه — ډک د خیشت او د سینګاره

نه د جنګ نه د غم بشته — سو چې مینه بې نفرته

نه د چل نه د دوکه شته — یاري پاکه بې علته

البته د هم دسیل دی — د مستۍ د بازیګرو

که بادشاه هم پېښې کړي — د ورږو کوتوتکو

غونډو سترګې د معصومې — د رڼا اتباره ډکې

پیمانې د سرو شرابو — د خندا اد یاره ډکې

کاش چې زه هم ستا په شان

اې کمتره مستانه وې

چې نه غم وې نه ارمان وې

بس خندا او یارانه وې



# باویړے

بیا شروع شولے په ما دَ غم چپے
بیا بے خوبه بے آرامه مے شوے شپے

یو خوا رند یو خوا ساقی یو خوا شراب
بل خوا الوت کښې زاهد اړوی تسپے

په لوګی د هغه اور دواړه تو دیږی
چه عالم ئے کړو جلیا سے تپے تپے

غنی خوبه د ارمان په لمبو سوزے
خوبه وی دا د فراق سهے تپے

دخوانۍ اختر دے لاړ نګریزے څه کړے
ښه به وی چه په دیوال ئے وُ تپے



# مېږې

اوږد کاروان ستا — ګرم روان وي
سم په قطار قطار — لکه اوښان وي
په هله هله — په منډه منډه
نمر دړله اوسوه — لشه بربنډه
لکه د سپي مېسې — خُله کښې اوړلکې
او د پلټنې په شان — په پرېټ تلل کوي
د مړېتي په شان — هم غل هم نږې
په حکم کلک روان — د خېل افسرې
د خېل نظام تابع — لکه انګرېزې
په زړه مغبوله مړنې — لکه چنګېزې
ملا لچکه اره نږې — لکه لېښتې لړې
خُله د کلنګ هسې — خپې پت پټې لړې
وجود د درې بنده — او شپږ ډېښې دي
نرۍ نرو چک دي — کړې وږې دي

اولاس دیو نشته — دا عجیبه ده

خه بې توله غونډ — دِ معامله ده

دَ پیدا کولو آفت — دَ جمع کولو بلا

لکه د شوم خنبوے — زمکه کښې واړه دنیا

په هیڅ هیله نه کړے — لړم خوږے مار خوږے

ته دَ چچو ډنبرو — تر سکون اَچار خوږے

د سبا فکر کوے — نوے فلسفی ئے

مستی خندانه کے — پخو صوفی ئے

یو قدم نه اخلے — ته بے غرضه

رَبّ دِ مونږ وساتی — دَ دے مرضه

بس دخوراک له غمه — لیونے گرځے ملام

ته ئے دحرص بنده — ته ئے دَ خیټے غلام

ستا طبیعت دَ قارون — دَ خزانو شوقی

مین په هره میوه — د هندوانو شوقی

داسے په دوږ زغا — ایک بکی

اَچے دَ چړ کے هسے — سپینے آګی

دیرا استکارے ته — خولا مو کښنه وے

په مر زمری ورځے — ژوندے ملخ نه وے

دکل جهان صفائی — ستا به تنکه دو

ستا نوکری په ماچین — په امریک

اوږے او ژمے — هم پشکال

ستا دغه لاروی — او دغه خیال

دَ پیدا ایښ نه واخله — تر دَ مرګی

تل دغت پناه لانده — کوے زویږګی

نه دِ پوره کړه — او نه ته مړ شوے

اوږے پیدا او — او اوږے زوړ شوے

تاکښ خبرے دیږے — دی زما خوښے

خو هیڅ مستی نه کے — په زړګی یخے

بس منا وه منا نے — تُل اوګا وانه کے

بے دخوږلو خکلو — بله سودا نه کے

خو زما خوښے په دے — نو بهادرنے ته

په ماچک مه لګوه
که زما یارے
الله دِ درکړے
دانے بسیارے

# وصیّت

که خازے شنے مِ په قبروی ولاړے
که غلام مړ وَم دَ ځې توکړی پرے لاړے
که بچپلو وینو نه وَوم لمبیدلے
په ماما پلیتوي دَ جمات غاړے
چه قطرے قطرے مِ فوځ دَ دښمن نه کا
مورے ما پسے په کوم څغ به ته ژاړے
یا به دا ننګه ملک باغِ عدن کړم
یا به کړم دِ پښتنو کوځے ویجاړے



# ماشې

دَ مانبامه تر سبا | سر ښندوه کاله سره

پینه پینه پنګه پنګه | هم خوړل کړې مې وینا

سپک به وخیږې په تول | دوو دانو سره غوښتو

خوماتي ستا دَ ګذاره | خان کړي پټ په خښتو خښتو

پچکارې دې تل ډکه | وې هر چاله انجکشن

ته به وې ستا باباجي وو | د نو ښار سول سرجن

دَ میږې هوړه کوڅې کښې | دِ هم غله شته هم خرتم

اوږې دَ خپې دِ دَ جولا دي | ترچوکې وزر دَ دم

اوږده دوه ټنګه درنبرې | بل دِ نشته په لاشه کښې

وارو زهر دِ راغونډ دي | دَ وکیل په شان په خوله کښې

نو ره همه غله د جهان | وی د مال د فصل غله

ته زما د ژوندون غل یې | زما وینه ستا خواږه

په زړه سخت یې دیزیله | د ګلاب په شان ورو یې

سر تر خپو سور سور یې کړې | هر سړي کښې آفت پر یې

چه زړه را شمه ستو مانه
په کټ پرېوزم بې اختياره

ته به وې تا ته غوږ يې چا
د پولاو کېښووه تياره

تک م او باسې د غوږه
پوست بالښت ته رسيدګين

بيا تمرې خپله شروع کړې
په نرو نرو پرې دوکينې

ستا په طمع ګذاره کړم
خان له سټ او سوزومه

ته م شا ته سرېنډ وې
زه غوږ ونه کړومه

که ربنمين شان مانيام وي
سور ګلزار او شين چمن وي

چه ياران اوده په ولينه
نشه شوې په ديدن وي

په سر خپو د ليلى کېږدې
پليت ورېږې د سپې داره

ليلى وخ او ويش شروع کړې
خوار مجنون پرې پرېږدې ولاړ

که څوک پټ شي په څادر کښې
ته ئې پاس کړې پنګه پنګه

چه آخوند پوزه راوړي
لکه شکون دخپل سرنګه

ته پې شغ شي دا پرېوزې
لکه باز کيني په زړکې

مله پرېږدې په قلاره
چه جار ترې نه استوکې

بنديان لوټې وږوکى غړکې
مرغستانه په ازار دي

غوان ستا کا مينېږي آسو
د لکو مالو بې آزار دي

ورکې خاځکې د دوزخ نې
که د شرافت مجرې

خله زما په ونو سره کړې
بيا پې ونې راته ستا

وی ملا بابا چه ستایو قرنیکه په پاپو شل

د نمرود سپین مه کښ لاړه غاړ غاړې په چل وَل

هغه اورغوید په زمکه کلک ئے ونیوله تشی

چه شوع نے په یو عمل کړه هم تیز ونه هم انتوشی

خوګړ ے دننه ناست ؤ دقول به نے وزړ

هاله نے پرینبو دچه ئے ونیکه دَ غریب نه کچو مر

حرام توب کښ د شک شه شو چه کړدَ غے بابا زوے نے

چلولی لکه لومبړے اوږ یے ستر لکه سپے نے

لا یوه بله غرره دے د همّاوَ ده عجبه

خان سره کوزے په بله مبنه توده دمنی تبه

را دعا دَ لیونی ده

پاکه دَ ربه که قبلے

که رابنکے په وارو ماشو

تیزه سوَ دَ هر (*) سیلے



---

(*) هر: اهار.

# پیرے

| | |
|---|---|
| ویره پیرے دے | امید د نہا ده |
| دَ شک تیاره کښی | ویره بلا ده |
| که جوړیده دی | که ورانیده دی |
| کاروان روان دے | دَ لاړے تله دی |
| ویره تیاره ده | او ورکیده دی |
| امید ژوندون دی | امید لیده دی |
| دِ وے ویره کفر دِ | خدائے نه منل دی |
| یو نور دریاب کښی | غوپه وصل دی |
| لمبے دَ روح | لوګے کیدل دی |
| په ژوندون ګور ته | ورکوزیدل دی |
| امید هستی ده | امید بقا ده |

ویره پیرے دے

ویره بلا ده



## آس

# بدو

ترپ ئې د هوسئ په شان — زړه ئې د زمري وو
رنګ ئې د غمي په شان — خيال د بنا ييرې وو
سترګې د کوږ کوړې — غونډې غونډې ښکلې ښکلې
تله ئې د نرانو — طبيعت ئې د بلبلې
تن ئې د طاقت او د مستۍ — او د نر اسئ ډک
روح ئې د همته و — ځيګر ئې د مړانې ډک
خبرو کښې ئې ګډا وه — د ساقي د سپينو خپو په شان
سترګو کښې غمو نه — اميد ونه د هوسو په شان
زړه ئې د پښتون وونه — په ګنډه نه په غرابيسار
جوش ئې د غازي وونه — په ځان او په سراسيار
چپه خله آشنا زما — لا هې چرته لاړې ته
چرته د چاکور کښې ئې — چا نه وړې غوا ړې ته
شته هغه دنيا کښې سنه — نوکر کړ دِ لا ور په شان
شته هغه دنيا کښې واښه — شنه د هښتنګر په شان
چپه خله آشنا زما — چپه خوله وې تول عمر

---

(۱) بدو : زما عربي آس وو. ډلا ور ئې سائيس وو.

اوه چه زه زنلے وے تل　　اوه چه ته وے تل عمر

دغه وو آشنا زما　　دغه وه دَ ژوند قصه

دغه دَ آدم وجود　　دغه دَ سمند قصه

ترپ شو او تو پو نه شو　　خوب شو او خوبونه شو

دوه دمستی ور څخه شوے　　دوه دَغم کانړه شو

نه ئے دَ رانلو سبب　　نه ئے شته دتلو علاج

نه ئے دَ ژړیدو دوا　　نه ئے دَ ولولو علاج

نه ئے دَ کمولو بند　　نه ئے دَ زیاتولو شان

نه ئے دَ هیرولو تاب　　نه ئے دلیدلو شان

نه ئے دسلګو تپوس　　نه ئے دخندا وجه

نه ئے دَ پروَن سبب　　نه ئے دَ سبا وجه

اے مستہ آشنا زما　　لاړے چرته لاړے ته؟

چرته دچا کور کښ ئے؟　　چانه وږی غواړے ته؟

څوک به نوا لے دړ کی؟

څوک به کوی ستا مدار؟

کوم جهان کښ الوزی

ستا دمستو خپو غبار





# پلوشې

هندوستان کښې دوو تونو منډې راغلې
په کښې خلق خرخوي ایمان په ختو
باباوې: غني؛ سرې شه جیل ته لاړ شه
غني وې باباالله ړې نه دې دَ ختو

# قارغه

تور دې مخ دے غل چکیه | تور دې زړه تور دې آواز دے
سپے نے خیته ډکول بس | ستا انجام او ستا آغاز دے
چا تورے که د ماستو وی | که د بچي د کچالانو
که پولاو د خان لاله وی | وظیفه د ملیانو
ستا په هرڅه کښې حصه ده | تول جاندار دے ستا دپلاره
یا تو نګے وے یا تغیر ے | نه آرام کړے نه قرار
غل هم غل نے بے غیرته | د پوتي چرکوتي غله
نه دې پرک شته نه دلته | ړک د شوره د چلو له
موسے خیته کښې دې روت | ډ نه د حرص تهترین دے
نه ډکیږی نه یخیږی | عجیبه د کښې مشین دے
که د سوتو مخا ډیران وی | که اګئ وی د کرکوړے
که بچي د تورانۍ وی | که وی سخا مردار کپوړے
که غریب وی که ماشوم وی | که حلال وی که حرام
ورته ستا کینه کښې دره دوی | که سحر وی که ماښام

بل مارغه کښ دومړ بوهه		دومره چل او هنر نشته
خوافسوس قارغه په تاکښ		دعقاب سره وزر نشته
تش په چل سردار نشي		دسروته دَمارغانو
دا په مینه مستي کیږي		په موږ زړه دلیونیانو
ستا لغاړ دسپي کونکار دے		یوه چغه ده دَ لوږے
دَ بلبل په شانِ نه ئے		دشبنم دغاخکلي تږے
په هنر که سامري شے		په حکمت باندے لقمان
تل به خورے چیچړے اوسوتے		اے جوړیه دَ آسمان
سره کلونه دَ لولی دی		شنے کمرے دی دکوی
یخ سحر د تورانی دے		ماخیگر د تو تکری
ستا حصه دوه دغه سوتے		دغه شور او دغه منډے
دا کنځل دَ خدمتګارو		دغه چغے دغه غونډے

خه که تیز لکه وکیل ئے
خپله واځے دبل ناورے
په مارغانو کښ چوړے ئے
که وزرے د رب خاور



# پلوشه

یا ربی مغه مزه که
چه د دار وسیال وی

سری هم دومره دی
چه خومره ئے خیال وی

شپه به د جنت خدایه
چه د یار وصال وی

خومره چه زیاد وی ښکلے
دومره ئے جمال وی

د قام په مینه مسته
کوخکه لال وی

د ایو ئے به هله
خدایه خوشحال وی

چه لاس او زیاد وی د ده
د قارون مال وی

# چرګ

خوراک کوے دَ سپی — او مسئلے د ملیانو
بانګونه دَ بلال — او لنګوټے د چنګړیانو
پړتوګ دِ یاره نشته — او شمله نیغه دَ خان
شل ښځے دِ ساتلے — خو سحر وانے آذان
په جنګ کښ بهادر — او مستانه لکه چنګیز
په مینه کښ بے شرمه — بے پروا لکه انګریز
اوږبوز دِ دَ قاضی دے — طبیعت دِ دَ هټلر
آواز دِ د پښتنو دَے — او انداز دَ منسټر

انجام دے تښے دے
اے مجنونه دَ دیران
یو روځ به روستے بانګ
وکړے دونی به وکړی خان



# بنځې

چاله شراب ورکړي — چاله سرې وینې د جام
چاله خربانو د پاره — چاله ګل اندام
څوک په ادیله بانډې — پرې د ماچین واخلي
څوک په چوارنې پسې — دنیا کاندي تمامه
چاله سنه خربه خوږه — بوږن لکه د ګوړې
چاله ښه ښه شیخ — روکنې دا بومړې
چاله د لولکې په شان — چسته او رنګینه
چاله د کونټې پښان — توره او مهینه
چاله قتغی کوکاري — ګرکه زړه چرګه
چاله غونډاره مونډاره — مسته تکه سپینه ګرګه
چاله داسې ستغه — لکه اوچه بکیانه
چاله ډوبه مسته — لکه نوې دوک بیانه
چاکړه صابره کوروډانه — درنه مینبه
چاکړه سیمه کوترۍ — په هسې چاچه شو پیښه

چاکره چلي دَ چلي لوړه بده مکاره

چاکره کمتره چه هم نبخه وي هم یاره

چاله زره خره بیخونده بې نوره پواره

چاته لکه سروه دخندا دکه ولاړه

چاله نبه ترسکه نه چاله نبخوره حلوا

یوله دنیمبوا چار اوبل له مرتبه

یوله خمبیره دودئ پرسمنه پسته نرمه

بل له دمسورو پیتی کړي مړي کړي مړي کرمه

ورکړه دَ قسمت دی

چاله دیره چاله کمه

خدای دهغه درکړي

چه وستاپه شونډو سمه

حیدرآباد جیل



# تیروتے

سقراط(*) دغه ځانے کښ تیروتلے
ایمان دِ واغښت فلسفوله یوړه

دغلته زړک دغلته زړک شوے غنی
زړگے دِ خپل پردو سینوله یوړه

خیام دغه ستا د مرگ دوساعت
چه خپل سرور دِ صراحوله یوړه

منصور خکه خو په دار او ختے
چه دَ آشنا راز دِ حجروله یوړه

دا ظلم ظلم دے زما جانانه
چه دِ مرگل خاورے کیلوله یوړه



(*) سقراط د افلاطون استاذ مشهور یونانی فیلسوف او حکیم

# زبرګ

چه دې وس د بدو نه وي — څه به ته څه به دې نه وي
توبه هله د شرابو — چه شراب در ته پراته وي
چه بله ها شي ځانګړې شپه — بیا توبه توبه د څه کې ؟
هغه نه د بدو بد وي — د ناکام چه ته نه کې ؟
مُلا ناست د تکړو شکور ته — وې رندانو ته خراب
غریب څه وکړي جمات کښې — نه معشوق شته نه شراب
دا چه باغ د ګلو ډک وي — مستانه غوټۍ ما بنام وي
دا چه سرې شونډې ساقي دې — په سور لاس نیولې جام وي
دا چه تا ته رسي سترګې — غلې ورانۍ سلام
په مکیز دې زړه کښې بل کړي — د مستۍ دوزخ تمام
اوس وې راشه راشه یاره — وخت د لېږې خبرې دې
بیا دې روښان د اوږنه — پسته لیچې کړې چاپېرې

ځله دِ ځلې ته کوې درپورته　　شونډې سرې تودې بېهوشه

لکه بله ډیوه ږدې　　د ځوانۍ مستۍ د جوشه

سینه دروړې سینې له　　دَ مخمل مخې ریښمینه

د ارمان او مینې ډکه　　د نرګسونه نیاز بینه

او ستا وجود یو سمندر شي　　د طاقت او دَ سرور

زړه دِ واخلي هغه اور　　چې هم اور دے او هم نور

ته چې دغه وخت او چت شې
ـــ شې جمات کښې به ژړا
لیونے وایي قسم دے
یا خو غوث نے یا مجرا

غني
حیله آباد جیل

# کړے وړے

راشه راشه ساقي راشه ډېرے ډېرے مالا ډېرے
په ما باندے بدے لګي ستا پخے پخے خبرے
غټه پګه د ښه خاورے عجيبه ته خناورے
ته د مينے بے خبره ته د حُسن نه منکرے
دا محفل دے د رندانو اخوا اخوا لرے لرے
د شرابو د ښکونه دي ستا ترخے شونډے ببرے
ورشه د غماته خيرات دے تالے تول اينبے دے لرے
د کعبے په شان خورے که په مرداره دې وزرے
ساقي ستر ګو کښې مسکے شوه بيا ئے د خيال کينوے وزرے
په تُل مسته مسته راغله سرے پاپنے نے د کمترے
ستا اوده واره جنته د دے يو د نازنخرے
ستا ښلويښت زره کتابه دي دوه خوږے خبرے
ستا وعدے اوږدے د حور دلته سرے شونډے شکرے
تاله قرض زه مالُون د کرم دا راکے پرے ملغلرے

ما شوم بیم(*) چه جنت پرېږدم — ستا د سوړ دوزخ ډېرے

جانانه میخانه دې کړم — واخله ستا کنډې ته دې

مُلا تا ښکلے نه دی — نرے سره ښونا کافرے

ستا په غیږ کښې نا ستے نه دی — د کالوړ کے کمترے

د جمات په چارچوبی کښې — یا ده وه پرده تورسرے

د ګل ګلزار کښې ته ولاړ — په ډیران لکه د خرے

اوږدې ستر ګے اوږدې خیته — بد قسمته بد نصیبه

خیشت او مینے ته شکور — او په زړه په روح غریبه

راشه راشه لیونی له

جام او چت که مسلمانه شه

د زړه انو په مذهب شه

جنتی په د جهان شه

حیدرآباد جیل



---

(*) بیم: بېیم

# ګډې وډې

مسلو مې زړګې دروند که یاره ماته بګتنې شه
نور درو توتاب مې نشته پراته شه چپاتنې شه
دا اوږدې اوږدې خبرې داواړه وا ړه فکرونه
دَملي هاتې دَکړلو نه یم ماته مې تنې تنې شه
رند و ستړ کو د پتنګ نه دَنورونو قیصې مه کړه
پتنګ لمرته کتی نه شي دیوګۍ شه موم پاتې شه
ماته ماشیه؛ قیصې نه دهاتیانو دَتول مه کړ..
بس په دغه خانې پریږده بګتنې شه

# عجبه فلسفه

زړه مې واچوه په تال کښې — دَ جمات کوټې له لاړم
د مُلا په خپو مې کېښود — ما وته دا مې صدقه ده
دا چه څومره زه پوهېږم — په "طٰهٰ" او په "یٰسین"
دا چه څومره ښکته تلې شي — په سجدو زما جبین
دا چه څومره اخلي نور — دا زما خاکي وجود
دا چه څومره زما ژبه — شي څکلې انګبین
مُلا غځ زمانه واوره وو — وې دا څه دې ستا تالي کښې؟
نه پلاو دې نه فرني ده — نه حلوا نه فالوده ده
وې نه شرع ظاهر ګوري — او ظاهره ته فاسق نه
دا دَ رب سره دَ مینې — تا را غښتې څه قصه ده
يره يره دَ قهار نه — د ایمان اصلي حصه ده
د جنون او دَ جانان ستا — څه مهمله فلسفه ده
زړه دې کېږده په سینه کښې — دلته رنګ او لباس راوړه
ستا شراب دلته حرام دي — نه بت راوړه ګلاس راوړه

ماڅېل تال ډک د خوبونو | د قاضي دربار لېږونو

روکې لال مرا او چت که | تار خانې او مار لېږونو

ماوې اے د سنو او بلو | اے د تورو سپينو خانه

د دالې زما قبوله | په نامه کړه د جانانه

قاضي لېناسته په تخت چېل | په سپين سر نې دستار کېښود

په يو لاس نې توبه کېښوده | په بل لاس نې حصار کېښود

تله نې پورته د منطق کړه | يو خوا دې يو خوا م تال و

يو خوا شور وو کم زور نې وے | بل خوا ژړے و ، کمال و

يو خوا عقل و دليل و | نه مستي وه نه جلال و

بل خوا رونا غوناې تلاش و | ډک بے خوده نمونا خيال و

ماوې دا ليونتوب واخله | او خپل عقل سپے تاله کړه

ماوې دا زما خمار | د خپل علم کتمااله کړه

ماوې اے د انصاف ډېره! | دا د زړو مېنزل کوره

ماوې اے د تول اميره! | دا بے توله تلل کوره

قاضي ستر کې کړلې سپتې | شونډې بندې مخ پرېشانه

وې افسوس زمانه ورک دې | دا چه ته غواړې زمانه

زه خو زور يم د انسان | زه سرور د آدم نه يم

ما دې سپين او تورا غښتے | د مستي د ګلستانه

زه تور وینم او سپین ږیرم

بس زما دغه قصه ده

دغه تول زما امید دے

دا تلل مې فلسفه ده

ما خپل زړه لاس کښې راغونډ کړه تورې شپې او غم له یوړه

د ماښام تیاره کښې ورک که د سبا شبنم له یوړه

اوس یوزه یم یو ارمان دے د جانان د شان قصه ده

روکے ګل او لوے خزان دے یو امید، یو تلوسه ده

ما مرګي ته شروع کړے

د ژوندون د خیښت قصه ده

د جنون او د جانان دا

څه عجیبه فلسفه ده

بهنګوتر (هزاره)

# د توت ښاخ

که دے سر که سهور — نو دے پائی په غم

دا رحمت او خجل — زور د زور او ستم

مایوسی او مستی — دواړه شال د صنم

دا خندا د یقین — او دا شک د ژړا

دا تیاره د جانان — دا هلال د صنم

ښاده څه دے، یو ستار دے

د توت ښاخ د سیمو تار دے

هنګ او شرنګ او ترنګ درود دے

د بل لاس د بل خمار دے

مجلسی چه په خندا شی

دے بس شور دے او تقار دے

غږونکی چه بلبل وے

دے هم ګل دے هم بهار دے

چه منصور په کوټی کیږدی — هم دار هم خار دے

عطر تول دَ بل دخیال دے
دے یو ګل دے بهار نه دے

دے روان کاروان دَ بل دے
دے ارمان دے دلدارِ نه دے

دے مجبور شان مسافر دے
منزل نه دے اولار نه دے

د بل خیال د ده تقدیر دے
دے نه سپین دے او نه تور

ناز او راز. آواز د بل دے
دَ ده شرنګ او د ده شور

شپه او ورځ د ده تول
د سبا او ماښام

د ده هوش جوړ وی
هم ساقی هم خیام

دے نظرے د کاوه نه او نور دی دَ بل
د ده سترګے خیشت او سوری دی دَ بل

غنی
(پښاور)

دلته مینه تش یو ښکلی سینګار کښې د وېدانه دی

دلته ژوند داستان د غم خند آګاه آکمل نه دی

زر لکه معنی که د هلال د دنیا وکړے ته

نشته دے په تاکښې د هلال بخرے یو

زره زره رازونه دے کومې ښکاره شوی دی

نه دے خوړے تاته د ارمان کمترے یو

دلته ډیر خوبونه د رڼا لیدلے شوی دی

نه دی خولی تاته خپلے مړے دلبرے یو

ته نیولے نه شے، لیونتوب ته جلال پریږده

کینه افلاطونه، فلسفه د سنبال کیږده

تاسره ده تله د سیرونو د منونو

دلته کښې نجرونه دی او تور او درانه غرونه

ته نے بیوپاری د عطرو ګرو، د چرګانو

دلته کښې پرتے دی ولولے او امیدونه

تاله یو قطره شراب، دریاب د تورو زهرو

دلته کښې پراته دی په زرګونو ډک خمونه

اے د رڼا زویه دلته لږے او خوبونه دی !

ستا تله قطرے تلی، او دلته دریابونه دی

ته د آدم لاس نے د آدم سترګے او سر

ته دده پوشاک ، دده لباس ، دده بستر

ته دده وجود ، دده آرام ، دده بهبود

ته دده قانون ، دده آقا ، دده افسر

دلته تول تلل دي ستا د تلے نه اوچت

غرونه دعقاب دي ، د بلبلے نه اوچت

ستا سترګے روښانه دي خو زه د رڼا وتږے

تا کړه روښانه ستوري نه دي ، اوردے ، اوردے



# جوارګر

په جوارو لاړ کاروانونه څي
او په غره د نور روان خط وخال دې

څه جوارو لاړ شنګ زه واخلمه
شي کالونه په کلدا او په دال مې دې

د بهار غوټۍ ګلونه او خپل اورنګ
په شکوري ديوان قربان کړمه

لوز آرام له د خان د رقيب مې نه
زه کالونه بې خودۍ او جانان کړمه

که دا تورې تيرې لاتورې شي
او جهان دې په قار د دوزخ په شان

او شاخکي د رنګ د تير شوک
هم هسا دکباتو به د سخن په شان

زه به ساز او پرواز و ورنګ مه
او ملا له اياز و ورنګ مه

نيت مې کړی د کوره د جانان دې
څه خندل وي څه شپول او څه ژړا

داوم اينبې په کوره د سرور دې
څه وي زړه، څه وسه څه وي مال

بخوا ته تورنا د دريا او چال
بل خوا سه او سه نه او هلال

ښکلی ميېن به په ل دلته ښکلی حور
ښکله کيږي په نور د به خال مې دې

لګه سحر په خپله قربان کړمه ښکلی حور
ياد له زه په سم جمع کړي مال مې دې

لکه خرخ چه دبل چا په زړو کړی
خپل جانان په ما بنام د وصال سره

دا دی زهر دا زهر د روح دی
خونامه ور له ورکړی د مال سره

دا و بنیار و لاړ م دیرے زده
خو زما د ښان دغه لاړ نه ده

زه د زړو صحرا و ارمان یمه
زما بخت کښ کوځه د ګلزار نه ده

زه چینه د ژوندون د خوبونو یمه
لا م موندے سینه د دلدار نه ده

نه یم خادرځ خو دیره بے تابه یم
ما موندلے لمحه د قرار نه ده

تالا کړے م ژوند هم غرور دے
داؤ م ایښے په کور د سرور دے

غنی - غرتسر



# الابلا به کردن ملا

به کل کښې ولید — چه ته نه مومې کتاب کښې

اې ملا! ستا نیم کتاب ما — واورېده د رباب کښې

ستا پګړۍ د عقل — زما تاج د لیونتوب په سر

ته نه په غاړه ژاړې — زه غوټې وهم دریاب کښې

دې جهان کښې مړ نه شوې — د مغه خانې خدای خبر

ستا نه نشه بنیا شو — ملا تیر وتې حساب کښې

نشته ستا زمزم کښې نشه — واخله سره شراب زما

وایه ملا صاحب ستا خلا — څه وائې دې باب کښې

مېړه دې کړ منطق کښې — په منیا(*) کښې دې ونه موندہ

زه نه مدام وینم — د غمونو په دریاب کښې

حسن د رنه ورک شو — د کعبې په دیوالونو کښې

ورک دې سمندر کړ — مړه تنده شوې سراب کښې

زار دې شم له ډېرې ملا — سوال د لیونۍ واوره

نوم پرې د کافر مه بده — د دې غزل جواب کښې

---

(*): منية المصلی

# جلال

چه زه غواړم د هیوونه مستی سره ګلونه جوړ کړم
د سرو اوښکو نه سرې شونډې د ژړا سره جوړې کړم

د خزان تیاره کړم دوبه د امید په سمندره کښې
د ګنجو نه لالینه، د غاو، پلونه جوړ کړم

چه د اروح م په ښکاروخې د رنګونو د خوبونو
که نور نه وی د تیرو زه، رنګینی نوزه جوړ کړم

چه د خیشت شم زه لیواله، د صحرام په ذرو کښې
په زرهاو بوستانونه، په لکها ګلونه جوړ کړم

چه زه وږې د ارمان شم، د سپېلي په سپین صبا کښې
بے حسابه ماښامونه بے پایان غمونه جوړ کړم

تور او سپین زما د سترګو کاله تول کاله تلل دی
شپه او ورځ زما نظر دے وکهال دی د اوموښتل دی

که خندا ده که ژړا ده، دا خکم مشغولول دی
که وصال دے که فراق دے خیال سره په تلاویدل دی

چه زه مست شم د دېوانه سرې د خښت کلونه جوړ کړم

د سرې اوښکونه سه ښتنې د ژړا سېلونه جوړ کړم

چه زه نیت د کټې وکړم د پرېوتي د شکست نه

د فاتح د شونډو کېږ او دستر لوغړو جوړ کړم

دا چه زه خان او بخت د رنګین بادنه ودان کړم

د غلام امید بدل زه د بادشاه په کاسه و ورکړم

چه خپل نوم د رڼې د ښې کړم ترنه د ډېر نوموونه جوړ کړم

چه زه غواړم د مېوونه مستي سره کالونه جوړ کړم

دا چه نه او وا ته نه . دا چه ستا مستي رڼا ده

دایم زه . دا بس پوزه یم دا زما ژړا خندا ده

د مُلا خبرې پرېږده . معامله ستا او زما ده

دا داستان د لوړې نه دې دا قصه د عشق او ساده

دې زمانې شوه ژوند ګېښ پېښ ستا حسن او کمال دې

دا زما ګمزورتیا دې . ستا د زور جاه او جلال دې

بهګوتر



# پلوشه

یو توره شپه د غم کښې یو ځښری د رڼا

زرغون په ویرانه کښې بنایسته بوټی د لالا

د بېتورو ځنګل کښې یوه زرکه په خندا

یو څاڅکی د امید د نا امیدۍ په دنیا

رنګین د بوډۍ تال د تورو شګو په صحرا

مستي ده که ځواني ده که دلبري که الله؟





# پلوشه

جو مات ته لاړ په میخانه کوره
په ژړا کښې سود دے شان جانانه کوره

نیته د دولت او کارونه دین دی
پوره به نکړے شے خان له بانه کوره



# اراده *

نه مې يار شته نه به وشي
او سنې ياران دې خوشې

چې حاجت نې درته وينه
ستا به پلار نيکه م نه شي

کار چې خلاص شي درې تېښتي　　ډلیندې نه لګي غشي
چې يارې پې شتمالو شي　　دا يارې به يارې څه شي
ښن خو ډېر ياران دې شو　　لکه سيند کښې خشي بشي
سخا بادام دې واڼه خلې　　يو به ډک وي سل به تش شي

بې فايده دې ظالم خاندې
خوږ پکښې او به او به شي

ته پې دغه لاره مه ځه
غني دا به درله نه شي



---

* د ځلس کالو په عمر کښې مې دا ليکلې وو.

# رښتیا (*)

چه م باغ دګلونه نے بهار به څه کړم
چه م سترګے دیارنه نے خمار به څه کړم

چه دَ خولے نه د بلبل وسئ تلے نه وی
که هزار بخار شی خو بی چغار به څه کړم

که پی نور دَ الله نه وی وریدلی
دَ کعبے د شکلو رک مینار به څه کړم

مقبره د صرو رګه ترینه سنت دی
دَ جاهله بے غیرتو سنار به څه کړم

چه زما رنځور لاسے په نه رغیږي
ملا! ستا تصه دَ نور او نار به څه کړم

چه زما د عشق سازونه پکښ ناوري
دسوزو زړو که وی تش سه تار به څه کړم

---

(*) رښتیا د ماشومتیا د زمانے ده.

دَجانان زلفے چه شته روند وزاهده

سنا تسبیح . د برهمن زنار به څه کړم

چه زما د تام جنلهٔ پرے نه رپیږی

بل چا دغرو په شان حصار به څه کړم

چه ئے تل دَ بل په غیږ په خندا ویم

دَ دے یار دَ ښکلی مخ دیدار به څه کړم

ماته غوږ دَ دلبر دکو ځے کندے

دَ رقیب دمحل نیغه لار به څه کړم

چه ئے تام دیارهٔ جیب کښ پیسه نه وی

غنی : دا دښتهٔ وغواو کوار به څه کړم



# غمونه

په خندا د سرو غوټو کښې
د خزان سلګۍ پنهان

مستې سرې شونډې مسکۍ زر
کړې خداې وچې په کړیان

یو قطره ئې مستۍ ده کړه
ښکاره رنګ ښایسته ښادان

خو د نشې آدم جوړ کړ
د غمونو قبرستان

اوه زما وړوکي زړه کښې
دي غمونه په شان شان

یو دي غم چه درته خوښ وي
هغه غم دې د ایمان

یو د غم د قام د ننګ
خوشحالي دې ترې ښه قربان

یو دے غم چې څه غم نه دے — بهادر به غم د خان

یو د غم چې سر سپی کړ — هغه غم دے خپل ځان

یو د غم چې سنه تورے لښته — غم د شان د خاندان

یو د غم چې سر ژوندے کړ — غم د قام د نوم نښان

یو دے غم د شاعرانو — غم د مزکے د آسمان

یو دے غم د بادشاهانو — غم د خوار د بے زبان

یو دے غم د بے غیرتو — په پښتو کښ د تاوان

څو د غم ترخ د دے واوری — دی اخته زما په خان

نه یه دم نه یه غما خمے

نه یے دارو شته نه درمان

پخوانی غنی که مړ کے

غم د سته او د جانان

۱۹۳۰ع - لندن



# تجربه

د رواج چپې مې وسوې — د قانون لنګر مې کېښود

په خندا دریاب له لاړم — ستا سپېره کوډه مې پرېښوده

د اتا وده او یخ بادونه — نوې ساز نوې سرونه

نوې بنایست نوې کلونه — چې د خیال وزرې مې کېښوده

کله تاو غولۍ کښې شمه — بیا چپو کښې ونښلمه

خوږه وه خمه خُمه خُمه — غم د ځان وزرې مې پرېښودې

خبر نه یم څه به کېږي — چې څه کېږي ښه به کېږي

که ورک کېږې که ډوبېږې — خپل لاس کښې سر مې کېښود

مړ د خپله لاسه ښه یم — خو بې خپل دوزخ کښې نه یم

نیم پروري جنت کښې نه یم — سوال د بل د دې مې پرېښود

ځان مې وپېژند دانا شوم — خپل مالک شوم که بادشاه شوم

تیاره لاړه سپین سبا شوم

د قانون لنګر مې کېښود

۱۹۳۱ء - لندن

# خدایه ولې؟

خدایه! عقل چې ور زړه دې ولې را کړ!
په یو ملک کښې دوه خود سره بادشاهان

بادشاهي او فقیري دې ولې یو کړه
د ژوندون په هره ساکښې مرګ پنهان

ولې غم لکه آسمان په جهان خور دې
خدایه ولې خوشحالي دې کړه نایابه

ولې جوړ دې کړه ننګې د ګل د پانو
خدایه! ولې نشته بیا ئې له شرابه!

ولې ښایست او رنګ دې دواړه خور او رور کړه
ولې ولې دې جهان کړ ډک په رنګ!

ولې کوڼ دې زه پیدا په جهان نکړم!
خدایه! ولې دې آواز پوست کړ د چنګ!

ولې ما ته دې عطا کړو فکر خیال؟

ولې ولې په دنیا ورځې خوبونه؟

خدایه! ولې دې ځواني مې چاله ورکړه ؟

خدایه! ولې دې پیدا کړل امیدونه ؟

ولې جوړ دې دَ یار سترګو کښې جنت کړ ؟

ولې تریخ دې کړ بېلتون او خوږ وصال ؟

خدایه ولې دې سپوږمۍ له رڼا ورکړه

چه زړګي مې دَ مستۍ په مهین تال

ولې جوړ دې کړ ازغی د ګل په خوا کښې

ولې زړه مې پاک خو جسم مې ناوړے ؟

ولې ما له دې دَ ولې طاقت راکړ ؟

خدایه ولې ، خدایه ولې ، خدایه ولې ؟

۱۹۳۰ع ، لندن



# باباته

دا منم که عقل ډېر دی
که ته مې غني سېر دے

چه حساب کتاب ته کښېنې
ته به وې خان د بونېر دے

دا منم به خیال ماشوم دے
د ملک رو رواج ته هېر دے

خوے ترېخ سړے مغروره
د خواهش غولي کښې ګېر دے

خو نے زړه وسپینه بکوره
په يار دوست د سر تېر دے

باباته مه خفه کېږه
دے د زنګ لانه شمشېر دے

۱۹۳۱ع - لندن



# څه د پاره

ازخان جوړ جهان کړ د عالمو

دَ لوړو دَ ژورو ورانو سمو

زرغون شوی په امید ژوندے په طمعو

شو پیدا د کومے موره دَ کوم پلاره

څه د پاره، څه دَ پاره، څه د پاره

مونږ برېنا له کومے راشو په تش لاس

ولے واغوندو د ننګ شرم لباس؟

ولے جوړ کړو دین ایمان ویره وسواس

په تش لاس کوم خوا ته ځو چه ژوند شی خلاص

په کوم ملک په کوم وطن په کومه لاره

دا ویروونه دا غوغا دا شور د څه دے؟

دا چه زه ورته ویم کور دا کور دَ څه دے؟

اوه، دا سوځی چه عالم دا اور دَ څه دے؟

زندګی څه دی، مرګ څه دے، ګور د څه دے؟

چا پسې څه پسې څه بې قراره

غربت څه شی دی، طاقت څوره، دولت څه وی؟

ولې ما ته چې وی ښه بل ته ښه نه وی؟

څه وی څوک چې جهان تنی عالم نه وی؟

کوم خوا تېښتی مړه رڼا که وینه سوی؟

یو وروکے سراو دا قیصے بې شماره

څه دپاره، څه دپاره، څه دپاره

۱۹۳۱ع - لندن



# بوډا

بوډا په برېتو لاس راښکوي مې تښتي تښتي
لاوړه د مړو دکه دا دے ډلاس پېتۍ

هینکولي م دخوښے او چې ګورے م د زنړۍ
مازغه دځوان کدوي او پیرو د کتهۍ

په لاس د جوارۍ په بابړ سره غوته د پیاز
د پاسه پیکوڼے پړے دړاماڼس د سغامتۍ

که دیر په زړه مالدار د پیسے کونګړي م واخله
بیا څه په تره سکوات کړه شروع خپله پیتهۍ

۱۹۳۰ع - لندن



# پلوشه

زما بخت د شمع بخت دے یا به مړمه یا به سوځم
یا به بیخ له د دریاب ځم یا به سر په چپو خوځم

عجب زه عجیبه لار د عجیبه کاروان روان دے
ما د روستی په اوله بیائی که زه ځمه او که نه ځم



# حال زما

هیڅ د عشق له غمه نه دی برابر غمونه کل
چه د یار فراق دې ووی دغه دې د خدای اومل

چه مې زړه دا یوه ډیره شو د قارون خزانه څه کړم
چه لالی مې خواکښې نشته څه کړم ګل څه کړم بلبل

چه دنیا مې شي برباده آخرت به مې څوک جوړ کا؟
چه د زړه پښې مې شوې شلې څه به کړم د امید نغل

زه به تمو تموا و سم به خوانۍ مې خان کړم خاورې
چه هیڅ ازغلی نه شو هغه ما به خان زغمل

بې جانانه جنت څه کړم بې وطنه بادشاه څه وي
یا به خان پسې الهو کړم یا به ئې کړم د پښتکی کل

په جومات کښې مې وینه مونده په مکه کښې رانه ورکه شو
خدای مې زړه کښې را پیدا شو چه مې مخ دیار ته بنګل

غني! بله به زړه انګاری ګنی ده به وړی جونګړې
په سیلاب دې سوځت دا ونګوا باسین دې دیایاب

۱۹۳۴ع (اتمانزی)

# څه وکړم؟

یو سړک د ګلستان　　بل لاره د زندان

مېنځ کښې زه ولاړ حیران　　چه په دې ځم که په دې

یو خوا عیش عشرت سیلونه　　بل خوا کندې کندې غرونه

دې خوا ساز اخوا ویرونه　　اوس په دې ځم که په دې

دلته بنګلې موسکې شونډې　　هلته غم فریاد د کونډې

دا خا خوب هغه خا منډې　　اوس په دې ځم که په دې

یو دې ډنډ پټ په شین رنګ　　بل دی سیند ډک غورځنګ

دې خوا قبر اخوا جنګ　　اوس په دې ځې که په دې

یو خوا سوې غځ د سکور　　بل خوا خاندي سوځي اور

اخوا تاج دې خو سر تور　　اوس په دې ځې که په دې

دېخوا ځنبي د زړه وینې　　اخوا سره شراب د مینې

نه روند نه هلته وینې

اوس په دې ځې که په دې

۱۹۳۴ع

# زړه چاودې

ستا زړګي وچوه پښتونه　　زړه مې چاودې له تا نه

خوي خصلت دې دغلام　　نشته زياته له با چا نه

کله سکه په تا سوريږي　　مغولي دې باباکيږي

بيا په تا په جو توکيږي　　مغلې ځوک له کوه دامانه

عقل پس زړه دې ناپاکه　　لاس دې ستړې خوله چالاکه

ستا تاريخ دې عبرتناکه　　چېر خلاصې له خزانه

خپل خير خواه ته لاس په بلې　　سرسري ته زړکړې دړه

معامله دې ګډه وډه　　خيل خانه دې بې نشانه

نامو کړې تو کړې خوشحال کړ　　دربدرا دې جمال کړ

خوامان دې په خه حال کړ　　بې وطنه سرګردانه

په ديران ناست ئې خوشحاله　　د کونکټ سوتو کښې جاله

بې هنره بې کماله　　په هنر دورور پښيمانه

بې ناموسه ستا کارونه　　ستا بې کاره ناموسونه

ستا زړګي وچوه پښتونه　　زړه مې چاودې له تانه

# کړې وړې

| | |
|---|---|
| وئیل کمتر وایه | خو په هنر وایه |
| چه ژبه لوبه لړي | هغه ته خر وایه |
| غمي په هار کښې یو | خو دې ګوهر وایه |
| ساز د ماښام ښکلی | نمونځ د سحر وایه |
| چه وي مجبرا بد وته | هغه ته نر وایه |
| چه دې خدمت کړي مدام | هغه افسر وایه |
| چه وي په تا شیدا | هغه دلبر وایه |
| که وي دیار تیکري | ورته سره زر وایه |
| غوښه د تور تخرې | بوی د عنبر وایه |
| الله الله که نشې | دلبر دلبر وایه |
| چه په مردي لړ شي | هغه ته بر وایه |
| بوډا ته خدائے یاد وه | خوان هنر وایه |
| چه ستا نه مخ کښې دړي | هغه رهبر وایه |
| لګئے دې پرې کړه هله | غني ته خر وایه |

# زما محل

د سیند د سپینو شګو نه مې جوړ کړلو محل
دې ته اخر کې جهان ورته حیران حیران کتل

قالین مې پکښې خور کړو د سرو پاڼو د ګلاب
او چت ئې دیوالونه وو سازونو د رباب

بیا رنګ مې ورله ورکړو د خوبونو د شباب
هر ګل مې ورله راوسته مالیار مې کړه بلبل
دې ته اخر کې جهان ورته حیران حیران کتل

نرګس مې په غیږ راوړه میامه مې کړه امیل
د غاټولو د شبنم نه مې ښیسته جوړ کړو امیل

نسیم په خندا راوړل زېړ ګلونه د چامبیل
شراب مې ورله ورکړل بیا د اوښکو د بلبل
دې ته اخر کې جهان ورته حیران حیران کتل

رڼا م د سپوږمۍ کړه د زړه اپښتې غزلې

خندا ته د تنکو ښکلې ږدې ګل پیالې

د ستو ږو مستې سترګې غلا غلا پیالې

رووږ په مستي راغله د خدای اور کړ بل

دې ټول خلګي جهان وته حیران حیران کتل

یواځې نه د باد شاه و مه په سر م تاج د غم

په خوا کښې م دلبر وو مسکۍ سترګې په نم

په غاړه ئې امیل ښیسته د څاڅکو د شبنم

ماشومه نازنینه پاکه ښکلې لکه ګل

دې تول خلګي جهان وته حیران حیران کتل



# قسمت

ګوره طاؤس موکړ ښایسته وزرو
ابلیس برباد کړو عالمي خبرو

سیپنۍ ویده وه د سیند په تل کښ
زړګي ئې وچاود سره ملغلرو

ګلاب خپل رنګ اخپل بوئي نالا کړ
منصور په دار شو چه باخبرو

پتنګ خپل نرم زړګے ستی کړ
مینږے برباد کړ خپلو وزرو

غني پوهیږي خکه ژړیږي
څه ښه به ژوند وکه ژوند دَ خرو



# اور

زما خټه چه خوشته کړه
په خټه اور دې ابته کړه

چه دې نه وژنم ورتېږم
چه دې وژنم لا لمبه کړه

نو زمه دې دخان جوړ کړم
دشیطان دې یوه ذره کړه

خو مړا زه چه ورننوزدے وم
دومړه غټه دې پرده کړه

چه جنت وته روان شوم
دوزخ لوے دروازه کړه

چه دوزخ ته ورننوزدے شوم
چاپېچے نعره کړه

خدائے دِ ورکړه دَ زړه اوره
تا دَ ژوند ورکه مزه کړه

# د ځو ترانه

خوږ دے ماته ملک زما

خوږ تر کل جهان

زه به خم په جنګ د کام

زه چه شمه ځوان

وینه د غیرت زما رګونو کښ د ننګ | سر که م قام غواړي زه به نکوم په ځنګ
زور دے د ماليا مرد توپ م د تفنګ | زور م د غیرت دے د همه زړورو ځوانان

زه به خم په جنګ د قام

زه چه شمه ځوان

سر خه د سپي سره ي چندانه وي په قام | نوځه ښخوني وي چه شپدانه وي په قام
نوم نا موس ځه وي چه نوم وي د غلام | دا نوم به بدل کړم یا به کړم بدل جهان

زه به خم په جنګ د قام

زه چه شمه ځوان

زه پښتون بابا د خپله ښپیا اکړے | زه پښتنے مور په غیرتي سیولوے کړے
صوت به یلا نبکه د مړي کار نه کړي | زه به غلام نه شم که غلام شي ټول جهان

زه به خم په جنګ دقام

زه چه شمه خوان

زه به په وجود یمه کوتلے وزیر اَس

کرم به دَ کاروان خبردار لکه دَ اَس

یم به دَ ظالم سترګو کښې تل دَ سترګو خس

زه به لکه باز یم دَ ننګ توب مرد میدان

زه به خم په جنګ دقام

زه چه شمه خوان

زه به لوئے زړګے لکه شیر شاه د بنګالے لرم

همت به ابدالی لرم همت به روهیلی لرم

سر به ښکته نه کړم زه له به کښ تالے م

ژبه ښکته مه کړې چاته سر په تر دَ افغان

زه به خم په جنګ دقام

زه چه شمه خوان



# پلوشه

زړه مې پسې وچاود خواښنام نکړلاندې
ښغه په موټر کاټ کښې ناسته په ستړي تتوباندې

کوڼه نواچارډې په اینبولو ترسکوڼیږي
ښځه مربه ده چه تاڼه وي مزه کاندي

مالي د وصال په صبا رالکرتانپ کوړے بل
دومړه مهذب او ښایسته نه جانان دے

نن چه ډمس کوتې ډ بابا په کور داخل شوم
لسونې تاریخ ورکړې و وار د غني خان دے



# مينه

څوک وې مينه يو کال دے　　اوس تازه وي اوس فنا شي

ماوې يو کال چه شي مړ اوې　　سل کلونه ترې پيدا شي

څوک وې مينه ده اور　　سړے وسيځي فنا شي

ماوې اور چه تېز بل شي　　جهان کور شي رڼا شي

څوک وې مينه يو خوب دے　　چه ترې ويښ شي لاېلا شي

ماوې کوره ژوندون خوب دے　　چه سړے ويښ شي شيدا شي

څوک وې مينه غضب دے　　سړے ړوند شي نابينا شي

ماوې خدائے ته بينا سترگے　　ټول جهان ته نابينا شي

څوک وې مينه دوزخ دے　　ماشومان پکښ جليا شي

ماوې ښه دے دوزخ ښه دے　　له گناه وجود صفا شي

څوک وې مينه تيارۀ ده　　پکښ خان ورک شي تالا شي

ماوې ښه ده تيارۀ ښه ده　　پکښ پټه سخا دَنيا شي

څوک وې خوږه دلبره　　کاشکې ستا عقل زما شي

غني وې ماشومه کله!　　ستا د سر دے فدا شي

# تماشه

خبنتګ دَ پښتون شلیږی باچا خان وړته ګیندے وهی
ګاندی لیونے شوے دے سنډا اته سرپنډے وهی

ښځینے مراوے وچ خوراک مرچ تتهی نے کور
زړګی نے پړوکی پړوکی سخا زړوکی اوړ بوږ تور
دهند دا بنیادم نه لری دم نه لری زور
په ښځه هیڅ بد نه ګڼی پیسے پیسے تندے وهی
ګاندی لیونے شوے دے سنډا اته سرپنډے وهی

دَ غونډ نه تاد کړی تارنو بیا کړی ښادګوښی له بړته
دَ صوتی په ښپ راوړی توړ ښته ګاندی بوږته
همډو مډ لوی وی چه ښځی آواز ے کوړته
وختی سحر چه پاڅی خوله کښ چچی دو بنډے وهی
ګاندی لیونے شوے دے سنډا اته سرپنډے وهی

تل لا پې دَ تهذيب کا دَ تهـذيب نه بې خبره

په خوله سوړ مزري وي خالې به ښکته کوي خان بره

چه وخت د عمل راشي بل ته واني دا ننګه نږه :

په خپله پُتل تښتي الله : تُل خه کړندے دمي

کاندي ليونے شوے دے سنا اته سرپنډے دمي

خار به او مرغن نے ليا، راڼ دي ماليدلي

وښکو کښې نے لعاب ښايسته دَ پان وي بهيدلي

په سټيج کوي ګفتار لکه سالار تو ره ويستلي

که باو پرے چانغرے کړے تښتي خان پسے جرندے دمي (*)

کاندي ليونے شوے دے سنا اته سرپنډے دمي



---

(*) جرنده سے : جلدي سے .

# پلوشه

وړه دا ظلم و ناروا او دا بیداد    په خندا نه زغمه مه کوه فریاد

کوه تل دلوی مکان ذکانو زور

وی په سرباندې دکټې ذ بنیاد

چه تکالیف او غم سهی خوږ دانا کا

دومره پوهه ښودې نه شی هیڅ استاد

طوږ د ختو کانو جوړیږ نکه غرو

چه ایږ شو توږم شو په جهان یاد

شین زمری ښخیل نړتوب توره یادیږی

کمنې تن ذره ذرې کاندی صیاد

او ږخپله سوځي خکه سوخول کا

دانه خاورې ښخې سپینې کاندی آباد

د مظلوم ذ دوړ او ښکو پاک سیلاب

په لکها و ښارینې کاندی برباد

غنی ! چپ شه دبزرګې خبر مکړه    ما آوار ستاخر توب ښوراپه یاد

# زړه نوے

زوړ اشنا زین کړې اُس دے — دے زوړ کور لکه جنت

زوړ دلبر نوے بړستن — نن دے واله نے راحت

زوړ نوکر سوچه قالین دے — بے بها دے بیش قیمت

نوے دوست ته چه زوړ پریږدے — بے غیرت دے بے غیرت

په کمو باندے زیات شی — زوړ خاوند نوے شهرت

یا نے ښه په چپه خرابه — یا پوره پریږده سنت

یالکه خبرے مه کړه — هم زنا هم عبادت

ښې زوړ خیال نوے جامه کښې — دغنی دے داصفت

# پلوشه

مرمِ مشین کړه خوندم پریښود

تمهید مِ کینبود دَ لیدو دې

خوزړه مِ هغسے دَ مستے ناوړی

تبه مِ کیږی نری نری

# کړے وړے

چه خلاصيږي بيوفا عمر زما | د جهان د ښاخه څخي ثمر زما

تور لړه د مرګي چه شي راپورته | چه پخيږي د عزرائيل ګسه زما

زه به ښين د سرو شرابو جام پخوله کوم | د جنت باغچه به شي بستر زما

په ژړا او په سجدو چه شيخ ونه ليد | ما په يو ګوټ وليد آ دلبر زما

مرګ يو خوب دے يو نشه د بيهوشي ده | په دے واړه دي بلد ځګر زما

ته د روح په کوتک نه وهے زاهده: | روح او زړه زما يو يو افسر زما

نابينا عقل مے مست زړګي نه پيژنيد | اوس تيارو کښے د غم شو رهبر زما

د غني د همه لاړے کړے وړے | خان سره بے سره لوکا سر زما

# پلوشه

چاته نے ښايست ورکړو غمګين

چاته نے غم ورکړو ښايسته

زه نے مست او هم هوښيار کړم

هم نے په تخت کړم هم په تخته

# مخ دَ جانان

کله مخ زه په قبله کړم کله کړم مخ و جانان ته

هیڅ په فرق ئې پوهه نه شوم ربه! خیرم کړے ایمان ته

هغه ورځ چې خلق پیدا شو دَ خالق په تجلی شو

زه وم پروت مخمور مشکور په سجده مخ د جانان ته

اوس زړه په بیکسی کښې د مستی لمغرے وینے

زه دَ مرګ قابل نه وم ولے تا بوتلم آسمان ته

دَ خبرو خوګ نشته خان سره غني ګوهیږی

لیونے ئې هله بولي چې وګوري جانان ته



# یوجام

دهدے هوانن الوحی مابنام کبنس
واخله دوب کړه توله غمونه په یوجام کبنس
خه که شوی چشتی ملنګ خه که امیر شوے
کور کبنس فرق نه وی آقا او په غلام کبنس
تور ښکاري مرګي توله دی لاس نیولی
خاندۀ خاندۀ نن بیا نشی خندل دام کبنس



# هغه دغه

تېتو دوست کړه سنډا یارکا خر کړه خپل مطلب پرې بارکا

خوار لوهار (*) ته لا لا وایه چه تېره دې له سپاره کا

سرکار مرګ له چه څوک بیائی یو کپتان بل صوبیدار کا

د مستئ چه خرشي پاتې د شیخئ چوغه اختیار کا

چه نرے ږغ ور شروع شي خان حاجي کا پرمیر کار کا

چه میړې ته خدائې په قار شي دوه وزر ورله تیار کا

چه پښتون ته خدائې په قار شي لوئے ملک نے د سرکار کا

خان او خردي سکه رونه مست په جر زنا په جار کا

پښتون هغه وي چه مړ شي خپل پردي ورته آزار کا

خرې لوئے په جهان نه وي چه په زیره اعتبار کا

زړه کړه زهر خوله خوږه کړه خره راشه خان هوښیار کا

یو دیار شونډې خوږې دي

یو مزه غوښه د ښکار کا

(*) لوهار: آهنګر.

# ولې (*)

څوک دے ماته وو ائی　　　　څرنګے شیدا شی څوک ؟
څوک چه چاته وخاندی　　　　ولې په خندا شی څوک ؟

ستو ہے دَ غوږ څرکے ته　　　　غالی شان بګاه وو ے
مینے په ژړا وو ے　　　　حسن په خندا وو ے
ماته موسکو سترګو کښې　　　　ښکلی دلربا او وے
ولے څوک زړه وبایلی ؟　　　　څرنګے شیدا اشی څوک ؟

څوک چه چاته وخاندی
ولې په خندا اشی څوک ؟

سترګو د مجنون وو ے　　　　او ښکو دَ لیلی وو ے
او وے په نشه خوائی　　　　غم ورو په سودا وو ے
ماته موسکو سترګو کښې　　　　ښکلی دلربا او وے
ولے څوک زړه وبایلی ؟　　　　څرنګے شیدا اشی څوک ؟

څوک چه چاته وخاندی
ولې په خندا شی څوک ؟

---

(*) دا ما ۱۹۳۹ ع کښ د واده په شپه لیکلې وو:

# یو جام

مستانه ساقي راشه یو جام جام راوړه
موسکۍ شه په خندا شه یو جام جام راوړه
پیاله کښېږده شیرینه خواني دځوانۍ وینه
رنګ رنګ مستي رنګینه حسینه نازنینه

مجنون یمه لیلی شه
یو جام یو جام راوړه

یو ګل یم زړېدلے یو باغ یم سوځیدلے
یو ساز د ژړا یم یو آه د بلبلے

ژوندون شه زما سا شه
یو جام جام راوړه
ګل فامه ساقي راشه
یو جام جام راوړه

یو راګ یمه خاموشه نغمه یم فراموشه
خواني م په غم بایله مستي راوړه بے هوشه

د د[illegible] زما شه

یو جام جام راوړه

موسکۍ شه په خندا شه

یو جام جام راوړه

مست مست راکړه خوبونه — چه پټ کړم پرې غمونه

شروع کړه د ژوند تال ته — نازک د بنیست سرونه

دلبر شه دلربا شه

یو جام جام راوړه

مستانه ساقي راشه

یو جام جام راوړه



# کډے وړے

عقل ترینه بزیره وخوړه — خیټې ترے ایمان وخوړ

کوره په وربشو کښې — خره لال دَ بدخشان وخوړ

کوڅه ئې نه خرخښېږی — خوار لاله دَ غمه خان وخوړ

قبض شو دَ صیب — دیرے هندوستان وخوړ

خارښتم دَ لیلهٔ دکولمو — خیته ئې د بنګلولوده

چامهار چا او بنی وخوړ — اوده وا ده کاروان وخوړ

کوڼ ملا شهید دے — په مزار ئې دیوه بله کړه

مړی ووکم شوی خوار — دَ لوږے نه قرآن وخوړ

څه دَ لیونی دَ مرض

خوشی دارو مه کوه

غم دَ مرګ غوړ ښنک دَ زړه

ستر ګو دَ جانان وخوړ



# کمے وړے

بلبل په هیضه مړ شو ډیرے خوښ وو شاتوتان
لاله م سالار نه شو اوس نے بدیشي هندوان
وه ناسته په آسمان کښې د تقدیر لوبه لو [1] ـه
یو خرے روان کړے وو شاخیل نصرت الله له
فرمان پرے رانازل شو د قادر و ذوالجلاله
کولاے تادي[1] وکړو بشر چرګړو دَ یوخان
بلبل په هیضه مړ شو ډیرے خوښ وو شاتوتان
اوږ بوزے خوره ته سم کړو او هم پرے کړو ترے لکی
تندي کښې ورله کینبوه دَ غضب یوه تکی
مغزو کښې ورله واچوه مرض دَ ملکی
شمله ورله کړه نیغه که راجوړ ځي په جهان
الله لاله م وخوړه هم بلبل هم شاتوتان
اوس څه به ساقي خلک په لکنهو کښې نوابان
اوس څه رنګ به لیکي د عشق غزلے شاعران
یا الله تیري شان

---

۱ ـه تادي: تعدي

# بنی آدم ته

# قصیده

لوئے شے کوډاکیه او تورپونونه دِ ځار شم

اے د ګنده ډکه دَ عقلونونه دِ ځار شم

جوړ کړے د چا کوتو شوے جوړ نښه دَ پاره

ځار دِ دَ قلمه دَ حرفونونه دِ ځار شم

یو پوکے د بادئے څه د رنګ او جنګ خبر کړے

اے دَ سحر خوبه دَ خوبونونه دِ ځار شم

حسن دے ایجاد کړو مشغولا دِ ځان لجه کړو

ځار دے دَ مستئ نه دَ سازونونه دِ ځار شم

علم دے دَ خیال دے خوب او خوب دے خیال دے

دومره غټو غټو کتابونونه دِ ځار شم

پوه په سودا او زیان د شو او زیان بچے ته نشے

ځار دِ دَ خندا نه دَ ویرونونه دِ ځار شم

دوه کړنې ژوندون له دې خو قسمه خرې جوړې کړې

ښار دې دَ سجدو د تکبیرونونه دِ ښارښم

ستورو او سپوږمۍ سره د راز او نیاز خبرې کړې

اې د خاورو کلمه! د رنګونونه دِ ښارښم

کوم د تیارو کور ته مسافره! سپینې ستورګې ځانې

ښار دِ د مانو ، د محلونونه دِ ښارښم

ګوتې دې آسمان ته او پایې دې ډوبې خټو کښې

لوئې شې ګوډا کیږه: دَ تورونونه دِ ښارښم



# خیال

آئینې د خیال کښې دا دنیا ده
بادشاهي او فقیري د زړه سودا ده

زما خیال دې پوره کوې تبیسته کړې
که مکه که مدینه له دلربا ده

عاشقي د خوب د ننه یو مست خوب دې
د دې خوب د ملک سپوږمۍ مې محبوبا ده

وخت دریاب یو بې پایانه او بې کناره دې
بې چپې او بې لنګر کشتۍ زما ده

ګل غوټۍ وي شي ګلاب او بیا خاوره شي
د پښو لاندې مې خوږه خاوره زما ده

یوه ناسته مې په خوا کښې موسکۍ شوندې
یوه ناسته مې سپوږمۍ کښې دلربا ده

یوه خاندې د ګلونو په خندا کښې
یوه ناسته په تیارو کښې د صحرا ده

# دوه سترګې

کله ګورم مخکې ته او کله ګورم مستورو ته
او کله ګلستان کښې د تېرو نوخازو تورو ته
ګورم بتخانه کښې ستا د حسن تجلي کله
کله په سجده د کعبه کښې وینم خلق نورو ته
لوېه هنرمنده د هنر کمال دې ګوره
د غمو خبرو ته او دې شونډو کمزورو ته
زه چې ګورم څه وینم ته ګوره ته ګوره
دې نهين جهان ته او زما سترګو شمکورو ته
وا ورو شهزاده زما : غلام دې کېله منا دے
خلق د غمونو قیصې کړي سترګو غم خورو ته
تا ته یو ساعت یو لحظه کښې سرې ووانی
هغه چې ګلونو کښې ویلې نه شي نورو ته
خه خوم لو یو ګړه چې ژوند د جهان ولے
خاخکي د نورو او لیږ لږ د لږ تورو تورو ته
نه دے تاب د بنیست لوم او نه دے د خبرو
ماته به نے ووانی ته ووایه دے ستورو ته

دوه سترګې م دوه ځکه هر رنګ دجهان وینی

ګوري یوه منګوته اوبله ګوري ستوروته

په یوه کښې سروروي مستي وي خندا

په بله کښې سوزاسلویلي او ژړا

په یوه کښې دنیا سرسینګار د دنیا

په یوه کښې ستم غم آزار د دنیا

په یوه کښې ژوندون د ژوندونو بے خودي

په یوه کښې افسوس او ارمان په ژوندي

په یوه کښې جنون دے نشه د افسون

په یوه کښې کافردي فاسق دي مجنون

په یوه کښې پسرلي دي سپوږمۍ او جانان

اوبله کښې بیان تول داستان دانسان

| | |
|---|---|
| دوه سترګو څه ضرور وو | چه یوه وي ښه بینا وے |
| څومره ښه به ستا آدم وو | څومره ښکلې به حوا وے |
| چه یا غم وي د ګلونو | او یا غم د جنتونو |
| او مجنون ته په کعبه کښې | موسکې سترګې د لیلی وے |
| تا پرېښې کمال ښکاره کړو | او غوبل دې ما کښې جوړ کړو |
| په ژړا الیوفي تا ته | ځکه بانګ کښې د سباوے |
| خلق د غمونو قیصې کړي | سترګې غمخور وته |
| ما ته به نے وواني | ته وواېه د ستورو ته |

# ورو

ورو یوې غوټۍ د ګلاب وې ماته ورو — اورې له قصه د اوو اشنا شه د ایوو
مالیدلې خوب ګښې د راتلونکي بهار ستورې دې — شپه ګښې مې لیدلې د جانان د بنو سوې دې

ښکاري خلیدلو د سبا په منارو
ورو یوې چپې د نسیم اوړې ماته ورو
ستورې خوړه پاک خلیږي شپه ګښې د تیارو
زه یم د بهار سلام د ښیست د زړه دعا
زه د مجنون ساز او ویښ د زلفو د لیلی
وې بام د عشق او چت دې د کعبې د منارو
ورو د سبا ستورې سحر وې ماته ورو
ګل خوب د بهار دی غنچه شپه ګښې د تیارو

زه د سحر خوب د شپې امید یم د وصال — زه د چا د مستې نیغږې یم د خیال
لمبه د یو دریاب چوپه د شغلو زه ورو — لمبه زه د لمبه د یاب د یاب څاڅکی

بام د عشق او چت دې
د کعبې له منارو

# شان دانه

ـ زمالوړ ـ

او یوه ذره د نور ده — شوه دریاب کښې د بنیست ډوبه

په خوبونو د خوانۍ کښې — یوه شغله د نور پېلې

دا نرۍ د هلال شونډه — دا د دوو ستورو رڼا ده

دا د معنٰی خوب تعبیر دے — چه وو ما او تا لیدلے

دا هم زه یمه هم ته ئے — هم زما او ستا خوبونه

دا هم ګل دے هم بورا دے — هم سازونه د بلبلې

دا چه ستا نیاز بینو کوتو — دا ازل ځانګے ته لاس کړو

دا ګلابې ترے راواخیست — په نورونو لمبیدلے

دا چه زه په پټو سترګو — د مستۍ دریاب کښې ډوبېږم

دا م لال تاله دلبرے — د تیارو راخېژولے

دا چه ما غمګینې سترګے — په ژړا کړے بره پورته

دا زما د غم خواب کښې — سپوږمۍ ګل دے رالېږلے

دا اوبه د دوو چینو دي — د دریاب په طمع درومي

زه به جوړ ترے آباسین کړم — په ګلونو کښې بیالے

# راشه ورو دیار غمه

راشه ورو دیار غمه

پریوځه په سینه زما

ګل غمه ګلزار غمه　　اے د ګلو ښار غمه

خوږ لکه د للار غمه　　اے د ستورو هار غمه

راشه ورو دیار غمه

پریوځه په سینه زما

غم کښې چه امید وی　　څه پسته نشه لري

د غزو کښې دا ارمان　　څنګه پلوشه لري

دا مستي او دا ژړا　　سرهستا د ستار غمه

راشه ورو دیار غمه

پریوځه په سینه زما

راشه اے د زړه خوږه　　ویښ کړه دا جهان ستا

ویښوا وبه لوزانے کړه　　سور ګلستان ستا

رنګ زیړ د خزان ستا　　بوی دے د بهار غمه

راشه ورو ډیاره غمه

پرېوځه په سینه زما

مستا په تورو لړو کښې | لړزه زما ډېره شي

اور اور کښې ستورې شي | حسن دې ترچاپېره شي

اې د لیونو نشې | مستې دستا خماره غمه

راشه ورو ډیاره غمه

پرېوځه په سینه زما

ته د مودو یاره زما | نښه د دلدار زما

ته یې د وفا ګواه | ته ئې نوم د یار زما

خوږ لکه دلداره غمه | اې د ستورو هاره غمه

راشه ورو ډیاره غمه

پرېوځه په سینه زما



# شاعر

پرچه د شهباز لرے او ستر ګے د عقاب
زړه پوست د بلبل خوږ ے خبرے د بنا رو
سر ډک د خوبونو لکه مینه د قارون
ستر ګے مینه ناکے مستے ستر ګے د مجنون
چل د سامری او پاکے ګوتے د موسیٰ
تور د غم صلیب په سپینو لو د عیسیٰ
تن ئے سر ۍ باب چه د قسمت ګوتو کښې هنګ کوی
خوله ئے د ګونګر چه د جانان په پښو کښې ترنګ کوی
دی د ګوتے پوته کوی نامه د دیار ولیکی
خو چه قلم نه لیکی هغه دے خمار ولیکی



# تنظیم په نظم

# دَ

# عبدالاکبرخان

غنی کړے ستر پیتے ستا تصویرے ولیده
چیناخ په لوته وخاته کشمیر ولیده
چا ولید په ژړا جانان چا ولید په خندا
چا ولید په خوبونو کښې یو خوب دَ دلربا
چا ولید په سجده کښې چا مستی کښې دلیلی
عیسی وته موسی شو چه شمشیرے ولیده
چیناخ په لوته وخاته کشمیرے ولیده
چا ولید په سپوږمی کښې چا د شپے توروتیاروکښې
چا دوب دغم دریاب کښې چا دحسن ننداروکښې
چا ولیده پیلی په مستونزو نروکښې

او اولید لیونی چه خپل تقدیر نے ولیدهٔ

چیناخ په لوته وخاته کشمیر نے ولیده

اے لویه سمنانه، اود حسنونو دمستو

رنګین د رنګ جهانه د رنګینو تنستو

چه بخت د لمر خاته دی که قسمت د پریوتو

او، عیسیٰ ولے موسکے شو چه شمشیر نے ولیدهٔ (۵)



(۵) عبدالاکبرخان اکبر په ۱۹۰۰ ع کال د چارسدې په عمرزو کې پیدا شوی دی د صوبه سرحد مشهور سیاسي مبارز او د پښتو زړه خواږ لیکوال او شاعر دی، خواره تراجم، خوږکړه، سفرنامه، رویا بابا، د مثنوي پښتو ترجمه او نور یې مشهور آثار دي.

خال په ۱۳۵۶ هـ ش کال ومړ.

# اے دَلیونیا نونیکه

اے دلیونیا نونیکه لمونځ ښه که مستي ښه ده؟
حسن جوړیدل ښه دي که حسن پرستي ښه ده؟
وے ښه ده مستي ښه ده خو زړه پاک لکه آئینه غواړي
دا دریاب حصول دَ سمندر ځمرو سینه غواړي
حسن جوړیدل دَ ښځو عشق د کمال دے
تور دغم دریاب کښې سور خمار د وصال دے
او اے زما بچیه! دَ جانان ئے مینه لا ښه ده
نوم ئے ښکلے لا ښه دے د جلوه ئے رنګینه لا ښه ده
اے دَلیونیا نونیکه مار ښه که ملا ښه دے؟
تن م دک له زهرو که زړه دک م دَ بلا ښه دے؟

اے زما بچیه ویرانے لره انکار ښه دے

مړے له پېښو ښه ده چینګړے له بنا مار ښه دے

تاله لیونتوب ښه دے مستي ښه ده صحرا ښه ده

چاله طاعون ښه دے چاله سوړے دموړ ښه دے

دا دَ دنیا رنګ دے دا دنیا رنګینه لا ښه ده

زیړه ښه ده توره ښه ده تکه سپینه لا ښه ده

اے دلیونو نیکه حُسن که وفا ښه ده؛

برخه دَ مجنون ښه ده که برخه دَ لیلیٰ ښه ده؛

وے اے زما بچیه: د دلبر د خولے هوا ښه ده

یخه نرمه لا ښه ده او تیزه ګرمه لا ښه ده

تا ورځ دیار لو پته سره رنګینه لا ښه ده

زیړه ښه ده توره ښه ده تکه سپینه لا ښه ده

(نو) اے زما بچیه: حسن ښه دے هم وفا ښه ده

برخه دَ مجنون ښه ده هم برخه دَ لیلیٰ ښه ده

ښه ده فقیري نیکه که ښه ډیره دنیا ښه ده

ګل دَ صنوبر ښه دے که قلا دَ محبوبا ښه ده

وے اے زما بچیه: سور عقاب له دغره سر ښه دے

ګل د صنوبر له ښه او ګل له صنوبر ښه دے

جام له قلار ئے او سمندر له توفان خوند کړي
سترګو له مستي خوند کړي او زړه له ارمان خوند کوي
نو، اے زما بچیه ! فقیري ښه ده دنیا ښه ده
تخت د سلیمان ښه دے د جونګړه د عیسی ښه ده
مشره لیونیه وزیري که جیلخانه ښه ده
ښه مے خپل لوړوکی دي که قرض توتخانه ښه ده
اے زما بچیه ! یار ژړ لوله صحرا ښه ده
تخت د رقیب نه دے ښه ټکورے د لیلی ښه دے
دوست د یزید ښه نه دے شهید د کربلا ښه دے
واک چه ئے د بل وي د دے نه زنانه ښه ده
او اے زما بچیه وزیري نه جیلخانه ښه ده





# دحُورو ښکار

یو عاشق د کلونو دحورو په ښکار لاړ
او د جانان د کوڅې په توبه او استغفار لاړ

وې د جانان ښیست یو خوب و خیال دې
وې دا مستي خودي تنها وبال دې

وې پروني ښاپیرۍ نن توره خاوره دي
دَ دنیا بوټینا که او په پروني واوره دي

وې د جانان پښو ته سجده روا نه ده
دَ مسلمان سترګو له نشه روا نه ده

سپوږمۍ چې واوريده د سهر نغمې خپل يووړه

رنګ ئې د ستورګو نه غوټکۍ د ګل يووړه

د ماښام لړې ئې له د زړه ارمان لاړ

په پسرلي شپې له ئې د مستۍ شان لاړ

ارمان چې لاړ ځواني هم لاړه

خمار هم لاړ مستي هم لاړه

او د جنت په طمع جنت نه خوار لاړ

يو عاشق د ګلو نه چې د حورو په ښکار لاړ



# ګډے وډے

مستي چه چاکښ ډیرُ شي　　یا ډم شي یا شاعر شي
نیستي چه بونیرے وُ وي　　ملا دَ هشتنغر شي
چه صبر چاکښ ډیر شي　　یا ملنګ شي یا بادشاه شي
چه کبر چاکښ ډیر شي　　یا فرعون یا دنګا چا شي
چه اَس دَ تهتو زوے شي　　قد غني بلخشانے شي
چه ډم وي په کابل کښ　　• خالصه • کښ درانے شي
په چا چه کینه ډیره شي　　یا تخت شي یا تخته شي
په چا چه نفل ډیر شي　　یا تهتو یا فرښته شي
خواني چه چاکښ ډیرُ شي　　یا غل شي یا ولي شي
چه زور په چاکښ ډیر شي　　یا یزید شي یا علیؑ شي
د چا چه بخت راوینښ شي　　یا مجنون شي یا لیلیٰ شي
په چا چه تهذیب ډیر شي　　ملوے یا ملولا شي

| | |
|---|---|
| بنهيا چه ديوسخي شي | يا پيتي شي يا پالک شي |
| مهمند چه معتبر شي | بې غيرته شي ملک شي |
| چه مينه چاکښې زياته شي | نبي يا ليونے شي |
| چه دم وي په کابل کښې | خالصه کښې درانی شي |
| چه علم چاکښې ډير شي | يا شيطان شي يا فقير شي |
| چه وس دوسه ووځي | يا نصيب شي يا تقدير شي |
| چه وخت دَ توله وځي | يا قيامت شي يا وصال شي |
| چه سر دَ خوده وځي | (نو) يا شرنګ شي او يا تال شي |
| پښتون چه غيرتي شي | يا خان صيب يا خان بادر شي |

نيستي چه بونيري ووئ
ملا دَ هشنغر شي



# ځوانه

سوے باغ تالا ګلشن دے — مړاوې ګل خاورې چمن دے

نه بلبل نه لولکۍ ښته — نه نرګس نه یاسمن دے

د ګلاب دې ایرے شوے — که په اور سوے ختن دے

اے پښتونه! ستا وطن دے — اے پښتونه! ستا وطن دے

دې باغ خاورے را واخله — ترے نه نوے بوستان جوړ کړه

اے د سوي باغ مالیاره — د نورو نو جهان جوړ کړه

اے چه ښکته ښکته ګورے — نن پښے ابله سر هم تور ے

نه خبر چه نه خوک وے — نه د مینځ آسمان وي ستورے

ستا شمله چه به شوه پورته — شوے به ښکته شملې نورے

په مستي اوننګ به سر وے — ستا د تیغے ستر ګے تورے

اے د تیغو ستر ګو ځوانه — پاخه هغه جهان جوړ کړه

دې باغ خاورے را واخله — ترینه نوے بوستان جوړ کړه

اې دَ وران خپه مېرنې — اې دَ وړنې نجې پلاره!
بې دړه که سر کړدانه — اې دَ سوې باغ مالیا!
اې چه نن بربنډ نجې ستا — دَ خوراک په کشاله دي
ستا دَ لاس ما نئ ولاړې — په دهلي په بنګاله دي
اې دَ بل دَ درمسریاده! — پاڅه هغه دوران جوړ کړه
ددې باغ خاوره راواخله — ترېنه نوې بوستان جوړ کړه
اې په غره په سر ددړه کښې — په باغونو په مېرو کښې
په جنډول کښې په تیرا کښې — زما لال پټ په ایرو کښې
اې د زرګو په خنداکښې — دَ تنزدو په نارو کښې
دَ شېرشاه نازبینه زویه — ته نې پروت تورو تیارو کښې

کړه دَ غم تیاره راغونډه
ترې دَ مینې داستان جوړ کړه
ددې باغ خاوره راواخله
ترې نه نوې بوستان جوړ کړه



# دُعا

اے د حسن او نور دریابه! ماله یو تکے د نور را
سترگے ډکے د خندا راشونډے ډکے د سرور را
زه دے خپل وړوکی زړگی له یوه ننبه دیدار غواړم
اے د حسن او نور دریابه ماله یو تکے د نور را

دے تک تور د غم محل ته یو ځغری د رڼا را
سترگے ډکے د خندا راشونډے ډکے د سرور را
دے مستئ او د ارمان له یو تصویر د جانان راکړه
ستا په مینه نازیدل را ستا په ښکلی مخ غرور را

دے د خود سوی باغچے له یوه وعده د بهار غواړم
زه دا نه وایم چه جنت راله زه دا نه وایم چه طور را
د دے خوب د سا او وخت اشاره د تعبیر نه کړه
ماله نه د بادشاهانو او سینه د تعمیر را کړه



# مینه

رتبه دا سے لیونے شوم په یو خیال بانـدے مین شوم
خُم د وینو مِ سمندر کښ په یو لال بانـدے مین شوم

رتبه؛ دا ځکه مستي ده چه جانان مِ پکښې ورک کړ
که په غم دیار د سترګو په دلال بانـدے مین شوم

زه د سیند د ښلو نه ووم یو لپه مِ څکره پوره
زه د لمر د مینے نه ووم په هلال بانـدے مین شوم

چه مِ نه ځائید سینه کښ په خوبونو کښ مِ ځاے کړ
غم مِ کړو غم د جانان ته په یو خال بانـدے مین شوم

دا مستي نه ده ځواني ده نه مستي ده د شرابو
دا خو زه د یار د سترګو په یو خیال بانـدے مین شوم

دامِ بانګ د لیلیٰ وا وریده که ستاینه د بلال؟
که دیار د پایلو شرنګ کښ په یو تال بانـدے مین شوم

پتنګ پروت وو په تیاره کښ په نامه د شمعے مست شو
که دا زه د یار د سترګو په یو خیال بانـدے مین شوم

ملغ سوړے دلمر ولید په یو څاڅکي د شبنم کښ
که صنم مات مو مسکے شو په خوبونو د صنم کښ

# مړه شمع

ماته نسیمه مه وایه — مه وایه: یار به سبا راځي
ته د مستۍ خبرې کړه — ماله ژړا ژړا راځي

اې د رند و مستو ملا! — اې د اوږدو سلسلو ملا!
ستا په دې راز و نیاز پورې — ماله خندا خندا راځي
ما هم یو خوب لیدلے وو — ما هم یو باغ کړلے وو
ته چه قیصې د ګلونو کړې — ماله ژړا ژړا راځي

زه هم یو شان د ځوانۍ ومه — زه د مستۍ یو تصویر ومه
اوس یو ذره د ایرو یمه — څه که بیګاه سبا راځي
زه لکه مړه شمع ورکه شوم — ورکه په طمع د سوزښتومه
کله په لاس د ساقي راځي — کله به اور او رڼا راځي
تالے ځواني چه لاړه شي — چرته به بیرته بیا راځي
ته د مستۍ خبرې کړه — ماله ژړا ژړا راځي

---

او د بنده مثال لکه د خس دی
تو د ښی لوګی وکړی رڼا کړی جوړه
لمبه شی وسوځی خاور ایرې شی
بوره ابۍ پرې ژړا کړی جوړه

# بنده

بنده بدلیږي داسې بدلیږي
لکه بدل شي چه وخت دَ کال
کله سپرلے شي کله خزان شي
کله مستي شي کله وصال
کله پوحسن شي یو سوز او خوب شي
کله مجنون شي یو لیونتوب شي
کله فریاد سلګۍ، کله نزتوب شي
کله سینه دسقراط کله خرتوب شي

کله ارمان دَ سینې او کله لال
کله مستي شي کله وصال

مینه مستي ده داسې مستي ده
لکه مست وي دَ بنګړي تال
کله سور ګل شي دَ سپرلي شپه شي
کله منصور شي کله بلال

کله یو غم شي ساز او ستار شي
یاد غوټۍ ارمان د ګلو هار شي
کله سره د سوز کله چغار شي
کله قصه د بنا یست کله دلدار شي

کله سینې د حور وا او کله خیال
کله مستي شي کله وصال

غم یو نشه ده داسې نشه ده
لکه نشه شي په بانګ بلال
داغو یو نقش دی د عاشق زړه کښې
د یار د سترګو د خط او خال
کله شراب شي مست او سرشار شي
کله د زړه جام شو ناره د یار شي
خوږې تپې کړي د چا زنار شي
کله قسمت شي او کله اختیار شي

کله مانام شي کله هلال
کله مستي شي کله وصال

وخوږ، بند بدلیږي داسې بدلیږي
لکه بلبل شي چه وخت د کال
وي ځي ارمان شي هیر جانان شي
هیر مستي شي هیر وصال

# سلام

نه ساز شو نه سوز شو | بس هسې ژوند تمام شو
نه خوب شو نه شرنګ شو | نه یار ګلندام شو
دا تورې تورې شپې راغلې | نه ستورې ی نه سپوږمۍ شي
خوانۍ ورې لاړې لاړې | یو ګوټ او خالي جام شو
یو ستوری د سبا ؤ لاړ | سور ګل یو د لاله ؤ لاړ
سوړ لمر زیړې زیړې شولو | نرې نرې مابام شو
قصه د حسن هېره شوه | مزه د مینې تېره شوه
مُلا بانګ د سبا ورې | اخر په سول خیام شو
مستي بې پرواني ورکه | په خود کښې بې خودي وه به

او کورې لیونې هم نن
بادشاه ته په سلام شو

---



# د ژمي ماښام

اوس نن د ژمي ماښام — د جرګې شپه ده
پوست شبنمي باران — بهر وریږي
غاړه د اور او خیام — شروع قصه ده
د شاعر سره اوستا — مهین غږیږي
تنګ او تکور د ژوند — ناز او مستي د جانان
شرنګ د خواني کنړ بت — شا تار د غم ومي
خندا مستي د ساقي — بت پرستي د ساقي
ستیندي د مرګ سره — د کونګرو شرنګ وهي
اوس نن د ژمي ماښام — د جرګې شپه ده
پوست شبنمي باران — بهر وریږي
یار شروع کړي مانه — د غم قصه ده

کله موسکی شي
کله ژړیږي

# مست

چې مې زړه مست وو دنیا وه مسته

کلونه مست وو لیلی وه مسته

چې مې زړه ډوب شو دنیا بوډۍ شوه

کلونه مړاوي شو لیلی بوډۍ شوه

چې مې زړه مست وو شونډې تودې وې

د زهرو شونډې به هم خوږې خوږې وې

چې مې زړه ډوب شو شونډې مړې شوې

یخې د داورو په شان د خوړو ځای شوې

چې مې زړه مست وو سترګې مې سرې وې

مدام سپوږمۍ وه د سپرلي شپې وې

چې مې زړه ډوب شو سترګې هوښیارې

خزان مې مل شو په نیمه لارې

خدایږو ژوندون بس ځواني مستي ده

دا نور ژوندون نه دی یو کړېدۀ دی

ستړکے چه غمجنے شي رتب دے کړي پټے

چه مستي نه وینے داغه لیاږدي

او ما بنا مے یاره ورو راروان دے

سبا به چونګ خاورے وي نن غنچان دے

جانانه: شونډه مے ماته نږدے کړه

چه زړه مے مست شي دنیا شي مسته

چه بیا سپرلي شي ګلونه سره شي

چه خواني و وانګي خندا شي مسته



# نور او سینګار او خمار

کله د ښو ښایست سترګو له پسته رڼا
شونډو کښې دا بېخودي شونډو کښې نشه

نبیست له د خپل ځان په شان نور او سینګار او خمار
یاره د خندا په ځای سپین مې ګلونه ما

مینې له د زور د سمندره، زړه د باچا ورکړو
ساز او آواز او ښایست تا د نثار ور کړو

ما د غمونو ارمانونو جهان راکړه تا
ما زړګی پوست ستا او ښه او حیوان ورکړو تا

او، سترګو ستا دیار د حسن د آرام ورکړه
کله د سپوږمۍ د رڼا کله د ماښام ورکړه

کله د ځوانۍ د امیدونو د ارمان ورکړه
کله خمارۍ ستا د خمار او ستا د شان ورکړه

اے د دوزخونو د قیامت او د حساب ته:

اے د تورو زلفو د لالونو د رباب زړه!

اے د مینې حسن د ځوانۍ او د شباب زړه!

اے د مستو سترګو د نرګس او د ګلاب زړه!

اے د لونګۍ د مینې اے د کل د خیال زړه!

اے د ساز او نیاز او د نسیم او د هلال زړه!

ولې د حسن نه جوړ کړو دا د خاورو ښار

نبیست له د خپل خان په شان نور او سینګار او خمار

# عقل مې حیرانه

زړه مې بېقراره بې آرامه مې دې خیال
عقل مې حیرانه او فکرونه مې جنجال
پوهه مې د نښتې لکه لومه کښې سرخکه
روح مې دې تیاروکښې لکه لړه کښې هلال
رتبه: زما رتبه: دَ جانان دا خط وخال
دا زرینې زلفې کچه خوله و روخې هلال
دا سترګې نیاز بینې داپسې سترګې رنګینې
پاکې د نرګس نه دلولکې نه ورېښمینې
سرې سترګې مستانې دَ مزې سترګې حیرانې
دکې دَ جنت او د دنیا سترګې جانانې
کله د ماښام لړې کله د رڼا ډکې
کله دَ پېرون د ښکې کله د سبا ډکې
وینم پکښې زه واره دنیا د جام جم په شان
او ښکې نې دي پاکې و نکی دَ زمزم په شان

دوب پکښې پرانه دساز او حسن جهانونه دي

دوي ليدلي ززلکه سپرلي او خزانونه دي

دوي کښې دمستئ او بيخودئ دخمانو قصې

دوي کښې دمرکونو د ژوندونو دخوانو قصې

دا به تور چنغي شي او چنغي به تور خاوره شي

دو به په دنده وکي کښ دغورونو صنم او وشي

خنکه به چنغي دمابنام سوز ساز دسبا وخورې

خنکه به چنغي دسپرلي شپه دلمر رڼا خورې

څه شو دایاز د زړه مستي دمحمود سوکه څه شو

څه شو د زلیخا د مڼې بنکلي کوډا کې څه شو

زړه م بې قراره بې آرامه م دے خیال

عقل م حیرانه او فکرونه م جنجال



# ژوند

ژوند مې لوی دریاب دی ورو ورو خورشو سمندر کښې
شاځکې ورک په دریاب کښې شو په طمع د ساحل

څپې کښې د سیلاب دې په مستۍ په څپو تلل
نه وریځې دریاب له غوښتل او نه ورېدل

دا لحن د ساز له تله ژوندون ورته مړ کړی
زېرې د ما بنام وي د سحر را خلېدل

ګله ده د څپې کړه د ابد مستانه تال ته
وکړ نغوه ساز نه تار خانو کښې د ازل

لار لیونۍ لار چېرته د لمر شغلو کښې ډوب شو
شاځکې ورک دریاب کښې شو په تمه د ساحل



# ارني

خان له څه بهانه زه د بېګاه او سبا ګورمه

خاوره کښې دې ګل له د ګلونو دنیا ګورمه

سترګې مې لټي چېرته صحرا کښې منارې یوه

شونډې مې لټي دعا له ښکلې ننداره یوه

ګرځم ما بنا مې کښې د ژړې هلال شغلې لټوم

زه د شبنم څاڅکي له څپاوي او ساسلې لټوم

خان له بهانه د خندا وجه د ارمان لټوم

شپې له د سبا زیرې او مینې له جانان لټوم

څکه کله ګل کله پسرلی کله هلال اخلم

پورې ترې رڼا لټوم په وازو سترګو جال اخلم

کله دریاب کله کور مې د خیام تپوس

ګورمه د غمونو تلوسه د آرام تپوس

ځان له څه معنی زه د بیګاه او سبا ګورمه

خاورو کښې ګل له د ګلونو دنیا ګورمه

رټه: د خوانۍ او د مستۍ خوب له تعبیر لټوم

دے دلبر ذروله زه تورلوله ځنځیر لټوم

رټه: زه ژوندون له او مرګی له یارانه ګورم

دے لیونی سره د منلو افسانه ګورم

ځان له بهانه زه د بیګاه او سبا ګورمه

خاورو کښې دے ګل له د ګلونو دنیا ګورمه



# ساز

ورکړه شرنګ دے ستا رله یاره! نوے د مینې مابنام دے
نوے سپوږمۍ را ختلې ده نوے سرور کښې خیام دے
آو د زړه تار خانو ته دے ګوتے د ساز ورښکته کړے
وی : د محمود خبګرته ښن سترګے آیاز ورښکته کړے
سترګے مینې په غم ډکے ډکے د سر او صنم ډکے
سترګے ستے د شبنم ډکے خنګه په ناز ورښکته کړے
اودے د خاورو ستارکښې تا څنګ د ابد قصه جوړه کړه
او دیو شرنګ او ترنګ نه دے ما له مستی نشه جوړه کړه
تا د کلونو د رنګ نه ما له د یار تصویر کړ جوړ
تا د تارونو د شرنګ نه ما له یو خوب او تعبیر کړ جوړ
تا د سرور او غور څنګ نه ما له بابه منیر کړ جوړ
تا د غمونو د رنګ نه ما له د غم اکسیر کړ جوړ

تا د غرور او ارمان نه — ما ته بهار او خزان کړې جوړ

تا د ترانې د آواز نه — ما له تصویر د جانان کړې جوړ

تا د نرګس د درد او پانو نه

ما له بهار او ګل کړې جوړ

تا د نسیم د خبرو نه

ما له فریاد د بلبل کړې جوړ

ورکړه شرنګ دې ستار له یاره

ورکړه رنګ دې خمار له یاره

ورکړه سلام ګلونو له

ورکړه دعا دې یار له یاره

بیا نست او ارمان را وسپړه

ما له ترنې ګل او خزان کړه جوړ

او د نسیم د خبرو نه

ما له تصویر د جانان کړه جوړ



# زړک خیال

یو خیشته غوندې ماشوم ؤ. که یو خیال که یو خمار ؤ
یو مُسکې شان تانې وکړه د ازل د تارخانو نه
زما خوا له ښاغلی راغی لکه یو ست قیام دیار
که یو ستوری ستړې والی چرته لرې د تیارو نه
که د توبې کوتې وکښې شاهزادګۍ د نوي والي؟
د ما ستا کو کښې غمزې. بنګلې شونډو کښې خندا ل
د جانان په حرکت ؤ. که یو رنګ د تخیل ؤ
که د تال ګنګرو په خپو کښې م خوبونه کله بیدار
لکه روږ هوسې باغ کښې په هیڅ شي نه یقین نه وي
چرته پټ په کښې یو خوب وي د صحرا او د ځنګل
ما د مینې لاس خوار وکړه. څه دعا وه څه ارمان
ما وې آره نګینه نه وه. راشه مست که دا جهان
زه به خپل خود ستا وجود کړم چې ته ستړګو ته ښکاره شې
خپل احساس به دې جامه کړم چې یو خیشت یو ښندار شې
ستا مستې له اختاره به د خان سرور درکړم
ستا امید او مشغلا له. به خوبونه د طور درکړم

زه به خپل ژوندون تر جان کړم ستا د ژوند د کتابونو
زما ګوتې به ستا پاڼې. ستا د شعر ټک ستا د شعرونو
یو قدم مې که راپورته. هم راته هم پریږده
د صحرا عادت هو شي وُ به ګلزار کښې تر یاده

ما خپل زړه ستا ګوګل کښې خوږ که. دیر په مینه ور روان شوم
عجیبه جهان ته لاړم هم عاشق شوم هم جانان شوم
خوځه زه وې ورتلم خواله. نو چا چغه کړه چه خان،
کېږه شپوله اغلی. د رسې خاوره د ره له دوستان

یو نظر مې چه تې وار و، نو د نوا بنا پیرې نه وُ
چار چاپېره به تیار و کښې نه مې نوم وُ نه نشان

اې زما ماشومه زړه. ته به ګرځې کم صحرا کښې
د تیارو به شپه کښې ژړه. ستا خو ګور دې په دنیا کښې
و له لاړې یو ځل خوب شوې دا ازل رو که دنیا کښې
ستا خاشت کښې زما ژوندون دي. ستا جمال دي زما سا کښې
یو نظر کښې که دې ماته سور ګلشن تور بیابان
لیونی. لیوني ګرځم د مینې رګ شوې مې جانان
راشه راشه په خدا شه لکه ستوری په سبا کښې
د تیارو به شپه کښې ژړه. ستا خو ګور دې په دنیا کښې



# یوه قصه

ښکلے پۀ ساز کښې     ښکلے پۀ خوږ بېسوری رباب کښې
ښکلے پۀ مستۀ ترانه کښې     یو ټپه بل افسانه کښې
هر بخت هر زمانه کښې     پۀ فراق پۀ یارانه کښې
بس د خپل جهان قصه ده     پۀ هر مخ د دې کتاب کښې
ښکلے نے وی پۀ اوسته کو     ښکلے پۀ مست نګین رباب کښې

---

ښکلے د تال او حرکت نه     کړي ژړا او خندا جوړه
تول وجود ئې یو ارمان شي     چه د غم کړي ګډا جوړه
لاس او خپې د ګلو ښاخګے     د بوډۍ تال پۀ حباب کښې
د اغښیشت داسې رنګونه     نښته نښته پۀ ګلاب کښې
خو هم هغه یو ارمان دے     د ئې تال او شرنګ د رباب کښې
هم هغه یوه قصه ده     پۀ هر مخ د دې کتاب کښې

---

ښکلے نے ساتګی راواخلي     پۀ خپل اور سرې لمبه کړي
یو مستي سره ورسره جوړه کړي     پۀ جانان ئې صدقه کړي
ګله دوب ئې کړي خپل خمار کړي     د دې هم خان سره نشه کړي

کله تور غمګین ما بنام کښي — دوی یې په غم کې یې تیاره وړي

یو نے وسه مایوسي شي — ناامیده او ورک ماتم شي

یو نے نومه اضطراب شي — سنځے لوړے بے آدم شي

---

دسرو جام د میخانې کښي — د جنت په سپین محراب کښي

د صوفي په پټ سرور کښي — د عاشق د عشق شراب کښي

د شاعر د لاس کمال کښي — په جنون په اضطراب کښي

بس یو رنګ د چپه ځلیږي — هم جانان کښي هم ګلاب کښي

هم په ساز هم تال کښي — هم په خوږ سوی رباب کښي

---

یو خوا تو د مغ ویره مرګ دي — بل خوا ژوند یو رنګین خوب

یو خوا غم درد او تیاره ده — بل خوا مست شان اینتوب

یو خوا ژوند یو بے وسي ده — لویه توره مقبره ده

بل خوا ژوند یو مستي ده — د امید ارمان نشه ده

په یو سوال د هم پوهے نه کړم — د ژوندون په لوئے کتاب کښي

دغه سوال بس دغه سوال دي — هم په رقص هم په رباب کښي

عاشق مینه کښي سهو کښي — شاعر غم او اضطراب کښي

هم هغه یوه قصه ده
په هر مخ د دے کتاب کښي



# د مدون یادونې او څرګندونې

د پښتو د اوسني ادب د تر ټولو ستر شاعر خان عبدالغني خان له نامه سره به د افغانستان او برصغیر په علمي، فرهنګي او سیاسي حلقو کښې ډیر لږ خلق بلد نه وي. خان له پښتو ژبو او افغانستان او برصغیر سربیره په نوره دنیا کښې هم د نامه خاوند دے او په خاص ډول د پښتو ادب خارجي محققین او له انګریزانو سره د لرو پښتو د آزادۍ د جګړو مورخین او مطالعین د ده له نامه او ژوند، کردار او کلام سره آشنا دي. او هم لږ ډیر په هغه مقام هم واقف دي چه زمونږ د غه لوی شاعر ته د پښتو په معاصر ادب کښې لري.

سربیره پر دے د پښتو ادبیاتو په معاصرو تذکرو (۱) کښې هم خان عبدالغني خان زمونږ مشرانو ادیبانو پر مونږ پیژندلے دے او ښودلے ئې.

(۱) پښتانه لیکوال د ب غلام حبیب [illegible] ص ۱۰ - ۱۹ د ۱۹۵۹ ع [illegible] چاپ، او [illegible] ۱۳۳۶ [illegible] چاپ.

نور هم ځینې نخې تحقیقي او علمي مقالې د ده په ژوند او فن کښل شوې دي (۲)،
مګر داچه اوس یې د کلام یوه عمده برخه د (کلیات) په نامه د چاپ ذکر ته
راوځي. نو بویه چه د کلیات له لوستونکو سره د مرستې په خاطر د ده په
شرح حال او ژوند او هنرمندۍ هم څه وکښل شي. چه له ابتدايي لوستونکو
سره د هغوی په دود مرسته وکا، البته منتهیان خو د خان له ژوند او هنره
سره تر هغو چا ډیر بلد دي.

نو زه به په همدې نیامت خپله لیکنه د ده د شرح حال له کښلنې پیل کړم
او بیا به په ترتیب سره پر بحث ور موضوعاتو نورې خبرې هم وکړم.

## کورنۍ او د ژوند ابتدايي حالات:

د پښتو ژبې د غه د غوړ ځنګلي نوږ د شاعر خان عبدالغني خان پلار
د پښتنو ستر مشر خان عبدالغفار خان دے او مور یې
د رځوړ د خانانو د یار محمد خان لوروه. چه له باچا خان سره یې په ۱۹۱۲ع
کال واده شوې و (۳)

د غو دوو خاخیلوله پښتنه په ۱۹۱۴ع کال (۴)، د شمال مغربي سرحدي
صوبې د هشنغر د اتمانزو (۵) په کلي کښې د پښتو ژبې د غه نومیالي او ټنګیالي

---

(۲) کتاب سال انیس، د مرحوم استاد بېنوا معاصر ص ۱۰۹-۱۲۹ د ۱۳۴۶ هـ ش کال د کابل چاپ.
(۳) زما ژوند او جدوجهد، د خان عبدالغفار خان ص ۷۰ د ۱۳۶۲ هـ ش د کابل چاپ.
(۴) [illegible] ۱۹۱۶ع [illegible] ښودلی ده؟
(۵) په کتاب سال انیس ص ۱۰۹ کې مرحوم بېنوا د غني خان د پیدا کېدو سیمه د هشنغر [illegible] ښودلې ده؟

شاعر وزېږېده. پلار یې د عبدالغني نوم کښېښود.

عبدالغني د مور او پلار لومړنی اولاد او د دوی ډېر نازېږین و. استاد بینوا مرحوم د ده د یوه دوست په حواله کښلي دي چې: "غني په کوچنیوالي کښې ډېر ښکلی او د مور او پلار ډېر نازولی و. په غاړه به یې د سرو زرو د ښه اوږدې وه او په ښي غوږ به یې د سرو زرو والۍ وه. په سر به یې تیله داره ډیوبلونو ډکه ټوپۍ او په ټوپۍ کښې به یې یوه زرینه جوړه ته ومبلې وه چې د جوړې نه چار چاپېره بندونه دي د نظر مات تاوېزونه تاو شوي وو."

مګر د غه نازېږین توب ډېر پایښتی نه و. ځکه ننګیالي پلار یې هغه مهال د وطن او خلکو د خلاصون لپاره د انګریزانو پر ضد مبارزه پیل کړې وه او په خپل کور کښې آرام نه و ناست. له بله پلوه د غني مور هم د ده په ځنځه کلنۍ له دنیا سترګې پټې کړې او نازولی غني د مور له تودې غېږې محروم شو.

د غني د مور د مړینې واقعه د پښتنو لوی ملي مشر د غني پلار باچاخان داسې کښلې ده: "د جنګ په وجه په دنیا کښې سخته وبا راغله. په جنګ کښې دومره کسان نه وو مړه شوي لکه په دې وبا کښې چې مړه شول. په هندوستان کښې هم دې وبا ډېر خلک ووژل. پښتانه هم ډېر پکښې مړه شول. دا داسې عجیبه وبا وه اکثر به یې ځوانان. جینکۍ او هلکان وهل او مړه کول او چې یو کور ته یې ورځل نو تر بیا به یې یو هم نه پرېښود.... په دې مرض د ټولو نه اول زه پرېوتی وم خو هسې خدای جوړ کړم .... زما وروسته غني چې د ځنځو کالو و ناروغه شو.

غني ډېر ښکلی وه. د مور ورسره ډېره مینه وه. ډېره یې ورته ژړل، ما به منع
کوله او د صبر تلقین به مې ورته کولو. خو د هغې زړه به نه صبرېدو. یوه ورځ د غني
رنځوري سخته شوه. مور یې ورته د کټ سره ناسته وه. د دوه شپې به غېږ کښې
ایښې و. ما د ماښام لمونځ کړې و، په مصلی ناست وم. دعا مې کوله. غني ته مې
کتل چې بې هوشه پروت دې. چې ناڅاپه مور یې پاڅېده. د زوې سره یې د خپل ورانه
نه په بالښت کښېښودو، او د زوې له کټه چاپېره ورګرځېده. او سره یې ودرېده
او لاسونه یې په دعا پورته کړل. او په ژړا یې وویل چې "اې خدایه د ده مرض په ما
کښېږده، او دې ماشوم ته شفا ورکړې". د خدای یوه عجیبه حکمت و، په سباله
دانا جوړه شوه. د دې مرض ورځ په ورځ زیاتېدو، او د غني مرض به ورځ په ورځ
کمېدو. غني جوړ شو، او مور یې خرابه ګړه شوه. ماشومان یې راته پاتې شو. دغه
وخت غني د پنځو کالو. ولي د درېو کالو او خور یې د یو کال وه.»(٦١)

د مور تر مړینې وروسته د عبدالغني خان روزنه د ده دانا د پاچاخان
د مور په غاړه وه. مګر د هغې هم د ژوند ډېرې ورځې نه وې پاتې. په دا وخت کښې
چې باچاخان د ډېره غازي خان په جېل کښې قید و، مور یې هم وفات شوه (١١)
او د غني دې پالونکې او مهربانې مور له دنیا سترګې پټې کړې. غني بې سرپرسته
پاتې شو. لنډه دا چې په غني د ماشومتوب په دوره کښې د ژوند د ناوړو پېښو
راغلې ملګورو ورو د غم حالات مخ په سبا کېدو شول. خان کاکا غني چې د ملي شو

(٦١) زما ژوند او جد وجهد ص ١٣٢ - ١٣٣ .
(١١) همدا غه کتاب ص ٢٠٩ .

او سنوېڅنو ته لاړ ددې په شخصي ژوند کښې هم تبديلي راغله .

## زده کړه، روزنه او فرهنګي محيط :

د پښتو د اوسني ادب د غه نوميالي شاعر هغه وخت د ملې هيې

د تنګ شو چې باچاخان او نورو مبارزو او ملي ليو پښتنو په همت په پښتنو کښې

د عصري تعليم د شروع کولو او عامولو جد و جهد جاري وو . او ددوی په همت

او ميړانه په ۱۹۲۱ ع کال د اتمانزو آزاد سکول جوړ شوی و ، خو د لرو پښتنو

په چاپېرچل کښې په عام ډول د تعليم څه شوق نه و ، او د پېرنګي اجنټانو

به د عصري تعليم د مخنيوی لپاره په خلکو کښې ډول ډول غلطې پروپاګنډې

خپرولې او خلک يې له عصري تعليم څخه ليرې ساتل ، په قبايلي او کليوالي سيمو کښې

د سبقونو عام دود په جوماتو کښې هم اغه ديني نصاب و ، چې له څوانه تر اوسه

لا په ځينو ځايونو کښې چلېږي .

غني خان په دغسې شرايطو کښې د سبوونځي شو ، او ميړني پلار يې

د اتمانزو په آزاد سکول کښې شامل کړ .

استاد بېنوا مرحوم په دې باب ليکلي دي : " د غني خان ابتدايي زده کړه

په هغه آزاد قومي سبوونځي کښې شروع شوه چې باچاخان او د هغه دوستانو

د غريبو هلکانو د پاره په اتمانزو کښې جوړ کړی و ، او زده کړه يې کښې

وړيا وه .

باچاخان خپل زامن د غريبانو سبوونځي ته واستول چې خلک

وند وايي چه: باچاخان دخپلو اونورو دزامنو ترمخ توپیر کوي. خپل زامن معتبرو ښوونځی ته بيايي او د نورو زامن دغريبانو ښوونځي ته استوي (۸) دلسم ټولګي تر پاس کولو وروسته د دهلي په جامعه مليه کښې شامل شو، په ۱۹۲۹ع کال باچاخان ديوه مرام لپاره بيرته چارسدې ته راوغوښت او څه موده وروسته يې تحصيل لپاره لندن ته وليږه. او د ۱۹۲۹ع کال دجولای په ۲۳ نيټه دخورلسو کالو په عمر دلندن په نيت په بمبئي کښې د اوبو جهاز کښې سور شو.

استاد بينوا ددې دلندن دسفر په باب ليکي: «غني خان لندن ته ولاړ او هلته يې د باچاخان په مشوره دوه نيم کاله ديولوي پادري په کور کښې تير کړه، وايي چه په دې کښې د باچاخان مطلب دا و چه غني خان که د پرنګيانو په لوړو او چت خاندان کښې عمر تير کړي نو د پرنګيانو د عظمت په راز به پوه شي....

د انګلستان آزاد ماحول کښې دغني نایاب ښايست دهغه دپاره يولوی مصيبت شو. چه چيرته به تي پرنګيانې جينکۍ به ورپسې وې او سبق ته به يې نه پريښود، خو په آخره کښې دلندن يوه دفلم ستاره دې پرمينه شوه چه ډيره بې بها ښکلې وه. ددې نوره ملګروته ويره پيدا شوه چه غني يې په نکاح وانغلي، نو پوليس پکښې باچاخان ته خط وليکه او دتو لے قصے نه يے خبرکړه، باچاخان د تار په ذريعه حکم وکړه چه فوراً امريکې ته کوم کالج لاړ شه.» (۹)

(۸) اوسني ليکوال ج ۳ ص ۹۷۰
(۹) همدغه اثر ص ۹۷۱

دغه خبر: خانے خانے د غني خان په شاعرۍ کښے هم ښکاره کوي چه د لندن د پیرنګو جونو ښایست په زړه اثر کړے و... د لندن معشوقے" ترمه لیک د دوه یوه توته ده چه داسے پیل کیږي :

دلته خواته ازغي دي — بل خوا ښائسته د نرګس

د هنر علم سایه کښے — ګرځي ګل لبانه مس (۱۰)

غني خان د پلار په حکم له لندن نه امریکے ته دلاړ. او د لویزیانا د ایالت د بورې او شکرے جوړولو په یو کورس کښے شامل شو. اما دوه نیم کاله وروسته چه باچا خان بیا قید شو، نو غني خان ته ژوند تریخ شو، ځکه خرڅ نه ورسید او پوره اته میاشتے پیسه خرڅ هم نه ورسیدلے. بالاخره یو ځیلوان دوه مره څه ملګرو د ورلیږل چه د برے له امریکے هندوستان ته راواپس شي.

باچا خان هم د غني موضوع ته داسے اشاره کړې ده: "مشر عبدالغني دے چه هغه د ترو کیسټري د تعلیم د پاره امریکے ته لیږلے و. خو چه زه فیرنګیانو په ۱۹۳۱ع کال کښے جیل ته ولیږلم او زما جایداد ئے ګډ وډ کړو نو هغه د پیسو د نشت په وجه سر ته ونه رسولو او واپس راغے" (۱۱)

کله چه عبدالغني خان له امریکے راغے نو باچا خان د هندوستان د بهار د ایالت د هزاري باغ په جیل کښے و، چه د غني ورسره ملاقات وشو. او بیا د جواهر لال نهرو

(۱۰) پانوس ص ۱۱۶، ۱۹۷۸ع کال د پېښور چاپ.

(۱۱) زما ژوند او جدوجهد ص ۲.

فضیل (۱۸۸۹-۱۹۶۴ع) په مشوره نے د ے، آله اباد ته ولیږل او هلته د جواهر لال نهرو د پلار موتي لال نهرو په کور کښے ديره شو. او ته میاشتے د جواهر لال نهرو د میرمنے کملا د خپل بچي په شان ونازاوه خو کله چه په هغے پسے د گرفتارئ انگریزي پولیس راغلل. نو دے او خپله لور اندرا (۱۹۱۷-۱۹۸۴ع) یے د ټاگور بين الاقوامي يونيورسټئ ته وليږل. د چه غني د يونيورسټئ ته لاړ. لږ موده پس د محصلينو د اعتماد یے رئیس شو.

د غني د منظم تحصيل دوران هم له واقعاتو سره مل روان و کله به پوخه پیښی وو، او کله به بل څه.

د د ے تحصيل په جریان کښے د وله خپلے مورنۍ ژبے سره بیره عربي. فارسي اردو او انگریزي ژبے د ځېرو کولو مطالعے او په ځینو کښے د ځه کښلو ترسره حده ز ده کړے.

په اوسني ليکوال کښے د د ه د عربي داني او د اسلامي علومو د تحصيل او مطالعے په باب راغلي دي: "د باچا خان دا خيال و چه د غني نه مولوي اسلامي عالم جوړ کړي، نو ځکه غني خان او ه کاله د عربي مروج علوم ولوستل په تيره بيا د قرآن تفسيرونه او د احادیثو کتابونه (مسلم، بخاري) احسن المسائل او بلوغ المرام تقريباً ټول په ياد وو او عربي ژبه یے د خپلے ژبے پښتو په شان روانه ويله" (۱۲) وايي چه يو ځل د هند د ديوبند د اسلامي

(۱۲) اوسني ليکوال ج ۳ ص ۷۹.

ملا صاحب یو مولانا دا تمانزو و آزاد سکول ته را غلے و، غنی خان د تولوتنو گرد انو مخکښے ولاړ شو او ټل د تیقے یے په روانه او فصیحه عربی ژبه وینا وکړه مولانا پوښتنه وکړه چه دا هلک عرب دے؟ باچاخان په جواب کښے ووئیل چه نه دا زما زوے دے.

د غنی چه باچاخان په غنی باندے د عربی د زده کړے باعث دے ترڅنګه یے د پارسی ژبے د زده کړے سپارښت هم وته کاوه، باچاخان په خپل یوه لیک کښے غنی خان ته کښلی دی: "عربی او فارسی طرف ته هم څه نه څه توجه وکړه او د دے مطالعے د پاره هم څه نه څه وخت وباسه ما تا نه د دے متعلق اول هم لیکلی وو لیکن تا یے په خپل خط کښے څه خاص ذکر نه دے کړے" (۱۳)

## ملازمت:

بناغلی همیش خلیل کښلی دی کله چه غنی خان په ۱۹۳۲ء کال پیښور ته واپس راغلو څه موده دے د تخت بهایی په شوګر مل کښے ملازمت وکړو (۱۴)

استاد بینوا لیکلی دی: "غنی خان هلته د بوره جوړولو په یوه کارخانه کښے د میاشتے په سلو ټل کلدارو نوکر شو، په لومړی سر کښے یو معمولی نوکر و، خو په دے کاله کښے د ننه د ننه د خپل نظری استعداد او لیاقت په وجه د کارخانے د تولو نه لوے او غټ افسر شو ... څه موده د راستنه یے د تخت بهایی په سیمه کښے د بورے جوړولو کارخانه جوړه کړه، کارخانه په چلیدو راغله، خو اعتماد نه پاتے شو ... خو په سیمه کښې چه د بوره جوړولو کارخانه جوړه کړه، کارخانه په چلیدو راغله، خو اهغه خت وجه دده د بلار

(۱۳) د باچاخان لیکونه

(۱۴) پښتانه لیکوال ص ۱۷

(باچاخان) اوپرنګیانو ترمنځ پاجګړه توده شوه او د غني خان قول خپلوان د انګریزانو له خوا د استعمار زندانونو ته بوتلے شول. غني خان ته باچاخان حکم کړی وه چه خان به قید ته نه ورکوي، او د هغوي د جایداد سرپرستي او انتظام به کوي. غني خان هم د خپل جایداد په یوه کلي کښے خانه سبه کور جوړ کړو ... کومه زمینداري ئے شروع کړه او په مزه کښیناست» (۱۵)

استاد بینوا په اول وار کښے د ده د ملازمت خانه کے ذ سبول او دوم وايي چه: غني خان هلته د بورے جوړولو په یوه کارخانه کښے .... نوکر شو. خنګه چه د ابحث په هندوستان کښے د ده له ژوند سره اړه لري، نو د ملازمت د غه دوره به یے هندوستان کښے وي، خو په اوسني لیکوال کښے د غه خانه د معلوم.

اما په بلو شے (۱۶) کښے چه د میاجعفرشاه په نامه د عبدالغني خان کوم منظوم لیک چاپ شوے دے، په یوه بیت کښے یے راغلي دي:

چرته نرم ریښمین تار چرته میرزے
چرته زه چرته "ګوله" چرته شکرے

د محمد منظوم لیک په حاشیه کښے لیکلي دي: ګوله: ګوګرنا ته د هندوستان په (یو. پي) ولایت کښے یو ځاے دے غني هلته د بورے په کارخانه کښے افسر ؤ.

نو استاد بینوا چه په هندوستان کښے د خان د ملازمت کوم بیان راوړے دے دا به بنایي هماغه ګوله کښے وي.

(۱۵) اوسني لیکوال ص ۴۰۳
(۱۶) پلوشے ص ۳۶ د ۱۳۲۹ هـ ش کال د کابل چاپ - پښتو ټولنه.

## واده :

" اوس نی لیکوال کښې راغلی دی : " .... او هغه وخت چه د بمبئی په ښار کښې یې د خپل یو دوست کره د حیدر آباد د نواب رستم جنګ کشرۍ لور ولیده نو د لیدو سره سم ستی یې زړه پرې بایلود ... " بیا لیکی : " او تر اوږدو کالو منډو وروسته یې د نواب صاحب لور وکړه او د خپل ژوند ملګرې یې کړه .

عبدالغنی خان د خپلې د غې ملګرې په باب داسې نظر لري :

| | |
|---|---|
| یو خوب د شاعر په جامه انسانی | یو ساز د دور دراز ښکلی خوږ آسمانی |
| یو ګل د جنت په خصلت ځانی | یو جسم نازک یو زړه ګې نورانی |
| شو له داسې پیدا د غنی دلبرا | په غیرت نښتنه په ښا ایرا ټیست نی (۱۷) |

## سیاسی میدان :

که څه هم استاد بینوا کښلی چه غنی په ۱۹۴۵ ع کال د سیاست د ډګر څخه وخوت هغه وکړه ، خو زما خپله رأیه او نور شواهد دادی چه د عبدالغنی ژوند له ماشوم توب څخه په یوه سیاسی ماحول کښې تېر شوی دی .

خان په داسې یوه کورنۍ کښې زوکړې چه هغه پخپله یوه لویه سیاسی ملګه وه ، باچا خان نه یوازې د خپلې سیمې په سیاسی حلقو کښې محشور ګڼل کېده بلکه د سیمې په سیاست کښې داخل شخصیت دی .

عبدالغنی په دغسې یوه کورنۍ کښې د نیا ته سترګې پرانیستې ، د هغه وخت

---

(۱۷) د پښتو غږ [illegible] ص ۳ ، د ۱۹۵۹ ع کال ، چاپ پېښور . د [illegible] ۱۹۵۶ ع [illegible] په ۱۹۰۵ ع کال د خپل واده [illegible] ، خو [illegible] خان په ۱۹۲۱ ع کال کې واده کړی دی .

تول سیاسي جریانونه او واقعات دي : په فکر او نظر او عملي لحاظ ئې او موثر وو.

زه په خپله د عبدالغني خان د سیاسي فعالیت زمانه او په سیاست کښې

دده ګډون له هغه وخته راپیل کوم، چه د پرنګي د شومو منصوبو په نتیجه کښې

په افغانستان کښې د غازي امان الله خان (۱۹۱۹-۱۹۲۹ع) په ضد بغاوت وشو

او بچه سقاو د ننه شو. زمونږ په تول صوبه کښې د حق او باطل ترمنځ یوه جګړه

روانه شوه. او تول وطن د پرنګي په لمسه په اور کښې سوځیده. زمونږ تورنو

ورونو د دغه مصیبت برداشت نشو کولاے. او له مونږ سره غني خان په دغه غم کښې

شریک وو. باچاخان او دده ملګرو د خلکو د پوهولو لپاره جلسې کولې او

د امان الله خان په ګټه یې تبلیغونه کول چندے یې تولولے (۱۹)

او د جنګ د زخمیانو د مرستې د لپاره یې افغانستان ته د یو طبي وفد د لیږلو

کوښښ شروع کړے و. غني خان هم د باچاخان له خوا د غه وفد ته معرفي

شوے و، لکه چه اوسني لیکوال کښې راغلي دي: "باچاخان پنځه زره روپۍ

او یو هم غني د غه وفد ته ورا خښنه" غني خان د غه وخت په جامعه ملیه

دهلي کښې سبق وایه، په غني پسې تیلګرام لاړ او هغه په دوه ورځو راورسید..

خان ته یې د رضاکارانو خرڅ جامې جوړې کړے او د ډاکټر خانصاحب

(۱۹۵۶ع شهید) له کمپوډر ځنه یې د پټۍ ترلو چل زده کړ. خو پرنګي

د دغې ډلې له تللو سره موافقه ونه کړه او دوي پاسپورتونه یې ترې وخستل

(۱۹) مرحوم راحت زاخیلي (۱۸۸۴-۱۹۶۳ع) هم په دے باب ویلي دي: "یاد کړو ... مالونه
په ... کښې د ... (د واغه ص ۳۰ د ... په زیاتو. د ۱۳۶۳ ... ش ... )

چې امان الله خان له پاچهۍ لاس وکیښ.

څنګه چې د باچاخان د غني فیصلې ته پرنګیانو په ښه نظر نه کتل او پلمه یې غوښتله چې د ګرفتار کړي، نو غني یې له ګرفتارۍ څخه د ژغورلو په خاطر د تحصیل لپاره انګلستان ته ولیږه (۱۹۲۹ع). دا و د سیاسي مبارزې په ډګر کښې د غني لومړې ګام او د پرنګي داعمالو پر ضد یو پاڅون.

وروسته تر دې چې غني له اروپا او امریکا څخه بیرته هندوستان ته راوګرځید، د هند په سیاسي حلقو کښې محشور شو. له ګاندهي جي (۱۸۶۹-۱۹۴۸ع) او د هند له نورو سیاسي لیډرانو سره یې د پلار په وسیله ناسته پاسته وه. لکه چې پاچاخان په خپلو لیکو کښې عبدالغني خان ته کښلي دي: «غني جانه! دا خوړیر د خوشحالۍ خبره ده چې د ګاندهي جي په صلاح او مشورې سره بنګال ته روان یې زه به تا نه ډیر خوشحالیږم که چیرې ته د ګاندهي جي په صلاح سره کار کوې د هغه تا سره ډیره مینه ده .....» (۱۹)

استاد بینوا لیکلي دي: «عبدالغني خان په ۱۹۴۵ع کال د دوستانو په سپارښتنه د هغه وخت په مرکزي پارلمنټ (برتانوي هندوستان) کښې د انتخابیډو د پاره ودریږ، خان یې کاندید کړ (۲۰) د ده په مقابل کښې که څه هم د هغه وخت د ټولو سیاسي ډلو لکه خاکسار، مسلم لیګ او هندو مهاسبها

(۱۹) د باچاخان لیکونه ص ۲۰

(۲۰) د پښتانه لیکوال په ۱۰۵ مخ کښې یې کښلي دي: «کوم وخت چې خان عبدالقیوم خان د کانګرس مستعفي مشر نو غني خان د هغه په ځای د دوه کاله د مشترکه هندوستان د سنټرل اسمبلۍ ممبر پاتې شو.»

ولاړ ږي، خو غني خان هغوى ته ماتې ورکړه او د هند په مرکزي پارلمنټ
کښې وټاکل شو نو دهلي ته ولاړ. هند په مرکزي پارلمنټ کښې ښاغلي
غني د خپل مستعد دماغ په برکت ډير ژر منلے مقام ومونده او د هغه وخت
د هندوستان په دريو بهترينو مقررينو کښې يو هم غني خان و، که څه هم دے
د پارلمنټ تر ټولو غړو کشر و، خو چه ده به تقرير شروع کړو نو يو دم به
چارچاپيره د پارلمان غړي په منډه منډه د پارلمان سالون ته راتلل....
سره د دے چه عمر يے لږ و، بيا هم د مرکزي وزيرانو سره ډيرو ليسو سلا کارو کميټو
غړے و يو ځل نيم هم دا ره پا بين المللي کنفرانسونو ته ليږلے شوے و." (۲۱)

هغه مهال په شمال مغربي صوبه سرحد کښې د مسلم ليګيانو ورانۍ
د خدائي خدمتګارو په وړاندې زياتې شوې وې، نو هغه وخت چه عبدالغني خان
د خدائي خدمتګارو د محافظت لپاره د زلمي پښتون دله جوړه کړه او ډير
وطنپرست پښتانه زلميان يې پکښې منظم کړل، د دغه تحريک سره له دے چه
شپږ مياشتې وچليده، خو د اتيا زرو په شاوخوا کښې پښتانه زلميان ورسره وو.

فخر افغان د دغه تحريک په باب کښلي دي: "څه وخت چه زمونږ خلک
د ميجر خورشيد د دے ارادے او سيکم نه خبر شول نو هغوى د خدائي خدمتګارو
د حفاظت د پاره يو جماعت د غني په مشرۍ کښې جوړ کړو، نوم يے د زلمي پښتون و
او په دے کښې هغه ځوانان شريک شول چه د چا عقيده په عدم تشدد باندے نه وه

(۲۱) اوسني ليکوال، ص ۹۰۲

ولې چه هغوی په دې غرض دغه جماعت جوړ کړے وو چه خدائي خدمتګار

خو تشدد نه کوی، د دوی عقیده په عدم تشدد ده دوی په خلاف د تشدد

سازشونه کیږی، نو دوی اعلان وکړو چه دا جماعت صرف د خدائي خدمتګارو

د حفاظت دپاره دے. د دې په مقابل کښې مسلم لیګو د غازی پښتون په نوم یو

جماعت جوړ کړو لیکن پښتون قوم زلمی پښتون پسې وو، او مسلم لیګ کښې

چه کوم خانان د پړنګیانو تالی څټ وو، هغوی په دې نتیجه ورسیدل چه قوم

خدائي خدمتګارو سره دے نو که د زلمی پښتون او غازی پښتون جګړه شی

نو مونږ مسلم لیګو کښې به یو کس هم ژوندے پاتے نه شی..." (۲۲)

د هندوستان تر ویش وروسته د ۱۹۴۷ع کال د جولائي په څلرمه

نیټه د شپې په یوه بجه غنی خان د مسلم لیګی حکومت له خوا ګرفتار شو او

د هغے شپې په سبا پېښور ته بوتلے شو، او له مرحوم ماسټر عبدالکریم سره

یو ځاے جیل ته ولیږل شو. د هیواد او پاکستان د نورو جیلونو په تورو

او سپینو پنجرو کښې یې شپږ کاله تیر کړل او په ۱۹۵۴ع کال کښې له بنده

آزاد شو.

داوه د ده سیاسی ژوند او په سیاسی میدان کښې د ده د فعالیتونو

او مبارزو لنډه قصه. اما تر دے وروسته هم که ظاهراً خان په روان سیاست

کښې لاس وهم نه لری، مګر بیا هم د محیط او خپلے کورنۍ د سیاسی مرکز میو

---

(۲۲) زما ژوند او جد وجهد ص ۶۹۲ - ۶۹۹

له چپو په امان کښې نه شي پاتې کیدې او دغه سیاسي جریانات دده په ژوند اغیزکوي او دده ژوند مل ورسره تیریږي .

## دادب میدان :

ویلی شي چه خان عبدالغني خان خپل لومړنی شعر د ۱۹۲۹ ع کال د جولای په ۲۲ نیټه دعمر په څورلسم کال ویلی دی، او دغه شعر یو بیت دادی :

دتهمت نه به جهان کښې څوک خلاص نه شي
چه آسمان وی کله کله وی وریځې

عبدالغني خان له همدغه وخته د ادب په میدان کښې لومړي قدم کیښود ، مګر دغه قدم یې ډیر پوخ او محکم کیښود چه ان تر دې دمه په دې لار روان دی ، او ادب یې د زړه همدم ایسي .

خان له ۱۹۲۹ - ۱۹۸۰ ع کال پورې په دې شپږ پنځوس کالو کښې خپلې ژبې او خپل فرهنګ ته ډیرڅه ورکړي دي. چه دغه ادبي کارنامې به یې نوم تر ډیر یو ژوند ې وساتي .

## پښتو ادب ته دغني خان بخښنې :

د پښتو ادب په اوسني دور کښې په سلګونو شاعرانو او ادیبانو لوا ور پښتو ژبې ته په نظم او نثر کښې ډیر څه بخښلي دي ،چه په دغو ډالیو کښې د ځینو هغوله مرغلرو سره برابردي ، او د ځینو لا په کوم څه ارزي .

د عبدالغني خان بخښنې په لومړۍ قطار کښې ځای نیسي ، ده چه څه

خپلې ژبې او ادب ته غښتلې دي د پېړ برخې يې د پښتو شاعرۍ په اوسني دور کښې خپل بل ساری نه لري، او پوازې دې په خپله ژبه کښې د د غښې بکر او ناو پلوشو مضامينو مبتکر دې.

زه به دلته لیکنې په دې برخه کښې لومړی هغه څه در وپيژنم چه د ده پښتو ادب ته ور کړي دي.

## ۱- د پنجرې چغار:

دا د خان د منظوم کلام اولنۍ شايع شوې مجموعه ده، او له اختتاميه ليکنې يې ښکاري چه د غه مجموعه خان په جيل کښې تنظيم او بشپړ کړې ده. د ده خپله ليکنه په دې خصوص کښې دا ده: "نن په ۲۲ تاريخ د اکتوبر ۱۹۵۲ء په هرې پور جيل کښې دا کتاب ليکل ختم شو." (۲۳)

د غه مجموعه ۲۱۵ مخه په ۱۹۵۶ء کال پېښور کښې د يونيورسټي بک ايجنسي له خوا چاپ شوې ده. د کتاب پېژندګلو د مرحوم ماسټر عبدالکريم په قلم کښل شوې، او په پيل کښې يې د خان خپنې منثورې ليکنې هم چاپ شوې دي.

## ۲- د غني پلوشې:

دا د عبدالغني خان د کلام دوهمه مجموعه ده چه په ۱۳۲۹ هـ ش کال په کابل کښې د پښتو ټولنې له خوا ۲۳۶ مخه چاپ شوې ده. د دې مجموعې د پيل په ۱۲۳ مخونو کښې د خان نور هغه کلام چاپ شوی دی او وروسته يې د پنجرې چغار

(۲۳) د پنجرې چغار ص ۲۱۵ - خان د دې اثر په پورتنۍ برخه کښې ليکلي دي: "هرې پور - ۱۵ اکتوبر ۱۹۵۰ء کښې دا کتاب شروع کوم." غني

نظمونه اخیستي دي.

د دې مجموعې په پیل کښې د مرحوم استاد الفت یو یادښت او په پای کښې یې د غني خان یو یادښت چاپ شوی دی چې د هري پور په جېل کښې کښل شوی او تاریخ یې ۱۹۴۹ ع کال د جولای د شپږمې نېټې دی. د غني په دې یادښت کښې راغلي دي: "کتاب خلاص شو خو شعرونه ډېر پاتې شو، خیر بیا به چرته څه غم وکړو، ژوند عجب شی دی. د دې کتاب کښې اول شعر د اوبو په جهاز کښې په بحر هند د ویل شوی و او آخري د هري پور جیل د کوارنټین په یوه چکۍ کښې په دې منځ کښې چې څه مستي، خوشحالي، غم، ارمان، امید، وغیره، خندا او ژړا په ما راغلي دي. نو د دې کتاب په دې پاڼو کښې موجود دي ولې افسوس دا چې ژبه مې د زړه هومره طاقت نه لري بیان د احساس نه کمزوری دی. خو هر څه چې دي حاضر دي ما د څه پټولو کوښښ نه دی کړی. بلکه د ښکارولو کولو خوارۍ کړې ده.

دا زما د خان تصویر دی، ډېر نامکمل او مات ګوډ دی ولې دا زه یم په خوشحاله ضمیر وایم چې دې کښې هر څه دي زما دي. دا زما د دې بې ښکاره او بې مطلبه ژوند یوه خواره ډالۍ ده چې ما خپل قام او مسلک له جوړه کړې ده. کاش چې دې کښې د ژبې د ښایست او پوهې د کمال دریا نه ما ډک بهولی وې ولې څه وکړم چې هومره وس و. او بنده د خپله وسه زیاتي په هیڅ نه دی پړ. که په دې خیالاتو کښې دومره حسن وي، چې له مانه پس هم

ژوندي پاتې شي نو زه به وايم چه واقعي ماد آب حيات چينه وموند له، اوس

دوی ما ژوندي کړي دي، او بيا به دوی ما ژوندي کوي. (غني) (۲۴)

## ۳- پانوس:

د عبدالغني خان د شايع شوي کلام دريمه مجموعه پانوس نومې

چه په ۱۹۷۸ع کال د قامي مکتبه پېښور له خوا په پنجاب آرټ پريس کښې

کښې ۲۹۲ مخه چاپ شوې ده. په دې مجموعه کښې د خان له نويو نظمونو سره

د پنجرې، چغار او پلوشې انتخابات هم ليدل کيږي. د دې مجموعې په پيل کښې

يو يو مخيز ياد ښت هم چاپ شوی دی.

## ۴- د غني ليکونه:

غني خان د خپل سياسي او ادبي ژوند په دوران کښې د لرې او بر

پښتونخوا او برصغير اديبانو، شاعرانو او سياسي خلکو او مشرانو ته په اردو

انګريزۍ او پښتو کښې منظوم او منثور ليکونه هم کښلي دي، چه زه د خان د غني

ليکونه دده يو ځانته بېل اثر بولم.

که څه هم دده د پښتو منظومو او منثورو ليکونو ځينې برخې د سرحد

په اخبا راتو، رسالو او هم دده په کتابونو کښې شايع شوې دي، خو د هغو ځا مله

تولول او خوندي کول په کار دي، ځکه د غني ليکونه د خپل ادبي او هنري

لطف سره سره ځينې ډير مهم نکات او تاريخي وقايع هم رانغاړي، چه د غني خان

(۲۴) پلوشې ص ۲۳۶

د ملی، سیاسی او ادبی ستیزو په څېړنه او هسې ډول تګ د مضمون احوال او وخت د مطالعې په دوران کښې د څېړونکو سره ډېره مرسته کوی. زه په دې خاطر کښې د مجله له زړو رسالو څخه د دوی یو منثور او یو منظوم لیک د نمونې په ډول را اخلم.

دارالامان

۲۰/۱/۵۹

ګرانه مهدی:

ستا دواړه خطونه را رسیدلی دی. معافی غواړم چه اول مې جواب د رنکړو. خوږه داوری نه څخه ناجوړ یم او نن سبا خو هسې د خپله خانه او تولې دنیانه مرور شوی یم. تا ته دا هم معلومه ده چه کلونه او شو چه ماخه خلاص شوې نه د لیکلې تیر شوی څه رم کښې چه زه په هسپتال کښې وم. نو په امام حسین مې مرثیه لیکلې ده. هغه د لیږم. هغه هم زانه ورکه شوې ده. خو که بنسټ کوم او را یاد و مه. زه ستا ډېر مشکور یم چه کله نا کله زما شعرونه رهبر کښې چاپ کړې زه مې ډېر غواړی چه هر وهفته د لې څه نا څه لیکم ولې ډیر پریشانه او ړوند ستړی یم او هیڅ کار نه می ټ د نه شی. (۲۵) غنی.

لاندې یو منظوم لیک را اوړم چه عبدالغنی خان د ۱۹۵۱ ع کال د جون په ۲۵ په جیل کښې ماسټر عبدالکریم ته لیږلی و:

---

(۲۵) رهبر کالیز نمبر ۲ فروری ۱۹۵۹ ع الف مخ.

غنی ته نه سړے وے — نه سړے شوے نه به شے

بے تکه د خبرے — بے مطلبه د نشے

بے تولے د دماغ دے — بے لباسه د بیان

دا سړے د سنډا دے — نه سود به نے نه زیان

تالو کښے الونه وینے — تق تق آسمان ته کوے

قسمت د ته نارے وی — ته نے ناست او خاته کوے

* * *

جوړے کو محاو نه — د خندا او د هوا نه

په خاو لے خاور کوے — دا نبایسته دنیا ورانه

دا کړه د عیشونو — کنډلو جونو او ونانه

په ښار دے مقبرے کړے — تکه توره ورانه ورانه

دا څه غواړے د بل نه — خانه څه غواړے د خانه

دا څه بلا جوړے — د دے نبایسته دنیا نه

* * *

نرگس دے د دی کړلی په باره کښے د جوا ر دو — رامبیل د لکولی په باغچه کښے دانا رو

دنیا کښے ترقی په خوشامندو د دله ده — تا نجو په سلام دی او تختونه په منت

دنیا واره کمزوره خواره د دروغ خواره ده — چه څه د بل ثناوی د هغه کیږی صفت

بادشاه د دنیا زردی او یا زور د بل نشته — مطلب د ژوندانه یا ښادی او یا گور د بل نشته

خو ته اېښې خانه نه شې ورې نه به شې — کله ژړا او کله نوا، خندا نه وې شې

د خاورو نظر کښې خاخایول نه دي خې — ته تول پاړسنګ پاړ زړه چلې نو نه دي خې

ته هغه منصور منصور ته زړه د تود سر د یخ — خاتاالحق نو د بهلول نه دي خې

منم چې د ګلونو اشاره نو سپرلو یار دې — خو تا له د وربخې خالق دا خوشبو نه دي خې

په دې خبه چې د ګل او د نسیم ساقي راز دار یې — چې تا له بلبلو ل او خاخېږو نه دي خې

همېش به د شغل یوا خېږي په چمن کښې — په کور کښې د دغو چې خاباول نه دي خې

رڼا که دېره او کې په د تشه رڼا ځه — دا ورته خېږې خا په د تشه خندا ځه

* * *

ته حسن چې ځه د لوګي هوا محل دې — انصاف انصاف د ځه دې د هوښیار شا اکل دې

ایمان ایمان د خزروي هوښیاره غم کړي د سبا

اتباره د هوښیاره تیا د اکوا ایمان د عقل غل دې

رښتینې د مرچنې وهي په زولنو کښې

نن بره د چاې ده مور او بره روان چل دې

په بېه شرافت د نوم او ښځې په لیلام

یا ځې په کرایه ښه سر پټوب هم په بدل دې

خښکل کښې د پیریانو لټو ته ښا پیرۍ — ته راغې کړ پښتو په دسته خراڼ د سامري

په غم کښې لټې د لږو سرو پلو شې — غني ته نه شې او نه شنه نه به شې (۲۶)

(دی ستا ورغني)

---

(۲۶) رهبر ۲۹ فروري ۱۹۶۱ ع ص ۱۱۴ - ۱۱۵

له دغه آثارو سربېره دخان متفرق اشعار او نظمونه ، ليکونه او نور هم منثور ليکنې د پېښور په ډېرو ملي رسالو او اخبارونو کښې شايع شوي دي چه تولول او خوندي کول يې په کار دي ، ځکه د ده هر ليکنه او هر نظم د پښتو ادب يوه قيمتي پنګه ده . او بويه چه زمونږ لرني پچپل قوم او ژبه مين وروڼه دغه کار وکړي .

دغني خان د آثارو په لړ کښې ادب پوهانو په انګريزي کښې د " پټهانز " په نوم د ده ديوه اثر يادونه هم کړې ده . چه نخو افغان ته اهدا شوې ده . وائي چه دغه اثر د ده ځله چاپ او شايع شوې دې . يو ځل په بمبئي کښې او بل ځل په ١٩٥٠ ع کال په پېښور کښې . ما خپله دخان دغه کتاب نه دې ليدلې .

## دغني د کلام شکلي خوا :

دخان د کلام کومه مطالعه چه ما غزيب ته ميسره شوې ده چه هغو کښې زيا تره برخه د داسې شعري سکښت لري چه زمونږ لرني ورونه يې " نظم " بولي او د شعري قالبونو د ټولو خاصو قاعدو او اصولو ډېر تابع نه دي . له دغو نظمونو سره سره ده په کلام کښې غزل ، رباعي ، قطعه او يو نيمه مثنوي هم ليدې شي .

دعبدالغني خان په کلام کښې څه داسې نظمونه هم شته چه بنکاره کوي چه مونږ ورته دلته په کابل کښې " آزاد نظم " او يا نوې شعر وايو . دغه ډول نظمونه هم خان په خاص ادبي مهارت ويلې دي چه فکري خوا و سره سره هنري مزيت هم لري او د پښتو د نوي شعر د مطالعې په دوران کښې په خاص ډول د يادونې وړ دي ، دلته زه د ده د دغه ډول نظمونو يو نمونه وړاندې کوم :

ځوک د زړه غوټو لو نښتـه
ځان له زړه غوټوم پخپله
ځان له ناست یمه خپـل غـم ته
د خپل غـم وایم بدله
چې ته لـرې تېر محفل له
د مستۍ او خندا ځمه
چـې ته مرو شمع را اخلم
خپل مشال پرې لګومه
د ے تور تم غم او افسوس کښې
زه په یاد د مینې پایم
سوی زړه ته قصے ډیرے
د ځوانۍ رنګینے وایم (۲۷)

دخان د آزادو نظمونو ډیرے نمونې په پانوس کښې خوندی دي. په مجموعه کښې یو ځاے د علامه اقبال (۱۸۷۳ - ۱۹۳۸ ع) د کلام ترجمه هم لیدے شي او هم د پښتو د اولسي شعر ونو نمونے هم.

## دخان د شاعرۍ مضامین او فکري ارزښتونه:

دخان د کلام له مطالعے هر چا ځانله خوند اخیستے دے او لیکوالو او محققینو هر یو د خپل برداشت سره سم څه پرے لیکلي دي. مګر زما په عقیده ترهر چا د مخه او تر هر څه د مخه باید سړے د شاعرۍ په باب دخان پخپله رایه پوهه شي چې د ده په باب څه نظر لري. عبدالغني خان استاد بینوا مرحوم ته په یو لیک کښې په دے باب داسے لیکلي دي: "... زما خیال دے چه ژوند کښې دیو شاعر مرام او هدف دیو مبلغ او ملا نه بیخي جلا او بل شان دے او دا ځکه چه انسان په اساسي او بنیادي توګه یو ښکلا دوست

(۲۷) رهبر جون ۱۹۵۹ ع ص ۱۲

هغه خوږ، کی، خنکاک، جنسي ارتیاوو او استراحت ته ضرورت لري او نوموړي ته نه. دا زمونږ د شاعرانو وظیفه ده چه د انسان توجه او پاملرنه دهغه د ژوند او هستئ دے لوړو مرکزونو ته وګرځوو، چیرته چه هغه ممکنه ده، د خپل تکامل انعکاس ووینی، او د خپلې ابدی عشوقې د ښکلا او ښایست دیدن وکړی.

زما خیال دے چه یو شاعر باید د فکر او خیال، قول او عمل په ذریعه کښې د ښکلا او ښایست عبادت وکړی او انسان دے ته مجبور کاندی چه هغه د خپلو خواهشاتو له لنډ ګیر نه خپل مخ د خپل باغ عدن خواته واړوی. دا کار په پند ونصیحت نه شی کیدے. زما هغه خلک بد ایسی چه ما ته نصیحتونه کوی.

که چیرے مونږ د ژوند له لوړي د ښکلا او ښایست د قدر دانئ لپاره خان راپیدا کړاے شو، ترکومه چه په ژوند کښې د عذاب او مصیبت درد او غم تعلق دے نو زما خیال دے چه مونږ ته د ښکلا ښایست د تخلیق د پاره د هغې قیمت اداکول لازم دی. هر یو آرټسټ دا بوګنونکے قیمت اداکوی. او په دے کښې یو څو کسان خوشبخته وی چه د ښکلا، ښایست او دلربائي یو څاڅکی راپیدا کړی.

دا آرټ، ښکلا او ښایست او دلربائي مخ تر راوستو د پاره ته باید چه د ژوند، درد او غم ته مخامخ شے..

د خان له دے خبر ګند ونو ښکاری چه ددوی شاعری مقصدیت هم په لوړو خبرو کښې نغښتے دے. او ددوی کلام کمال از جمال هم ډکه دی چه خان په خپله بیان کړیدی

دخان د کلام زیاته برخه فکري محتوي لري چه د ملي او قومي مسایلو
له بیان څخه نیولې تر پیچلو فلسفي مسایلو پورې خبرې او د ټولنې ضروریات په خپل کلام
کښې رانغاړي.

دخان اکثر فکري آثار د طنز او مزاح په ډول په داسې طنزي انداز کښې
بیان شوي دي چه د ټولنې او معاشرې ډېر ناوړه خواوې په ډېره خوږه طنزونو
او توکو نظمونو کښې بیانوي. او د پښتو په معاصر ادب کښې ډېر لږ شاعران د غني
طنزونه لري. یا خو به د غه ډول طنزونه ډېر لږ وي که دي نو هغه به هم د غني په اندازه
چه غني بیان کړي دي نه وي. په همدې اساس دلته پښتو ادبي محققین لیکي
چه په اوسني دور کښې طنز و مزاح ته په پښتو شاعرۍ کښې لیوني فلسفي عبدالغني خان
خاصه خلا ډکه کړه (۲۱)

دغني په شاعرۍ کښې له وطن او قوم سره مینه په داسې انداز کښې بیان
شوې چه هیڅ ډول تفنن او تصنع نه پکې لیدل کیږي او د ده د قوم پرستۍ او وطن پرستۍ
د واقعي احساساتو ترجماني کوي. او په ټولنه کښې مسلط اجتماعي او سیاسي نظام
هم د ده د اورنۍ ژبې او د انتقاد قلم له څوکې خلاص نه دی. دے زیار باسي چه
د جامعې فسادونه په داسې طنزیه او مزاحیه جملو کښې انتقاد کړي چه
په ظاهر کښې ډېر سطحي او پیش پا افتاده ښکاري. خو که سړی یې مطلب ته
ورسي، نو هغه د خان په فکور مغز آفرین ووايي.

---

(۲۹) اټک کښې اسپار ص ۱۹۶ . طبع لوښنه ادب لاهور.

# عبدالغني خان او د ده کلام د شاعرانو، ادیبانو او محققینو له نظره :

دخان د پیژندګلي او د ده د آثارو او افکارو په باب چه کوم بحث شو نو دهغو تکمیل لپاره لازمه ایسي چه دهغو ادیبانو او شاعرانو آراوې هم راوړل شي چه دغني او د ده د آثارو په باب څرګندوني او نظریات لري :

۱- مرحوم ماسټر عبدالکریم (۱۹۰۸-۱۹۶۱ ع) د پنجرې چغار په دیباچه کښې لیکلي دي: "... دغني د شاعرۍ درې دورې دي: اول دور د هلکوالي شاعرۍ ده ... دوېم دور دغني شاعرۍ هغه وخت ګڼلی شي چه وخت چه غني له یورپ، امریکې طرف په هم زیاته کړې وه ... درېم دور کښې دغني په تخیل کښې پراخوالی موندلی شي. دا ځکه غني د خیال په نیلي سور دی خو دا ئې خپل قابو کښې دی یو آواز ئې د چه سوز او ساز لري، یو سوز ئې د چه د مستۍ او سترګو خمار لري. د دور کښې غني خان که خپل مسلک هم لري، وایي چه غالب او ټیګور په لار روان وو. غني ځینې له ورځې دواړو یو بل ته وکتل. دغه دغني د درېم دور شاعري ده او چه د خیام مستي له یې دغالب بېباکي او د ټیګور رنګیني ورکړه ...." (د پنجرې چغار مقدمه ص د)

۲- د پښتو ژبې نومیالی لیکوال همیش خلیل لیکلي دي: "د دغه نوم نه وړاندې ادبي دنیا کښې غني خان په یو فلسفي پېژندل شو او د خپلو مزاحیه شعرونو له لګه چه اکثره به اوس ورځني پښتون کښې شایع کیدل. هم د دغه مجلې په ذریعه یو فلسفي نه صرف په خپل ماحول کښې بلکه تر لرې لرې مشهور شو ..."
(پښتانه لیکوال ص ۱۰)

۳- مرحوم استاد گل پاچا الفت (۱۳۵۶ هـ. ش مړ) د غني شاعري داسې ستايي: " د غني خان په اشعارو کښې چې څه شی زما په خوښيږي هغه د فکر او خيال آزادي او د تقليد له تلقينا تو څخه سرکښي ده.

د ده رندانه مقام ته ځوک نشي رسيدای او هغه څه چې ده يې د خپل سباغلي ليونتوب له برکته ويلي شي د نورو خوله يې سوځي.

غني د شعر او شاعرۍ په دنيا کښې رښتيا غني دی او په څه يې په ځير رسيدلی دی. د ده په اشعارو کښې عشق او محبت، پښتو او پښتونولي، رندي او خيامي فلسفه، تورې او مستۍ هر څه شته له کار غنا او مار غانو سره يې هم په شاعرانه ژبه ويږې د خوند خبرې کړې دي.

د ده په مستانه ليونتوب کښې شاعرانه هوښياري او بيداري پټه ده او په ملنډو کښې يې د مقصد تکي نغښتي دي. نو ځکه ورته ليوني فلسفي هم وايي " (پلوشې - الف. ب مخونه)

۴- استاد بېنوا (۱۳۶۳ هـ. ش مړ) بيا وايي: "... ظاهر بين خلکو ورته د ماشوم په نظر وکتل خو د قدرت په نظر کښې هغه د پښتني ادب پر آسمان يو ځليد ونکی ستوری و، چې له نيمه راښکاره شو.

هو! هغه وخت ځوک پوهيدل چې دا ماشوم به يوه ورځ د پښتو ادب غني او مستعد دماغ شي چې د سپيڅلي طبيعت له الهام، د حقيقي انسانيت له نور، د سرمست احساس له جامه د رندي او شوخۍ له خمه

دلیو نئ میني له سوز و سازه او د ژوند د ژورو فلسفي له تله په پښتني ادب د اسې

نوې خلا، نوې رنګیني، نوې روح او نوې خوند وبخښي چه د پښتو ژبې

ادب لپاره یې هیڅ اشنا و» (اوسني لیکوال، ج ۳ ص ۹۶۹)

د- شوروي پوه ګ. ف. ګیرس بیا د غني شاعري له تحلیل څخه داسې را اوباسي،

«د ژوندانه د پیښو د ترسیم له پاره غني ځینې مخصوص سبک او اسلوب انتخابوي

طنز، ټوکې او ټکالې کوي او هڅه کړي چه د شعر په ذکر کښې د ده مخې ته وړاندې

دی همداسې وېنه نه دي پاتې شوي او ګوزار یې ور باندې کړې دي. حتی انګلیسان

ملایان، وطن دوستان، اولسي بې سوادان او عتیقه پرستان د ده د ظرافت

لاندې راغلي دي. تېز او مهم موضوعات په دا رنګ تعبیر سره بیانول په طبیعي

دول د اشعارو خپې سموي. بر سېره پر دې د غني خان د آثارونه معلومېږي چه

د اولس په ورورسته پاتې کېدلو کښې څپله اولس ملامت دی.» (۲۹)

۶- استاد اجمل خټک د غني په نامه یو یار کې لړي چه یوه برخه یې

دلته را اخلو:

دغني په نامه لیکم څو شعرونه — په پېغورو کښې یادوم تازه ګلونه

د هغه سره رنګونه د قلم دي — زړه لرم په څو سارو ه سا ره آهونه

د هغه خوله کښې د خوند ډک چغار دي — زما زړه کښې دي د درد ډک داغونه

هغه خیال فن او ښکلا سره لوبېږي — زه لګیا یم لوبوم د اغلې زړونه

---

(۲۹) د پاڼې اولس ادبیات. مرمحقق معتمد شینواري ترجمه.

سیلاني هغه د نوې دنیاګۍ دے — بلوم زه د ګوډلو مشالونه

د هغه احساس د حسن تازه ګل دے — زه جذبات یم په ماڼل دي سره اورونه

هغه مینه ده، غیرت د ولولے دی — زه وفا یم، پښتو یم، ننګونه (۳۰)

۷- د پانوس په دیباچه کوټے کښے راغلي دي: "غني خان چه خپله د آرټ دیوے ماهر سته حیثیت لري د هغه د افکارو سره پوره پوره انصاف وکړے شي. . . . غني خان د خپلے پانګے د کمال خاوندګے نه پېژني. چه د هغه په خیال په پوپښتون باغ کښے د ګلاب بوټے خپلے فطري ارتقاء ته پرېښودل په کار دي."

۸- پروفیسور ولي محمد خان سیال کاکړ یے بیا داسے ستاینه کوي:

چه پیدا په هشنغر کښے غني خان سو
بخت بیدار په رښتیا د لوئے افغان سو
شاعر نه د فیلسوف د زمانے دے
په خپل شعر کښے د پښتون ترجمان سو
د لېوني اشعار چه لولي لیونیان سي
پس له لوستو هر سړے خبر په ځان سي (۳۱)

---

(۳۰) د وخت چیغه ص ۲۴۲ د ۱۳۵۶ هـ ش کال د کابل چاپ.

(۳۱) منظومه تذکره ص ۲۷ د ۱۹۹۲ ع کال د کوټے چاپ.

۹- صاحبزاده محمد ادریس په خپل یو نظم کښې دغني او مفتون مقایسه داسې کړې ده:

فرق څه دې په غني او په مفتون کښې — کوم چه وینې لیونتوب او په جنون کښې

سر یو دانه که دې یو بل ناقلاره — اضطراب کوره د دواړو په خون کښې

د احساس درد کمی په شرابونو — بیا وتېزي دشرابو په بیلتون کښې

بېهوشي کښې اروي خرابه د سروونه — فرق نه وینم د دواړو په قانون کښې

یو دخیال بل دجذباتو په تال زانګي — ورپسې دخیال لیلی ده مجنون کښې

سر پېښو په او مستي په زړه جابل دي — سبقیان دواړه دعشق په پوهنتون کښې

دغني دخیال نیلي په آسمان کښې زغلي — ورپسې د مفتون آس وي په ګردون کښې

صد رنګونه چه د مینې لوبې پرسېږي — مستي داولي دعقل افلاطون کښې (۱)

۱۰- زموږ نوميالی استاد پوهاند رښتين دغني دهنر او فن تجزیه داسې کړېده:

"دغني په اشعارو کښې یا په بله ژبه د دوه دنګو په پلوشو کښې عشق او مینه او محبت پښتو او پښتونولي رندي او مستي، تنقید او کره کتنه، آزاد خیالي او بې باکي دبې باکي فلسفه او نور هر رنګ لذتونه او خوندونه شته او په دې میدان کښې غني دخوشحال دلارې یو څخ ملګرې دی سخو په تورو او ملنګو کښې تر هغه هم وړاندې دی." (۲)

---

(۱) د سپیلني مستورې ص ۶۱-۶۲ د ۱۹۵۷ ع کال د پېښور چاپ ادارهٔ اشاعت سرحد.

(۲) وږمه د ۱۳۵۶ هـ ش کال ګڼه ص ۱۳۰

۱۴- حامد کتاب دی: «شعر غنی بازتابی از زندگی محیط و درگیری های سیاسی زمان اوست و همین مسایل است که انگیزه های بازسازی دنیای نگری او را می سازد شعر درست او خامدی است که با آن افکار فلسفی، آزادیخواهی و حب وطن را با تمام ابعادش ترسیم میکند. ...... در شعر او فضای زیبا و پرشکوهی تبلور یافته است. همین ویژگی شعر اوست که او را در ردیف شاعران ممتاز و برازنده زبان پښتو قرار میدهد.» (*)

## غني او اخوږکري:

په ادبي ځېړنو کښې راغلي دي، چه غني خان اخوږګر (مصور) هم دی. د ده ځينې اخوږونه په بعضې کتابو کښې شايع شوي هم دي. ويلې شي چه د ټيګور په بين الاقوامي يونيورسټۍ کښې غني د خپلې استوګنې په زمانه کښې د هلکانو د تهو تصويرونه جوړول شروع کړل اما دغه تصويرونه چه د کالج پرنسيپل او ټيګور (۱۸۶۱-۱۹۴۱ع) وليدل نو ډير زيات خوشحاله او حيران شوو.

بناغلي همیش خلیل دی: «غني خان ديو ښه شاعر نه علاوه يو بهترين مصور هم دی او ديرځانه د تصويرونو نمايشونه شوي.» (پښتانه ليکوال ۱۰۸ مخ.)

---

(*) حقيقت ـ دمي دريياځي، ذو ـ حامد تکيه د ۱۳۶۴ کال د اسد مياشتي گڼه.

# د غني د کلام د غه مجموعه:

کله چې د پښتو ژبې نوميالي شاعر او ليکوال سليمان لايق ماته د غني
د کليات د تياريدو سپارښتنه وکړه، نو ما لومړی کار له پانوسو پيل کړ. پانوس کټ شو
او کاتب ته د ليکلو د پاره وسپارل شول. تر دې وروسته مې د پنځو چپاړو کار لاس ته ونيو، لومړی نظمونه
چې په پانوسونو کې نه وو راغلي، هغه ترتيب کړای شول او باقي برخې يې وليکل شوې او کاتب ته
حواله شول. بيا پاڼې وکتلې، د دې مجموعې ټول هغه نظمونه چې په پانوسونو او پنځو چپاړو کې نه وو
راغلي وو، هغه ترتيب کړای شول. او پاتې نظمونه يې وليکل شول.

البته کيدای شي چې ځينې نظمونه د پاڼو او پانوسونو له راجمع کولو
څخه د پاره چې د عبدالغني د کلام مجموعه خپله بشپړه وي په هم شامل شوي وي
د هغو د پاره جلا جلا سرليکونه ورکړل.

د شعر په کليات کې راغلو نظمونو په املا کې ډېر لاس نه دی وهل شوی، د هغه تر دې
حده مو زيار ويست چې املا د اوسني پښتو ليکدود املا ته ورته وي. هغه کلمات چې
خان په ځانګړي لهجه کښلي وو، ځينې مو يې سم کړل او په مروجه املا مو وليکل
خو ځينې برخې يې لا د خان د لهجې مطابق پاتې شول. البته دا خبره بايد هېره نشي
د پنځو چپاړو او پاڼو ځينې نظمونه چې په پانوسونو کې راوړي دي، په هغو کې ځينې لاس
وهلي دي او ما د متن د ترتيب د … ولي محمد د … شمولونه په کليات کې اخيستي دي.

---

☆ له بده مرغه ځينې تکراري نظمونه هم په مجموعه کې راغلي او زه
د اسې وخت ورته متوجه شوم چې ايستل يې ګران وو.

زه دې لیکنې په پای کښې د خان عبدالغني خان یوه خوږه غزله تاسې ته وړاندې کوم چې زما له دې بحث سره ډېر نږدې اړه لري. او دده د ژوند په مطالعه کښې ارزښتمنه ایسي.

## غني غني ته

ما وې غني یاره څه بې اندازه غونډې یې
ادب دې څه کښې کم زبان دراز غونډې یې

قصه دې کله وړه وه نه سم خانشت نه توتي شوې
خوږ ته دې دوپیازه کښې څه دې پیاز غونډې یې

پټي دې وران وېجاړ دي او کړي ورځې دې پوله
کړې پکښې کلونه حسن ساز غونډې یې

لینده دې ماته کوږه او شل ماهول دې غشي
خو غزا دې هسې ګي تیر انداز غونډې یې

دولت دې کړه صحت دې کړه ناموس دې کړه شهرت
په ورځ خیټه موړ او بې نیاز غونډې یې

که نهنګ دې کړه تراش وي که چار بېته که بدله
په خپله لار روان یې بې استاز غونډې یې

په مینه یې مین او خدای ته پلار او جانان وایې
دا څکه خو بې تله بې اندازه غونډې یې

---

پښتو مجله ۱۹۸۳ع (اپریل، فروري، مارچ) ۲۰ مخ